# بسم الله الرحمن الرحيم

## المبادی فی التفسیر

ان الحمد لله نحمده ونصلی علی رسوله الکریم اما بعد:

دهرعلم دزده کړې نه مخکې یو څو خبرې پیژندل ضروري دي ،دقرآن کریم د زده کړې لپاره هم دغه خبرې زده کول ضروري دي، چې ورته "المبادی فی العلم " ویلې کیږي۔ ابن زکری رحمه الله تعالی په خپل کتاب "تحصیل المقاصد "کې ذکرکړي دي،چې دا لس دي:

فاول الابواب فـــی المبادی　　وتلـک عشرة علی المـــــراد

الحدوالموضوع ثم الواضع　　والاسم واستمداد،حکم الشارع

تصـــورالمسائل، الفضـــیلة　　ونســــبة ،فائـــدة جـلیــلة

نورعلماء یوه خبره بله هم اضافه کوي یعني اصطلاحاتِ خاصّه دهر علم ،حافظ ابن کثیررحمه الله تعالی دې ته نوم ورکړی دی "لغة القرآن "یعني دقرآن خپله ژبه او اصطلاح .دا ټول یولس مبادي شو:

۱۔تعریف، ۲۔موضوع، ۳۔ واضع، ۴۔نوم، ۵۔ مأخذ ، ۲۔ حکم، ۷۔ تصورالمسائل، ۸ ۔ فضیلت، ۹۔نسبت، ۱۰۔ فائده ،۱۱۔ اصطلاحات۔

## دعلم تفسیر درجه

علوم په دوه قسمه دي:۱۔علوم اصلیه ،۲۔ علوم فرعیه یازائده۔ اولني قسم ته علوم عالیه او دویم قسم ته علوم آلیه هم وئیلی کیږي ۔علم تفسیرد علوم أصلیه څخه دی ،په حدیث شریف کې درې علوم أصلیه ذکر دي،باقي فضل او زوائد دي:

عنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: الْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ: آيَةٌ مُحْكَمَةٌ أَوْ سُنَّةٌ قَائِمَةٌ أَوْ فَرِيضَةٌ عَادِلَةٌ وَمَا كَانَ سِوَى ذَلِكَ فَهُوَ فضل. (رَوَاهُ أَبُو دَاوُد وَابْن مَاجَه)۔

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: علمِ مقصود درې دي: ١۔ قرآن کريم، ٢۔ سنّت صحيحه، ٣۔ فقه۔ ددې درې نه علاوه نور علوم زوائد دي، او په دې درېو کښې بيا أصل قرآن کريم دی، سنّت دويمه درجه کې دي، او په هغې کې تفصيل دي۔ فقه په دريمه درجه کې ده۔

وَكَذَلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا مَا كُنْتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ وَلَكِنْ جَعَلْنَاهُ نُورًا نَهْدِي بِهِ مَنْ نَشَاءُ مِنْ عِبَادِنَا وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (٥٢الشورى)، نبي عليه السلام ته الله تعالی تفصيلي ايمان او خپل قوانين د قرآن په ذريعې سره ښودلي دي۔ قرآن کريم واحد ذريعه او سرچشمه ده د ايمان لپاره۔

اتَّبِعْ مَا أُوحِيَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ (١٠٩ الانعام)۔ إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ الايه (١٥يونس)۔ وَاتَّبِعْ مَا يُوحَى إِلَيْكَ وَاصْبِرْ حَتَّى يَحْكُمَ اللهُ وَهُوَ خَيْرُ الْحَاكِمِينَ (١٠٩يونس)۔ نبي عليه السلام بلکه تمام انبياء عليهم السلام د وحي پابند دي۔ ددې ټولو آيتونو واضحه مطلب دا دی: څنګه چې نبي عليه السلام ته د قرآن کريم د اتباع امر دی، دغه شان احاديث مبارکه هم د قرآن کريم تابع دي۔

لکه امام قرطبي رحمه الله فرمايي: ---- فصار الکتاب أصلا و السنّة له بيانا واستمداد العلماء له ايضاحا وتبيانا۔

(خطبه تفسير قرطبي جلد١)۔

لهذا په حديث سره خصوصًا په خبرواحد سره داسې تفسير د کتاب الله چې د کتاب الله معنی ورسره ختميږي، دا تفسير نه دی، بلکه نبذ دی، او نبذ د کتاب الله حرام دي يا کفر دی، چې د أهل تشيع او دنن زمانې د غېرمقلدينو کار دی۔

## قرآن د هرې زمانې د فتنې علاج دی

إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ وَيُبَشِّرُ الْمُؤْمِنِينَ الَّذِينَ يَعْمَلُونَ الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ أَجْرًا كَبِيرًا (٩الاسراء)۔

إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ (١٣الطارق)۔ بيشکه دا قرآن ابدي رهنما دی، د هر وخت لپاره فيصله کن کتاب دی۔

نبي عليه السلام فرمايي : ستكون فتن ـ علی رضی الله عنه تپوس کوي :ماالمخرج منها يارسولَ الله؟ـ نبي عليه السلام جواب ورکوي :کتاب الله ـ

دغه شان حذيفه رضی الله عنه فرمايي ما دنبي عليه السلام نه دخير او دشرتپوس وکړلو نو ماته ئ جواب کې درې ځله وفرمائيل : ياحذيفه !تعلّم کتابَ الله واعمل بما فيه ـ ای حذيفه دالله تعالی کتاب زده کړه او چې څه په دی کې دي په هغې عمل وکړه ـ

## دعلمِ تفسيرفضيلت

علم تفسيردېوځوجو نه په ټولو علومو کبی افضل علم دی:

۱ـ ددې علم نسبت بلاواسطه الله تعالی ته دی ـ

۲ـ داعلم دکلام الله سره تعلق لري او کلام الله دټولو نه افضل کلام دی: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يَقُولُ الرَّبُّ تَبَارَكَ وَتَعَالى: مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْآنُ عَنْ ذِكْرِي وَمَسْأَلَتِي أَعْطَيْتُهُ أَفْضَلَ مَا أُعْطِي السَّائِلِينَ. وَفَضْلُ كَلَامِ اللهِ عَلَى سَائِرِ الْكَلَامِ كَفَضْلِ اللهِ عَلَى خَلْقِهِ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ )ـ

۳ـ په دې علم سره د الله تعالی هغه اراده معلومېږي کومه چی هغه دانسان اود پيري په حق کې کړې ده په اعتبار د شريعت سره، يعنی الله تعالی انسان اوپيری دڅه مقصد لپاره پيدا کړي دي ؟ـ ددې نه به انسان هله خبرېږي چې په قرآن پوهه شي ـکه انسان دالله تعالی په کلام اوپه دې کلام سره بيان شوي مقصد باندې ځان پوهه نه کړي، نوددۀ له خوا بيا دا يو لغو اوبے مقصده کلام ګرځي "العياذبالله ".
دداسې خلقو نه نبي عليه السلام ګيله مند دی ،اوالله تعالی ته شکايت کوي: وَقَالَ الرَّسُولُ يَارَبِّ إِنَّ قَوْمِي اتَّخَذُوا هَذَا الْقُرْآنَ مَهْجُورًا( ۳۰ الفرقان)، او وايي به رسول الله صلی الله عليه وسلم : ای زما ربه !قسم دی ،زما دی امت داقرآن بی مقصده ګرځولی وو ـ

داسې خلق به ډيري چغې اوباسي چې مونږ الله تعالی پيژندلی دی،خودۀ الله تعالی نه دی پيژندلی ـ اودغه شان داخلق که هرڅومره غټې دعوې کوي چې مونږ دالله تعالی نه وېرېږو ،خو داڅه حقيقت نه

لري ،ځکه الله تعالی په قرآن پاک کې فرمايي : إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ الايه(۲۸ فاطر) ،يقينًا ويريږي دالله تعالى نه دهغۀ په بندګانو کې يواځې علماء.

"انما" کلمۀ حصرده، حصردمسند دی په مسند اليه کې، يعني خشيت إلهي خاص دی په علماو پورې. په دې آيت کريمه کې ددې خبرې سبب هم ذکر دی چې دالله تعالى نه ويره په علماؤ پورې ولې خاص ده . هغه سبب علم دی چې په لفظ د "العلماء "سره ورته اشاره شوې ده .يعني څوک چې دعلم دلارې نه دالله تعالى په کلام ځان پوهه کړي، بيادالله تعالى نه دهغۀ دشان مطابق ويريږي،اوهم داسې علم ته په حديث شريف کې علمِ نافع وئيلي شوي دي او هم ددغې علم دزياتوالي دغوښتنې دالله تعالى لخوا امر دی نبي عليه السلام ته: وَقُل رَبِّ زِدنِي عِلمًا. اوکومو خلقوچې دقرآن کريم نه الله تعالى نه دی پيژندلی ، اووايي چې مونږ دالله تعالى نه ويريږو ،نودا د دوي خپله خيالي ويره ده، ځان له ئې يو کيفيت جوړ کړی دی.باقي دالله تعالى نه څنګ ويره پکارده؟، اودالله تعالى نه دويرې څه معنى ده ؟ ،هغه دۀ ته پته نشته ،ځکه ويره خود تيرې نه، د بدشکل څيزنه، د پيري نه،دمارنه،د ديو نه هم وي، اوس دی دالله تعالى نه په څه معنى ويريږي؟.

نو ځکه الله تعالى دځان نه ويره خاص کړله دعلماؤ سره ،چې هغه ويره چې دالله تعالى دشان سره مناسب ده، هغه خاص ده دعلماؤ سره ،لکه څنګ چې ئې د أمثالِ قرآني پوهه خاص کړې ده د علماؤ سره: وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ (۴۳ العنکبوت) ، مونږ دا مثالونه دتمام انسانانو لپاره بيانوو ،اونه پوهيږي په دې مثالونو مګريواځې علماء پرې پوهيږي. په "تلک الامثال" کې ټولو مثالونو دقرآن ته اشاره ده .

"الامثال "جمع د " مثل" ده ،لکه "امراض" جمع د "مرض" . په معنى د مثال ،او مثال دمسئلې د وضاحت لپاره وي، اودليل دمسئلې د اِثبات لپاره وي،ترتيب ئې داسې دی: اول مسئله ،بيادليل ،بيامثال، نو مثال چې ترټولو واضح دی په هغې باندې يواځې علماء پوهيږي ، نو په مسئله اوپه دليل به هم يواځې علماء پوهيږي. اوس دا باقي خلق به څه کوي؟، ددوی لپاره څه لاره پاتې شوه،حالانکه مسئله، دليل، اومثال خودټولو لپاره بيان شوي دي ؟، هغه يواځې تقليد دی .

وَمَا يَعْقِلُهَا إِلَّا الْعَالِمُونَ.دلته د "العالمون" نه مراد :صحابه کرام،تابعين، مجتهدين دي. ځکه أصل علم: قرآن ،حديث ، فتاوی الصحابه او اجتهاد المجتهدين دی ، او د دې نه روستو خلق به دمخکې

خلقو اتباع يعني تقليد کوي ،او که داسې نه شي نو داآيت بې مطلبه اولغو ګرځي ـ ځکه په دی آيت کريمه کې دخلقو دوه قسمه بيان شوي دي: يوهغه چې دالله تعالی په بيان کړي مثالونو باندې پوهيږي چې هغه علماء دي ،او بل هغه چې پرې نه پوهيږي ـ، او دمثالونو بيان دټولو لپاره دی ـ

مخکې امتونو کې داسې وه ،چې پيغمبراودهغهٔ صحابه به د دنيا نه لاړل ،نوالله تعالی به بل نبي راوليګلو ـ

اوس که دقران علم لاړشي، دحديث علم لاړشي، دصحابه کرامو علم لاړشي، دمجتهدينو علم لاړشي،نوبيا څه پاتې شو ؟ ،ځکه بل نبي خو نه راځي ـ خوهم دغه علم دی دپخوانو چی روستني به ئ اتباع کوي ـ روستني خلق چې څومره دي، که يو ه مسئله وي اوکه ډيرې ، خوهغه دځان نه نشي کولې، تقليد دپخوانوبه کوي، اوهم دې ته اتباع وايي، په تقليد او اتباع کې فرق کول خطأ ده ،بلکه دنصوص قرآنيه نه خلاف ده ـ

حاصل: دالله تعالی نه ويره خاص ده دعلماؤ سره ،دالله تعالی په خبره پوهه خاص ده دعلماؤ سره ،دالله تعالی په مثالونوپوهه خاص ده دعلماؤ سره، اودکوم علم سره چې خشيت الهی نه راځي ، دالله تعالی په نزددا علم نه دی : وَعْدَ اللهِ لَا يُخْلِفُ اللهُ وَعْدَهُ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (٦ )يَعْلَمُونَ ظَاهِرًا مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ ( ٧ الروم).

## ددنيانعمتونه موقوف دي په خشيت إلهي باندې

په داسې خشيت ، چې دعلم دلارې نه حاصل شي ،الله تعالی د دنيااو دآخرت دنعمتونو وعده اولوظ کړی دی ،ددنيا نعمت دادی: چی بنده دالله تعالی په پوره دين باندې ژوند اوکړي ،اوژوند بغيرد تمکين نه نه کيږي، دتمکين مطلب دادی چی: الله تعالی چاته قدرت ورته ورکړي، اوهغه دالله تعالی حق يعني عقوبات او عبادات ته غاړه کيږدي ـ

١ ـ وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِ فِرْعَوْنَ أَتَذَرُ مُوسَى وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبْنَاءَهُمْ وَنَسْتَحْيِي نِسَاءَهُمْ وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَاهِرُونَ (الاعراف ١٢٧)،وکيلانو دقوم فرعون فرعون ته اووې:آياتاآزاد پريخي دي موسی اودهغهٔقوم ،يعني څه ورته نه وايې،نتيجه به ئ داشي، چې فساد به کوي ـ"ليفسدوا"کې لام دعاقبت دی۔

## دفساد معنی دقرآن کریم په اصطلاح کې

په دی آیت کې د " فساد "څه معنی ده؟ - بني اسرا ئیل بالکل بی وسه خلق دی، دآل فرعون څه مالي یا ځاني نقصان نه شي کولې، دوي دفرعون په لاس کې دا سې دي، لکه مرغۍ په پنجره کې، چې مالک ئ څه رنګه ساتي هغه شان به وي ، لهذا دلته دفساد معنی هم دغه ده، چې ورپسې بیان شوي ده: وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ ، دا جمله د "ليفسدوافي الارض "تفسير دی، چی تهٔ ئ پریخودې ئ، ستامقرر کړي قاضیان او قوماندانان ئ پريخودي دي، ځکه دوي خپلې فیصلې په موسی او په هارون باندې کوي. نو ستا حکومت او قضاء څه شو ؟.

دفساد په دغه معنی باندې دقرآن کریم د اصطلاحي الفاظو نه دی ،هرکله چې د الفظ دملأالقوم او دوخت د واکدارانو په ذکر کې راشي ،هم دغه معنی به ترې مراد وي.

قَالَ سنقتّل أبناءهم ،ددې دوه مطلبه دي :١. د بني اسرائیلو حالت ته اشاره ده:چې هغوي دفرعونیانو په پنجه کې مکمل راګیر دي. "نُقَتِّلُ "کښې مبالغه ده، چې ټکرې ټکرې به ئ کړو ،تریشر به ئ کړو . "ونستحي نسآءهم " او ښځو ته به ئ څه نه وایو ، چې په تاریخ کښې بدنام نه شو ، چی په سیاه سرو ئ لاس اوچت کړی وو . مونږ دچادراو چاردیواری بی احترامي نه کوو ، دعزت خیال ساتو . ٢. اختیار کامل ته اشاره ده، چې څوک غواړم وژنم، او چې څوک غواړم ژوندې ئ پريږدم، "وانافوقهم قاهرون" مونږ په دوي باندې زورور او غالب یو .نو په دې حالت کې دفساد معنی په وراني او تخریب سره کول نه شي متصور کیدې.

قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوا بِاللَّهِ وَاصْبِرُوا إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ( ١٢٨)۔ موسی علیه السلام ته خبر ورسیدو ،چی دفرعونیانو ارادې دغه دي، په دې وجه چې مونږدوي ته خپلې فیصلې نه وړوو ، نو خپل قوم ته وایي: هلته فیصله ورېل خو کفردی، خو تاسو دالله تعالی نه مدد وغواړئ . استقامت اوکړئ په خپله عقیده، اودکفرنه ځان اوساتئ .

"الارض " کې الف لام عهدي دي، مراد ترینه مصر دی ،ځکه جګړه دموسی علیه السلام او دفرعون په مینځ کې دمصر په حکومت ده، نو معنی دا شوه: مصرخاص دالله تعالی دی ، یا ټوله زمکه مراد ده،نو الف لام به دا ستغراق لپاره شي ،او یانفس زمکه مراد ده نو الف لام به دجنس لپاره شي.

يورثهامن يشآءمن عباده والعاقبة للمتقين ،وركوي الله تعالى حكومت دزمكې په خپلو بندګانو کې هغه چاته چې خوښ ئ شي ،او ښه انجام خاص دى دهغه چا لپاره چې ويريدونكى وي دالله تعالى نه.
دادخشيت او دتقوى ثمره ده ددنيا ،چى حكومت الله تعالى متقيانوته وركوي.

قَالُوا أُوذِينَا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَأْتِيَنَا وَمِنْ بَعْدِ مَا جِئْتَنَا ،يهودو وئيل: دا اخطار او دهمكي چې فرعون راكړې ده، دابه عملى كوى، ځكه دۀ مخكښې هم داكارونه كړي دي.

د دې آيت دوه مطلبه دي:

١ـ اشاره ده تاريخ ته ،چى قتل د ابناءبني اسرائيل فرعونيانوډيركرته كړى دى.

٢ـ اذيت عام دى، صرف قتل نه دى مراد.

قَالَ عَسى رَبُّكُمْ أَنْ يُهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِي الْأَرْضِ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ( ١٢٩).

قاعده دكتاب الله دا ده چې په آيت كې دالله تعالى كوم صفت بيان شي نود آيت د سياق اودسباق به ددغه صفت مطابق معنى كولې شي. مصركې فرعون خپل رټ قائم كړى وو اودمصر دحاكميت دعوي ئ كړې وه ،چې زۀ دمصر حاكم يم "انا ربكم الاعلى ،ما علمتُ لكم من إله غيرى ،أليس لى ملك مصر". موسى عليه السلام قوم ته وايي: ستاسو رب اوحاكم الله تعالى دى ،فرعون په دې وجه ستاسو دښمن دى، يعني څوک چې دالله تعالى دقانون په ځائ انساني جوړشوې قانون حاكم كړي، هغه دالله تعالى دبندګانو دغه شان دښمن دى لكه دالله تعالى دښمن.

فرعونيانودقومي ايكشن پلان تحت د قتل عام اعلان كړې وو ،نو موسى عليه السلام تسلّي وركړله قوم ته، قريب ده ستاسو حاكم به ستاسو دښمن هلاک كړي ،تاسو به په مصركې بادشاهان كړي د فرعونيانونه روستو، چې وګوري چې تاسو څه رقم حكومت اوفيصلي كوئ؟، دفرعون پشان په انساني عقل اورأى باندې، او كه په وحي باندي ؟.

ددښمن هلاكول ،اوبياحكومت سپارل، دا ټول په خشيت باندې موقوف دي، اوخشيت إلهي په علم باندې موقوف دى ،چاكې چې دقرآن د لارې نه خشيت راشي،دا وعدې دالله تعالى دهغۀ سره دي ،اګر كه ددۀ دښمن هرڅومره زورور وى.

٢ ـ وَلَقَدْ نَجَّيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ مِنَ الْعَذَابِ الْمُهِينِ ۳۰. مِنْ فِرْعَوْنَ إِنَّهُ كَانَ عَالِيًا مِنَ الْمُسْرِفِينَ (٣١ الدخان) ـ

فرعون دوخت حاکم وو په اسراف سره ،نه په انصاف سره ، يعني دالله تعالی قانون ئ پريخودې وو ، او انساني قانون ئ حاکم کړې وو ـ

قرآنی اصطلاح کښی داسراف معنی ده: دالله تعالی قانون دخپولاندې کول، او په انساني عقل جوړشوې قانون حاکم کول ـ

تعالی فرمايي: يقيناً مونږ نجات ورکړی دي بني اسرائيلو ته دسپکونکي عذاب نه ،دفرعون نه ،چې وو دی حاکم داسراف کونکو نه ـ بني اسرائيل الله تعالی غوره کړي وو په وجه دعلم په خلقو باندې د حکومت لپاره، چې دوي دالله تعالی علم او فيصلې ته غاړه ايخودې وه ، او علم او خشيت لازم ملزوم دي، چی په هغې باندې الله تعالی ددنيا او دآخرت انعام ورکوي:

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِرُسُلِهِمْ لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِنْ أَرْضِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا فَأَوْحَى إِلَيْهِمْ رَبُّهُمْ لَنُهْلِكَنَّ الظَّالِمِينَ (١٣) وَلَنُسْكِنَنَّكُمُ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِهِمْ ذَلِكَ لِمَنْ خَافَ مَقَامِي وَخَافَ وَعِيدِ (١٤ ابراهيم) ـ

ټولو قومونو خپلو پيغمبرانو ته يو شان جواب ور کړی دی، " لَنُخْرِجَنَّكُمْ مِنْ أَرْضِنَا أَوْ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَا " داجواب قسم دی ،ای: والله لنخرجنكم من ارضنا اولتعودن في ملتنا، يعني دخپل وطن نه به مو په زور اوباسو ،يا زمونږ قانون ته تسليم شئ، ځکه په يو ملک کې دوه قانونه نه چليږی ـ دپيغمبرنه مخکې خلقو دوخت دجبابرو په وضعي قانون فيصلې کولې، نو ځکه ورته وايي: لتعودن فی ملتنا، يعني هغه زوړ دين ته راواپس شئ ـ او پيغمبرته دواپس کيدلو معنی داده: ځکه چې په ملک کې داسماني قانون راوړونکی اورائج کونکی دی دی ـ الله تعالی هم په قسم سره جواب ورکوی چی داظالمان به زهٔ هلا کوم ـ ظالمان ورته ځکه وئيلي شوي دي چې دظلم معنی ده: وضع الشيئ في غير محله ،اودوي دالله تعالی دقانون په ځائ انساني قانون حاکم کړې وو ـ تاسو به آباد کړم په دغه ښارونو کې په کوموکې چې اوس ستاسو دښمن آباد او حاکم دی ـ په "**ذلک** "سره "تمکين فی الارض"او "هلاک العدو" دواړو نعمتونو ته اشاره ده ـ يعني دواړه نعمتونه دهغه دي، چې زما حکومت اومني په دنيا او په آخرت کې ـ

وَعَدَ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَيَسْتَخْلِفَنَّهُمْ فِي الْأَرْضِ كَمَا اسْتَخْلَفَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَى لَهُمْ وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا يَعْبُدُونَنِي لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا وَمَنْ كَفَرَ بَعْدَ ذَلِكَ فَأُولَئِكَ هُمُ

الْفَاسِقُونَ (النور ۵۵)، الله تعالی وعده کړې ده دمؤمنانو سره د استخلاف فی الارض، وعده په معنی د قسم ده ، نو ځکه په جواب کې ئ لام او نون تاکید راوړی دی. دا انعام الله پاک په مخکې امتونو هم کړی دی ،بنی اسرائیلو ته الله تعالی خلافت ورکړی وو.

"وَلَيُمَكِّنَنَّ لَهُمْ دِينَهُمُ الَّذِي ارْتَضَى لَهُمْ "مضبوط به کړي الله تعالی دوي لره قانون ددوي، چې الله تعالی ورله خوښ کړی دی، طاقت به ورله ورکړی، نو تنفیذ دعقوباتو به کولی شي. وَلَيُبَدِّلَنَّهُمْ مِنْ بَعْدِ خَوْفِهِمْ أَمْنًا، اوس په خوف کې دي، بیا به أمن راشي، "يَعْبُدُونَنِي" دعدی رضی الله عنه دحدیث مطابق معنی دا ده : چې یواځې مابه حاکم مني ،یعني تحلیل ،تحریم او سزاګانې به یواځې زما مني، "لَا يُشْرِكُونَ بِي شَيْئًا "دځان نه به تحلیل او تحریم نه کوي، مُقَنِّنه اداره به نه جوړوي، او چاچې انکار وکړو دالله تعالی دقانون نه. فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ،نو هم دغه خلق دالله تعالی ددین نه باغیان دي. دفسق معنی قرآن کریم دالله تعالی دحکم نه وتل کړې ده : فَفَسَقَ عَنْ أَمْرِ رَبِّهِ الایه( الکهف ).

الحاصل: دمؤمنانو سره الله تعالی لوظ داستخلاف کړی دی. اوس مؤمنان څوک دی؟ نو په آیت ۵۱ کې ددوي بیان شوی دی: إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَنْ يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ۵۱ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ(۵۲) ، "انما "کلمهٔ حصر ده ، مؤمن یواځې هغه دی چې دالله تعالی او درسول فیصلې، حکم او قضاء ته راوبللی شي یعني کله چې دچا سره جګړه راشي ،نو دی صرف الله تعالی اورسول ته فیصلې له ځي او وایي: "سَمِعْنَا" تهٔ زمونږ حاکم ئ، قبول کړو مونږ ستا أمر، " وَأَطَعْنَا "او راوړو مونږ خپله فیصله تاته، " وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ "په دې جمله کې درې قسمه تاکید دی:۱ـ جمله اسمیه ،۲ـ تعریف الامرین ، ۳ـ ضمیر فصل، یعني بس یواځې هم دغه خلق کامیاب دي. "وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ" ای :ومن تحاکم الی الله ـ "وَيَخْشَ اللَّهَ وَيَتَّقْهِ " ای: واسلم وجهه لله وهومؤمن ،یعنی الله تعالی ئ خپل حاکم او منلو ،هم په زړهٔ کې ،او هم په ظاهره، "فاولئک هم الفائزون "نو هم یواځې دغه خلق مراد ته رسیدونکي دي.

وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ قُلْ لَا تُقْسِمُوا طَاعَةٌ مَعْرُوفَةٌ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ (۵۳)،دوي دالله تعالی په نوم غټ غټ قسمونه خوري: که تهٔ راته أمر اوکړی، مونږ خپل هرڅه پریږدو، خروج عام مراد دی یوائی جهاد نه دی ،دادجذباتو اظهار دی ، تهٔ ورته اووایه :دالله اورسول دمنلو لپاره قسمونه مه

خورئ ، "طاعة معروفة " ښکاره معلوم طاعت دی هغه وکړئ ، یعنی خپلې فیصلې اوجګړې پیغمبرته ورل ،داایمان دی.

داستخلاف یا د تمکین فی الارض لوظ الله تعالی دهغه چا سره کړې، چی هغه دالله تعالی نه په دغه معنی ویریږي چې الله تعالی مې حاکم دی. نوداعقیده او ویره موقوف علیه دي دنیا دنعمتونو لپاره.

## دآخرت نعمتونه موقوف دي په خشیتِ إلهي باندې

١. إِنَّمَا تُنْذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمنَ بِالْغَيْبِ فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ (١١يس)، ستاویرول فائده هغه چاته رسوي چې دالله تعالی په قانون ئ ژوند تیرکړلو اوالله تعالی ئ بادشاه ومنلو په دنیاکې . "الرحمن " بادشاه، د "رحمن " معنی " ډیرمهربان " اخستل نه دي صحیح، ځکه فطرت دانسان دادی چې څوک ځومره مهربان وي دومره دهغه ویره ورکیږي. اوپه قرآن کې د رحمن نه ویریدل ایمان ګرځولې شوي دي.لهذا د "الرحمن " معنی ده: "بادشاه ،حاکم ".

"بالغیب " په دنیا کې، "فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَأَجْرٍ كَرِيمٍ " ددنیا نه به مغفور لاړشي،آخرت کې به الله تعالی جنت ورکړي .

٢ . وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا الایه (زمر ٧٣ )، جنت ته به هغه خلق ځي چې په دنیاکې دخپل حاکم نه ویریدلی وي ، داویره سوره نور بیان کړی ده :إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَنْ يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ(٥١ )وَمَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللهَ وَيَتَّقْهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ ( ٥٢).

٣. وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ (٢٥) قَالُوا إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ (٢٦) فَمَنَّ اللهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ (٢٧الطور)،جنتیان به دیوبل نه تپوس کوي ،چی ستاسو په دنیاکې ژوند څنګ تیرکړي وو ؟،نول به یوبل ته خپل حال داسې بیانوي :إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ، د "مُشفِق " یوعجمي معنی ده: شفقت "او مهرباني "، اوبله عربی معنی ده: ویریدونکی ،یعنی: مونږ په دنیاکې دالله تعالی نه ویریدو ، یعني مونږ الله تعالی خپل حاکم منلو نوالله تعالی په مونږ احسان وکړو اومونږ ئ د رسوایئ دعذاب نه وساتلو.

۴ ـ وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ (۴۶) وَمِنْ دُونِهِمَا جَنَّتَانِ(۶۲ الرحمن)، څوک چې د الله تعالی نه ویریږي د اسې چې خپل حاکم ئ مني هغه لپاره څلور جنتونه دي. "خوف، خشیت ، تقوی " ددې چې عام تفسیر کیږي نو په اعمالو سره کیږي حالانکه د دې آیت تفسیر د نبي علیه السلام نه په مرفوع حدیث کې د اسې منقول دي: عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رضي الله عنه : أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُصُّ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَقُول: ولِمنْ خافَ مقامَ رَبِّهِ جنَّتانِ قُلْتُ: وَإِنْ زَنى وَإِنْ سَرَقَ؟ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ الثَّانِيَةَ: وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جنَّتانِ فقلتُ الثانيةَ: وإِنْ زنى وسرق؟ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ الثَّالِثَةَ: وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَان فَقُلْتُ الثَّالِثَةَ: وَإِنْ زَنى وسرق؟ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي الدَّرْدَاء (رَوَاهُ أَحمد) ـ

او ریدونکي صحابه کرام دي، هغوي د الله تعالی په کلام او د نبي علیه السلام په خبرو باندې ښه پوهیدل ،ځکه هغوي د اسې خلق وو چې الله تعالی په خپله د هغوي د زړونو انتخاب کړې وو د ځان نه د ویریدو لپاره "أُولَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَى-وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَى وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا "،نو صحابي تپوس کوي چې سره د زنا او د غلا نه به دی جنت ته ځی؟ ،معلومه شوه چې د خوف او د تقوی هغه معنی نه ده مراد کومه چې زمونږ ذهنونو ته راغلې ده د دې آیتونو په اوریدو سره ،چې هغه د ګناه نه ځان ساتل دي ،لکه دروغ ،زنا ،غلا ـ نبی علیه السلام ورته په جواب کې فرمایي :ولمن خاف مقام ربه جنتان، په دویم ،او په دریم ځل ورته بیا دغه جواب ورکوي. نو اوس د دینه کوم خوف او ویره مراد ده؟ د اسې یو روایت د حضرت ابوذر رضی الله عنه نه هم منقول دی چې د هغې تفسیر او معنی بیانوي ،او د کتاب الله په شان د حدیث تفسیر چې په حدیث سره بیان شي د ا د ټولو نه احسن تفسیر دی،روایت دا دی :

عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ ثَوْبٌ أَبْيَضُ وَهُوَ نَائِمٌ ثُمَّ أَتَيْتُهُ وَقَدِ اسْتَيْقَظَ فَقَالَ:مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ ثُمَّ مَاتَ عَلَى ذَلِكَ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قَالَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قُلْتُ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قَالَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قُلْتُ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قَالَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ عَلَى رَغْمِ أَنْفِ أَبِي ذَرٍّ وَكَانَ أَبُو ذَرٍّ إِذَا حَدَّثَ بِهذَا قَالَ وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي ذَر ـ نو معلومه شوه "ولمن خاف مقام ربه جنتان "کې د خوف إلهي نه مراد "لااله الاالله "دی، او د اله معنی حاکم په راتلونکي اوراقو کې په دلائلو سره ذکر شوي ده ،نو معنی دا شوه چې څوک د الله تعالی نه د اسې او یریږي کومه ویره چې د حاکم نه وي ،او د حاکم ویره دا ده چې د هغهٔ قانون ومنلي شي ـ په دې خوف إلهي او خشیت رحماني باندې الله تعالی جنتونه ورکوي، او دا خوف إلهي خاص دی د علماؤ سره ، او علماء هغه وي چې ځان پوهه کړي په قرآن باندې د قرآن دلارې نه.

حاصل دا: چې په علم قرآني سره په بنده کې خوف إلهي او خشيت رحماني راځي، او په دې سره الله تعالى ددنيا او دآخرت ،ددواړو نعمتونه ورکوي -

ځومره احاديث چې دعلم په فضيلت کې راغلي دي، دهغې نه دقرآن کريم علم مراد دی، په دې باب کې ډيرزيات احاديث دي :

١۔ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٍ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ وَرَجُلٍ آتَاهُ اللهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِي بِهَا وَيعلمهَا - په دوه کسانو ته پسخيدل پکار دي، يو هغه ځوک چې الله تعالي ورته ډيرمال ورکړی وي ،نو دی ئ خرچ کوي دالله تعالى دحاکميت دراوستولپاره، او بل هغه ځوک چې الله تعالى ورته علم دقرآن ورکړی وي نو دې په قرآن دخلقو فيصلې کوي، او نورو ته ئ زده کوي-

٢۔ عن ابي هريرة رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَمِنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللهُ فِي عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيهِ وَمَنْ سَلَكَ طَرِيقًا يَلْتَمِسُ فِيهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللهُ لَهُ بِهِ طَرِيقًا إِلَى الْجَنَّةِ وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِي بَيْتٍ مِنْ بُيُوتِ اللهِ يَتْلُونَ كِتَابَ اللهِ وَيَتَدَارَسُونَهُ بَيْنَهُمْ إِلَّا نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ وَذَكَرَهُمُ اللهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ وَمَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نسبُه .(رَوَاهُ مُسلم)۔

٣۔ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَالْقُرْآنَ وَعَلِّمُوا النَّاسَ فَإِنِّي مَقْبُوضٌ . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ).

٤۔عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَاءَهُ الْمَوْتُ وَهُوَ يَطْلُبُ الْعِلْمَ لِيُحْيِيَ بِهِ الْإِسْلَامَ فَبَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّبِيِّينَ دَرَجَةٌ وَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ .(رَوَاهُ الدَّارِمِيّ)۔ نبي عليه السلام فرمايي: چاته مرګ راغی په داسې حال کې چې هغهٔ علم حاصلولو چې په هغې سره دالله تعالى حاکميت ژوندی کړي نو دهغهٔ او دنبيانو په مينځ کې يوه درجه فرق دی په جنت کې -

مراد دا سلام نه حاکميت إلهي دی ،څنګه چې شيخ الهند مولانا محمود حسن ديوبندی رحمه الله دقرآن په ترجمه کې داسلام معنى حکمبرداري کوي۔

۵۔ عَن أبي أُمَامَة الْبَاهِلِيّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: ذُكِرَ لِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا عَابِدٌ وَالْآخَرُ عَالِمٌ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ وَأَهْلَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ حَتَّى النَّمْلَةَ فِي جُحْرِهَا وَحَتَّى الْحُوتَ لَيُصَلُّونَ عَلَى معلم النَّاس الْخَيْر .(رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَقَالَ حسن غَرِيب) ۔ دنبی علیه السلام فضیلت چې څنګ ددې امت په یو ادنی سړي باندې دی، دغه شان فضیلت دعالم دی په عابد باندی ،بیا ئ دا آیت ولوستو :انمایخشی الله من عبادہ العلمآء ۔

۶ ۔ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ۔ (رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَقَالَ النَّوَوِيُّ فِي أَرْبَعِينِهِ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ رَوَيْنَاهُ فِي كتاب الْحجَّة بِإِسْنَاد صَحِيح)۔

۷۔ وَعَن ابْن عَبَّاس رضي الله عنهما قَالَ: من تعلم كتاب الله ثمّ اتبع مَا فِيهِ هَدَاهُ اللهُ مِنَ الضَّلَالَةِ فِي الدُّنْيَا وَوَقَاهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سُوءَ الْحِسَابِ۔

وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: مَنِ اقْتَدَى بِكِتَابِ اللهِ لَا يَضِلُّ فِي الدُّنْيَا وَلَا يَشْقَى فِي الْآخِرَةِ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يضل وَلَايشقى۔ (رواه رزين) ۔

۸۔ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَالْقُرْآنَ وَعَلِّمُوا النَّاسَ فَإِنِّي مَقْبُوضٌ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ)۔

۹ ۔ عَنْ الْحَسَنِ مُرْسَلًا قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلَيْنِ كَانَا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ أَحَدُهُمَا كَانَ عَالِمًا يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ وَالْآخَرُ يَصُومُ النَّهَارَ وَيَقُومُ اللَّيْلَ أَيُّهُمَا أَفْضَلُ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَضْلُ هَذَا الْعَالِمِ الَّذِي يُصَلِّي الْمَكْتُوبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ عَلَى الْعَابِدِ الَّذِي يَصُومُ النَّهَارَ وَيَقُومُ اللَّيْلَ كَفَضْلِي عَلَى أَدْنَاكُمْ . (رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ) ۔

۱۰۔ عَن ابْن عَبَّاس رضي الله عنهما قَالَ: تَدَارُسُ الْعِلْمِ سَاعَةً مِنَ اللَّيْلِ خَيْرٌ من إحيائها. (رَوَاهُ الدَّارمِيّ)۔

۱۱۔ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَجْلِسَيْنِ فِي مَسْجِدِهِ فَقَالَ: كِلَاهُمَا عَلَى خَيْرٍ وَأَحَدُهُمَا أَفْضَلُ مِنْ صَاحِبِهِ أَمَّا هَؤُلَاءِ فَيَدْعُونَ اللهَ وَيَرْغَبُونَ إِلَيْهِ فَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهُمْ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُمْ. وَأَمَّا هَؤُلَاءِ فَيَتَعَلَّمُونَ الْفِقْهَ أَوِ الْعِلْمَ وَيُعَلِّمُونَ الْجَاهِلَ فَهُمْ أَفْضَلُ وَإِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا ثمّ جَلَسَ فِيهِم. (رَوَاهُ الدَّارمِيّ)۔

## دعلم قسمونه

علامه حصکفي رحمه الله د تنویرالابصار په شرح کې په حواله د "الاشباه والنظائر" لیکي :العلوم ثلاثة : علم نضج وما احترق ،وهوعم النحووعلم الاصول ـ وعلم لانضج ولااحترق ،وهوعلم البیان والتفسیر ـ و علم نضج واحترق، وهوعلم الحدیث والفقه ـ (المقدمه للشامي ص۲۷،۲۸)ـ علم په درې قسمه دی ،اول هغه علم چې پوره استفاده ترې کیږي د پخې میوي په شان پوخ شوی دی ،خو اصول او جرړې ئ شته ـ هغه علم نحو اوعلم اصول دي ـ دویم هغه علم چي پخیدل ئ هم تمام شوي نه دي او جرړې ئ هم باقي پاتې دي، ختمي نه دي، ،هغه علم بیان او تفسیر دی ـ دریم هغه علم دی چې پوخ شوی هم دی اوجرړې ئ هم ختمې شوي دي، یعني اصول او فروع ئ پوره بیان شوي دي ـ هغه علم حدیث او علم فقه دي ـ

نو دعلم تفسیر اصول یعني جرړې نه دي ختم شوي، یعني ضرورت به ئ همیشه وي ،اوچې جرړې ئ پاتې دي نونوره نوره میوه به هم نیسي۔

**********

# دقرآن پاک نومونه

قرآن کریم دالله تعالی علم دی ، دالله تعالی دعلم نومونه په دوه قسمه دي: ۱۔ عام نوم ،۲۔ خاص نوم ۔عام نوم ئ "الوحی "دی، وحي په دوه قسمه ده :۱۔ وحي جلي، ۲۔ وحي خفي ۔ وحي جلي قرآن کریم اونور آسماني کتابونه او صحیفې دي۔ دهرې زمانې وحي جلي یو خاص نوم لري۔ دموسی علیه السلام د زمانې د "وحي جلي" خاص نوم "التوراة "دی ، د داود علیه السلام دوخت د "وحي جلي "نوم "زبور "دی ، د عیسی علیه السلام دهغې نوم "انجیل "دی ، دا دهغې ذاتي اوشخصي نومونه دي۔ په نبي علیه السلام باندي دنازل شوي وحي جلي ذاتي نومونه څلور دي:۱۔القرآن ،۲۔الفرقان ،۳۔الذکر ،۴۔الکتاب۔ صفتی نومونه چې علماو راجمع کړي دي ،مختلف دی ، علامه سیوطی رحمه الله په "الاتقان "کښی د ۲۰ پوری ذکرکړي دي۔ او شیخ القرآن محمد طاهر رحمه الله د ۱۰۰پوری ذکر کړي دي ،حسب التتبع والاستقراء۔ بعض دا دي: هدی ، رحمة ، بیّنة ، بیّنات ،موعظه،آیات،سبیل الله،مبارک،صراط الله ،صراط مستقیم ، الحق ، مجید، کریم ، فصل، عزیز، تنزیل ، المبین ، ماانزل الله ، نور، حکیم ،احسن الحدیث، حبل الله ، نعمت الله ، قیم ، بشیر ، نذیر ، رافع، واضع، شفاء، فضل الله ، خیر ، روح ۔

مونږ دقرآن کریم د ذاتي نومونولږ وضاحت کوو ،ځکه الله تعالی چې دیو څیزنوم ایږدي نودابه د حکمت نه خالي نه وي،په دې څلورو نومونوکې یوه خبره مشترکه ده، چې دا ټول مصادر دي،او تسمیه بالمصدر دمبالغې لپاره وي .

## ۱۔ القرآن

دقرآن پاک اولنی نوم "القرآن "دی معرفه اونکره ۔ دا مصدردی۔ صحیح خبره داده چې دا د "قَرَءَ" نه دی ،مصدر مبنی للمفعول بمعنی المقروء یعني لوستلی شوی ۔ قرآن ته قرآن ځکه وایي چې دالوستلې کیږي۔ په دې کې الف نون مزید تان هم دمبالغی دی ۔ نو په دې اعتبار سره دقرآن معنی ده چې دتلاوت وړ صرف اوصرف قرآن دی.داچی راغی نواوس به بل څه نه لوستلې کیږي۔ البته که ددۀ دخدمت لپاره څه ضرورت وي نو هغه به بطورخادم لوستلی کیږي، لکه حدیث،فقه او علوم آلیه۔ دنبي علیه السلام اودصحابه کرامو ایمان په قرآن کریم باندي هم دغه شان وو۔ نبی علیه السلام الله تعالی پیدا کړی داسي ووچی بغیردقرآن نه ئ بل څه نه شولوستلی ،دې ته "جبلّت "وئیلی کیږي ، او صحابه کرام رضي

الله عنهم تکليفاًداسی وويعني هغوي بل څه نه دی تلاوت کړی ، تردی چی دقرآن نه مخکې کومه وحي وه اوهغه منسوخ شوي وه، دهغی نه هم منع کړی شوي دي: عن جابران عمر بن الخطاب رضی الله عنه أتی رسول الله صلی الله علیه وسلم بنسخة من التوراة فقال یارسول الله هذه نسخة من التوراة فسکت فجعل یقرءووجه رسول الله صلی الله علیه وسلم یتغیر فقال ابوبکر ثکلتک الثواکل ماتری مابوجه رسول الله صلی الله علیه وسلم فنظر عمر الی وجه رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال اعوذبالله من غضب الله وغضب رسوله رضینا بالله ربا وبالاسلام دیناوبمحمد نبیافقال رسول الله صلی الله علیه وسلم والذی نفس محمد بیده لو بدالکم موسی فاتبعتموه وترکتمونی لضللتم عن سوآءالسبیل ولوکان حیاوادرک نبوتی لاتبعنی ـ(رواه الدارمی).

ترجمه ـ دحضرت جابررضی الله عنه نه روایت دی :حضرت عمررضی الله عنه دتورات یوه نسخه نبی علیه السلام ته راوړه او وايي :اے دالله رسوله ! دادتورات نسخه ده ،نبی علیه السلام چپ شو ،عمر رضی الله عنه شروع شوچی لوستله ئ، اودنبی علیه السلام مخ مبارک متغیر شو ، ابوبکر رضی الله عنه وفرمائیل: ودې ژاړي په تاباندې ژړیدونکي، تهٔ نه ګوری چی دنبی علیه السلام په مخ مبارک باندی څه دی؟،عمررضی الله عنه چی وکتل دنبی علیه السلام مخ مبارک ته، نو وې وئیل: پناه غواړم په الله سره دالله دغضب نه ،اودهغهٔ درسول دغضب نه، راضي یومونږ دالله په حاکم کیدو باندی، اوداسلام په قانون کیدوباندې ، اودمحمد په نبی کیدو باندې، نبی علیه السلام وفرمایل:قسم دی په هغه ذات باندی چی زماروح دهغه په لاس کې دی:که راشي تاسوته موسی علیه السلام اوتاسو دهغه اتباع وکړئ اوماپریږدئ نوورک به شئ دسمې لارې نه ،اوکه چرې هغه ژوندی وی ،او زمانبوت ئ موندلی وی، نو زما اتباع به ئ کوله۔

سره ددې نه چی موسی علیه السلام دالله تعالی پیغمبردی ، دی که څه وايي نوهغه به هم وحې وي ، خوهرکله چی نبی علیه السلام اوقرآن کریم راغی نودغه منسوخ شو ،اوس په هغې چلن نه شي کیدی۔ هغه خلق دې سوچ وکړي ،کوم چې حکومت په انساني جوړشوي قانون باندې کوي، مقننه اداره ورله قانون سازي کوي ،چی عمررضی الله عنه په موسی علیه السلام پسې روان شي نو ګمراه کیږي او که موسی ژوندې وی، نو اتباع دنبی علیه السلام پرې فرض کیږي، بله لار نشته۔ نودنورو خلقولپاره ګنجائش دکوم ځائ نه پیداشو؟. هرمسلمان دې سوچ وکړي چی نبی علیه السلام بحیثیت پیغمبر او

رسول ژوندی دی کنه ؟.دا دهر مسلمان عقیده ده چې بحیثیت انسان نبي علیه السلام وفات دی ، خونبوت د نبي علیه السلام موجود دی، دائمي دی. لهذا خلق چې دمحمد د عقوباتو او دقانون نه دآزاد عدلیه او دمطلق تقنین عقیده ساتي او دتقنین دجواز خبره کوي دغه خلق دنبي علیه السلام دنبوت نه منکر دي ،ځکه دنبي علیه السلام دنبوت په وخت کې که موسی علیه السلام هم ژوندی وی نو هغه به هم مکلف وو په اتباع دنبي علیه السلام باندې ،او دنبي علیه السلام نبوت ترقیامته پورې دی نودې خلقو له له کومې خوا جواز پیدا شو دقانون جوړولو ؟. نبي مطاع او حاکم وي ،الله تعالی فرمایي :وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَحِيمًا ( ٦٤ النساء)، مونږ نه دی لیګلی هیڅ یو پیغمبر مګرددې لپاره چې په هغهٔ فیصلې وکړی شي ،نبي علیه السلام ته الله تعالی امر کوي چې ټولو خلقو ته دا اعلان وکړه :وَأُمِرْتُ لِأَعْدِلَ بَيْنَكُمُ اللهُ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ لَنَا أَعْمَالُنَا وَلَكُمْ أَعْمَالُكُمْ لَا حُجَّةَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ اللهُ يَجْمَعُ بَيْنَنَا وَإِلَيْهِ الْمَصِيرُ (١٥الشوری)،او ما ته دا الله تعالي امردی چې ستاسو په مینځ کې فیصلې وکړم ،دغه شان هرنبي خپل امت ته داوئیلي دي.

دنبی علیه السلام وارثان علماء دي، نو عالم به هغه وی چی په قرآن پوهیږي، او رأسًا او أصلًا د قرآن کریم خدمت کوي .

## ۲-الفرقان

د قرآن کریم دویم نوم "الفرقان " دی ،دا هم مصدر دی ،بمعنی "الفارق".ددې درې معنې دي :۱ـ القرآن ،یعني "الفرقان " د قرآن نوم دی ،۲ـ دلیل ،۳ـ جدا کونکی حق د باطل نه ،۴ـ فیصله ، فی المعجم الوسیط: الفرقان القرآن ـوفی التنزیل العزیز :تبارک الذی نزّل الفرقان علی عبده لیکون للعالمین نذیرا ـ سوررة الفرقان ـ والبرهان والحجة وکلّ مافرّق بین الحقّ والباطل ـ

هم دا وجه وه چی نبي علیه السلام او صحابه کرامو د قرآن نه علاوه بل څه ته د فیصلې لپاره رجوع نه ده کړې،او نه ئ امت ته ددې اجازه ورکړې ده چې د کتاب الله نه علاوه په بل یو قانون یا دستور څه جګړه او اختلاف حل کړي. یعني دهغوي په قرآن کریم باندې دا ایمان وو چې حاکم او فیصله کونکی دا الله تعالی کتاب دی،او که څوک دی ته تحاکم ونکړي مؤمن نه دی: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ

بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ٦٥ النساء ، إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللهُ وَلَا تَكُنْ لِلْخَائِنِينَ خَصِيمًا (١٠٥المائده) ، وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ .(المائده ٤٤) ، وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ، (٤٥المائده ) ، وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ (٤٧المائده ) ـ

امام ماتريدی رحمه الله تعالی په " تاويلات "کې فرمايي :دا دري واړه الفاظ په يوه معنی دي يعني ظلم او فسق هم په معنی د کفر دي ،ځکه د "**ظلم** "معنی ده: " وضع الشيئ فی غير محله " ،دوي هم د الله تعالی حق بل ته ورکړې وو او دا کفر دی ،دغه شان د "**فسق**" معنی ده " خروج عن طاعة الله " ،دوي د الله تعالی د قانون يعني طاعت نه اووتل ،او په بل قانون کې ننوتل ،يعني د بل قانون طاعت ئ اختيار کړو ،دا هم کفر دي ـ

## په قانونِ إلهي سره د قضاء ترتيب

نبی عليه السلام او صحابه کرامو بغير د کتاب الله نه په بل څه فيصله نه ده کړې، او کله چې په قرآن کې به يو حکم اونه موندلو نو بيا به ئ رجوع حديث ته کوله ،١ـعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ: أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَعَثَهُ إِلَى الْيَمين قَالَ: كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ؟ قَالَ: أَقْضِي بِكِتَابِ اللهِ قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللهِ؟ قَالَ: فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللهِ؟ قَالَ: أَجْتَهِدُ رَأْيِي وَلَا آلُو قَالَ: فَضَرَبَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى صَدْرِهِ وَقَالَ: الْحَمْدُ لله الَّذِي وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللهِ لِمَا يَرْضَى بِهِ رَسُولُ اللهِ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ وَأَبُو دَاوُد والدارمي )ـ

ترجمه: حضرت معاذ رضی الله عنه نه روايت دی کله چې نبي عليه السلام زۀ يمن ته ليګلم ،ما ته ئ وئيل ؛ کله چې تا ته فيصله راشي تۀ به څنګ فيصله کوی ؟ ،معاذ رضی الله عنه اووي زۀ به فيصله کوم په کتاب الله سره ، نبي عليه السلام وئيل :که تۀ بيا نه مومی دغه فيصله په کتاب الله کې نو څه به کوی ؟،**معاذ رضی الله عنه وئيل**: د نبي عليه السلام په سنت سره به ئ کومه ، نبي عليه السلام وئيل :که په سنت د رسول الله کې ئ بيا نه مومی ،بيا به څه کوی ؟ ،**معاذ رضی الله عنه وئيل** زۀ به اجتهاد کوم په خپل علم او په عقل سره ،او حق ته رسيدو کې به څه کوتاهي نه کوم ـ نبي عليه السلام لاس مبارک د هغه سينې له

راپريخودو ،او وې فرمائيل: ټول تعريفونه الله تعالى له دي چې دخپل رسول ٱستاذي له ئ دهغه څه توفيق ورکړلو چې دالله تعالى رسول په راضي دى.

ددې حديث نه معلومه شوه چې قرآن او حديث دواړه يوشان حجت نه دي ،بلکه مرتبه دحديث په قرآن پسې ده. لهذا دانعره چې قرآن وسنت منو ،که ددى مطلب داوي چې دواړه په يوه مرتبه کې دي ،نودا عقيده غلطه ده ،صحيح عقيده داده :اول کتاب الله بيا سنةرسول الله. ددې وجې نه امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي: کوم حديث دقرآن سره موافق وو ، نوهغه أخلم ،کوم چې موافق نه وو نوهغې کې به تاويل کوم چې دقرآن موافق شي ،که تاويل نه کيدو نودغه حديث به پريږدم اوکتاب الله به اخلم ،ځکه هغه حديث په حقيقت کې حديث نه دى چې دقرآن مخالف وي ،کوم خلق چې په داسې حديثونوډيره تکيه کوي اودقرآن په مقابل کې ئ مخې ته کوي هغوي رسول او الله برابروي ،بلکه رسول په الله غالب کوي ، چې رسول به مطاع او الله به مطيع وګرځي ،هرسړى دى په دى فکر وکړي چې داطريقه اونظر ايمان جوړيدې شي. دا أصل دى. اوهم دغه مطلب دى دأهل السنة والجماعة.

وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ. الحشر ٧، دا آيت کريمه د حديث په حجيت باندې دليل دى ،قطع نظر درتبې اودترتيب نه ، ترتيب په حديث معاذ کې بيان شو.

٢. دحضرت عمر رضى الله عنه په دورکې د عدةالمطلقه يوه مسئله راغله ، عمر رضى الله عنه وئيل: په دې عدت دخاوند په کور کې دى. چاوئيل: فاطمه بنت قيس رضى الله عنهاوايي: مطلّقه دخاوند دکور نه علاو بل ځائ کې هم عدت تيرولې شي. عمررضى الله عنه دهغې نه تپوس وکړو. هغې وئيل: ماته نبى عليه السلام اجازت راکړې وو ،کله چې زما خاوند ما ته طلاق راکړي وو ،داهم صحابيه ده ،عمررضى الله عنه دصحابه کرامو نه تپوس وکړو ،هغوى دعمررضى الله عنه سره موافقه وکړه او وې وئيل: داد قرآن حکم دى ؛ يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ وَاتَّقُوا اللهَ رَبَّكُمْ لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ إِلَّا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ وَتِلْكَ حُدُودُ اللهِ وَمَنْ يَتَعَدَّ حُدُودَ اللهِ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهُ لَا تَدْرِي لَعَلَّ اللهَ يُحْدِثُ بَعْدَ ذَلِكَ أَمْرًا.( الطلاق ١).

د حضرت فاطمه رضى الله عنها حديث خبرواحد دى ،اوبل طرف ته کتاب الله دى، نو عمررضى الله عنه وفرمايل: لاندع کتاب الله وسنة رسوله بقول امرأة ،مونږ يعني صحابه دالله کتاب او درسول حکم په

خبرواحد سره نه شو پریخودلی ـ نوددی زمانې غیرمقلد څنګ په خبرواحد سره کتاب الله پرېږدي؟، اوپه جرابو مسح کوي ؟.

هرچی أئمه مجتهدین دي نو هغه که خطأ شوي دي نو هم مأجور دي، اوددی زمانې داخو په ضد باندی دي ،نو دا ملعون دی ، دأهل السنة والجماعة اصولي موقف هم دغه دی چی اول نمبر به کتاب الله وي بیا به حدیث وي.

نبی علیه السلام ته الله تعالی امر کوي : قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ،تهٔ اعلان وکړه چي زهٔ د کتاب الله یعني دالله تعالی دکتاب حکم نه شم بدلولې ،اوکه په قرآن عمل اونه کړم نوجهنم ته ځم ، اودنن زمانی غیرمقلد قرآن پریخودی دی ،او دجنت طمع ساتي ـ

حدیث کې نبی علیه السلام فرمايي: المراء فی القرآن کفر ـ دقرآن سره مقابله کول کفردی، قرآن کې تعارض اواختلاف کول کفردی ـ دصحابه کرامو اتباع په نور امت باندې فرض ده ـ هغوي چی څنګ قرآن اوحدیث منلی وو ،دغه شان به ئ نور امت مني ـ که نه هندوستړی خدائ ناراضه.

## ٣-الذکر

دقرآن کریم دریم نوم " الذکر " دی ـ داهم مصدردی، په قرآن پاک کې دقرآن دنوم په حیث هم راغلی دی ،لکه الله تعالی فرمايي: إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ (الحجر٩) ـ او د "تدبر" او د "پوهې " په معنی هم راغلی دی: وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ (القمر١٧)، یقینًا مونږقرآن آسان کړی دی دخلقو دپوهې لپاره ، څوک شته چی ځان پرې پوهه کړي؟ـ "الذکر " مصدر دی په معنی داسم فاعل ذوکذا ،پشان د " لابن" او "تأمر" ،ای ذولبن اوذوتمر ،نوددی هم معنی ده "ذوذکر " : ص والقران ذی الذکر ، "ذی الذکر "یعنی یادونکی دلوظ ـ

قرآن انسان ته هغه لوظ یادوي کوم چی ددهٔ نه الله تعالی په عالم ارواح کې اخستې وو: ألست بربکم ،د دغې لوظ دپوره کولو لپاره ورته الله تعالی قرآن یادونکی راولیګلو ،چی تر قیامته پوری به انسان ته دغه لوظ یادوي ،هم ددغې سببه دقرآن نوم "الذکر " دی ـ

## ۴۔ الکتاب

دقرآن کریم څلورم نوم "الکتاب" دی۔ داهم مصدردی ،بمعنی مفعول ،ای:المکتوب علی العباد۔ چې دالله تعالی دطرفه فرض کړې شوې او لازم ګرځولې شوی دی۔

**معنی الکتاب** : قرآن ته چې "الکتاب" یا "کتاب" وئیلي شوي دي دهغې معنی ده "امرلازم،فرض، قانون"۔ لفظ کتاب د فرض په معنی په قرآن پاک کې عام مستعمل دی ، دغه شان ددې فعل هم په دغه معنی کې مستعمل دی ۔۱۔وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ كِتٰبَ اللهِ عَلَيْكُمْ الایه (النساء ۲۴)،ددې نه مخکې آیتونو کې مُحرّمات بیان شول ، اوددې نه روستو بیان دمحللاتوذکر دی۔ مولانا محمود حسن دیوبندی رحمه الله ددې ترجمه کوي: حکم ہوا اللہ کا تم پر۔ په حاشیه کې شبیراحمد عثمانی رحمه الله لیکي :یہ اللہ کا حکم ہے اسکی پابندی تم پرلازم ہے، یعنی قانون دی دالله تعالی ،ځکه لازم پابندی د قانون کیږی.

۲۔ إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا ۔(النساء ۱۰۳)،یقیناً مونځ چې هرنوع مونځ وی سفر وی که حضر ،امن وي که خوف فرض کړی شوی دی په مؤمنانوباندې وخت په وخت۔ددې نه مخکې په آیت۱۰۱ وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَاةِ الایه کې دصلوة قصر ذکر دی۔إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا الایه کې دصلوة خوف بیان دی۔ فَإِذَا اطْمَأْنَنْتُمْ فَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ ای من القصروالخوف، کې دصلوة حضرذکردی۔ددی دری واړو حکم الله تعالی په قسم سره یوبیان کړی دی: إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَوْقُوتًا۔

۳۔ دغه شان ددې مصدر فعل هم دقانون په معنی استعمال شوی دی: يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْأُنْثَى بِالْأُنْثَى فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ ذَلِكَ تَخْفِيفٌ مِنْ رَبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ فَمَنِ اعْتَدَى بَعْدَ ذَلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۔(۱۷۸البقره)، "کتب علیکم "معنی ده "لازم ،فرض او قانون ګرځولی شوی دی ستاسو لپاره "۔

۴۔ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ۔( ۱۸۳البقره )۔

مولانامحمود حسن دیوبندی رحمه الله ترجمه کوي: بیشک نماز مسلمانوں پر فرض ہے اپنی مقررہ وقتوں میں۔ حاشیه کې شبیراحمد عثماني رحمه الله لیکي:بیشک نماز فرض ہے وقت معین میں سفر حضر اطمینان خوف ہر حالت میں اسی وقت

میں ادا کرنا ضروری ہے یہ نہیں کہ جب چاہو پڑھ لو۔ لهذا دوخت نه مخکې مونځ نشته ،او که حديث کې د مونځونو په حق کې د جمع لفظ راغلی وي نو دهغې دا سې مطلب هرګز نه اخستی کیږي چې دکلام الله دصريح نص معارض او مخالف وګرځي ،او په هغې سره دکتاب الله نبذ راشي۔ داکار مخکې کافرانو کړي دی۔ اوس دې ته عمل بالحديث وئيل زندقت او ضلالت دی.

۵۔ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ۔ (المائده ۴۵) .فرض کړی وو مونږ په أهل کتابو باندی قصاص په نفس او په اطرافو دانسان کې ۔

الحاصل "کتاب" بمعنی فرض، حکم لازم، أمر لازم دی، نن دور کې ددی لپاره لفظ ددستور، قانون او آئین استعمالیږي۔

عام علماءد "الکتاب" معنی کوي چی په څه لیکلو مشتمل وي، مرتب وي، اول او آخر لري، خو قرآن ته په دی معنی باندی کتاب(مکتوب في قرطاس) وئيل په ډيرو وجوه سره غلط دي:

۱۔ دقرآن د اصطلاح او د استعمال نه خلاف ده ۔

۲۔ دا صرف د "تورات" صفت وو چې لیکلی شوی نازل شوی وو :وَكَتَبْنَا لَهُ فِي الْأَلْوَاحِ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ مَوْعِظَةً وَتَفْصِيلًا لِكُلِّ شَيْءٍ فَخُذْهَا بِقُوَّةٍ وَأْمُرْ قَوْمَكَ يَأْخُذُوا بِأَحْسَنِهَا سَأُرِيكُمْ دَارَ الْفَاسِقِينَ۔(الاعراف ۱۴۵)۔

۳۔ مشرکینو دنبی علیه السلام نه مطالبه کړې وه چی تهٔ هم دموسی علیه السلام په شان دالله تعالی دطرفه لیکلی شوی قانون راوړه : لولا أوتي مثل ما أوتي موسی الایه ۔الله تعالی په صراحت سره فرمایي: مونږلیکلې قرآن نه نازلو ځکه چې دوي ئ بیا هم نه مني: وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتَابًا فِي قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوهُ بِأَيْدِيهِمْ لَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَذَا إِلَّا سِحْرٌ مُبِينٌ۔ (الانعام ۷)۔

۴۔ طريقه دنزول دقرآن تعلیم ده:الرحمن علم القرآن۔ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى .عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَى ۔ هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ۔ (الجمعه۲). الله تعالی ئ جبرئيل علیه السلام ته ښايي ،او جبرئل علیه السلام ئ نبی علیه السلام ته، او نبي

علیه السلام ئ صحابه کراموته. او په تعلیم کې غوره طریقه هم هغه ده چې الله تعالی اختیار کړې ده چې نجمًا نجمًا یعني لږلږ او د ضرورت مناسب تعلیم ورکړی شي.

**۵. که د "الکتاب "معنی په " مکتوب فی قرطاس " سره وشي ،نو په دی سره د "الکتاب " مقصود دي معنی "قانون او دستور " ورکیږي ،او معنوي زور او قوت ئ ختمیږی، چي د حاکمیت او د حکومت پیغام دی پکې، لکه څنګه چې نورنو مونه د قرآن دلالت کوي د الله تعالی په حاکمیت .القرآن، الفرقان، الذکر.**

**۶. قرآن کریم "مکتوب فی قرطاس " ګرځیدلی دی د حضرت عثمان** رضی الله عنه **په دور کې.**

**لهذا د "الکتاب "معنی پکار ده " قانون، دستور، آئین، حکم ،أمرلازم " .**

**القرآن ،الفرقان، الکتاب، الذکر ،دا څلور واړه د قرآن ذاتي او شخصي نومونه دي، په دې باندې پنځه قرائن دي په قرآن پاک کې :**

**۱. قرآن کې دا اسماء موصوف استعمال شوی دی:** الر تلک آیات الکتاب الحکیم ،(یونس۱). إنه لقرآن کریم (الواقعه). بل هو قرآن مجید في لوح محفوظ ،(البروج) .

**۲ .دی ته د آیات اضافت شوی دی:** الر تلک آیات الکتاب وقرآن مبین (الحجر۱). **دلته د آیات اضافت " الکتاب او قرآن "ته شوی دی او د قرآن صفت ئ "مبین " راوړی دی.**

**۳ . دامسند الیه واقع کیږي:** ان هذا القران یهدی للتی هی اقوم **،او که دا اسماء خبر واقع شي نو بیا هم موصوف بصفة وي:** إنّه لقران کریم. **چی مقصود پکې د قرآن عظمت دی.**

**۴. د فعل انزال او تنزیل معمول به اقع کیږي :**تنزیل الکتب لاریب فیه، اناا نزلناعلیک الکتب.

**۵. ضمیر د غائب ورته راجع کیږي :** إِنَّآ أَنزَلۡنَٰهُ فِي لَيۡلَةِ ٱلۡقَدۡرِ.

**په دې وجوه سره ددې اسماء عَلَمیت معلومیږي د قرآن لپاره . باقی نومونه د قرآن صفتی دی.**

# ۳- نسبت د علم

د نورو علومو لپاره وئيلې کيږي "واضع العلم" ،او د علم تفسير لپاره "نسبت د علم "مناسب دی، چې قرآني علم چاته منسوب دی ؟، نو ددې نسبت الله تعالی ته دی ،۱ ـ لَٰكِنِ اللهُ يَشْهَدُ بِمَآ أَنزَلَ إِلَيْكَ أَنزَلَهُ بِعِلْمِهِ وَالْمَلَائِكَةُ يَشْهَدُونَ وَكَفَىٰ بِاللهِ شَهِيدًا (النساء ۱۶۶)، الله تعالی قسم کوي چې: په تا ئ څه نازل کړي دي ،دا د الله تعالی علم دی، ابن کثیر رحمه الله معنی کوي "أنزل فيه علمه "،ملائک هم ددې ګواهي ور کوي۔

مخکې آيتونو کې د وحي تذکره وکړله، چې ټولو انبياء کرامو ته يو شان وحې راغلې ده ،اوس په دې آيت کې وايي چې دا وحي دا الله تعالی علم دی۔۲۔ فَإِلَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا أُنزِلَ بِعِلْمِ اللهِ وَأَن لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَهَلْ أَنتُم مُّسْلِمُونَ (هود)۔ای متلبسًا بعلم الله۔که دا خلق دليل نه شي راوړې په خپله مدعی باندې ،نو تاسو دا عقيده وساتئ چې دا قرآن دا الله تعالی علم دی ،او هغه علم دا دی چې: لااله الاالله ،الله تعالی يو ائې حاکم دی، نو آيا تاسو الله تعالی خپل حاکم منئ؟۔

حاصل دا چې قرآن دا الله تعالی علم او قانون دی، يعني په دی کې دا الله تعالی فيصلې دي ،دا ئ د عرش نه دانسانانو لپاره زمکې ته راوليګلو په واسطه دانبياء کرامو ،آخري پيغمبر ئ نبی عليه السلام دی، دی به بتقاضا بشريت ددنيا نه لاړشي ،ليکن دده ٔ رسالت به ترقيامته پوری وي۔ لهذا بل قانون او قانون سازاداره نه شي جوړيدې، که دغه ومنلې شي نوبيا دنبی عليه السلام د رسالت دبقاء نه انکار راځي، چهٔ په حقيقت کې دا دختم نبوت نه انکار دی ،دداسې خلقو او دقاديانانو په مينځ کې څه فرق نه پاتې کيږي، ځکه په يوه زمکه دوه حکومتونه نه چليږي چې محمد دې هم مطاع وي او پارلمان هم، که پارلمان مطاع ومنلې شي نو محمد بيا مطاع نه پاتې کيږي، اګرکه نعتونو کې به ئ ستايي دا دځان سره دهوکه ده،اقبال وايي:

مباش ازاں قوم کہ فریبند حق را بسجودے ونبی را بدرودے

ملا کو جو ہے ہند میں سجدے کی آزادی ناداں یہ سمجھتا ہے کہ اسلام ہے آزاد

يو ائې عبادت دا الله تعالی حق نه دی، بلکه عقوبات او حکومت هم دا الله تعالی حق دی۔ که تهٔ په هغه محمد باندی درود واې چې مطاع ئ منی، نوبيا پارلمان څنګ مطاع او حاکم ګنړی۔ چاچې پارلمان

حاکم او مقنن ومنلونو ددۀ په عقیده کې محمد مطاع او حاکم نه دی، په قرآن کې الله تعالی فرمایي:
يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ (الحجرات١)، چې د الله تعالی او د رسول قانون شته نو تاسو بل قانون مه جوړوئ، حاشیه کې شبیر احمد عثماني رحمه الله لیکي: یعنی جس معاملے میں پہلے سے اللہ اور رسول کیطرف سے حکم ملنے کی توقع ہو تو اسکا فیصلہ پہلے ہی آگے بڑھ کر اپنی رای سے مت کر بیٹھو بلکہ احکام الہی کا انتظار کرو---------- ---- اپنی اغراض ومقاصد کو انکی احکام پر مقدم نہ رکھو بلکہ اپنے خواہشات کو احکام سماویہ کے تابع بناؤ۔ احکام وارشادات دنبی علیه السلام پائ ته رسیدلي دي، دیته ختم نبوت وایي، لهذا بل مقنن به نه وی، مسلمانان به "مقننه اداره" نه جوړوي بلکه دا سماني قانون دتطبیق لپاره به "مطبقه اداره" جوړوي۔ که څوک دا او وایي چې دا اداري دأمور مباحه لپاره جوړولې شوي دي، نو دا خبره غلطه او دروغ ده، ځکه داول وخت نه دې څوک ثابت کړي چې یو مجرم پخپله اقرار کړی وي یا ئ جرم دګواهانو په ګواهی سره ثابت شوی وي او دوي په قرآني سزا جاري کړي وي؟۔ دشرعي سزا مطالبه دآئین نه بغاوت دی، چې انجام ئ مرګ دی، او هم دا حقیقت دی۔ نو په دې سره دالله تعالی او دمحمد دقانون آئیني حیثیت ختم شو، ځکه پخپله خو څوک په ځان باندی عقوبات شرعیه نه شي جاري کولې بلکه حاکمانو ته أمر دی چې حد په جاری کړئ: الزَّانِيَةُ وَالزَّانِي فَاجْلِدُوا كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ الایه (النور ٢).

الحاصل: قرآن دالله تعالی علم دی، دا الله تعالی دحکومت نه عبارت دی، ددې نسبت الله تعالی ته کیږي، دا د الله تعالی قانون دی، بل قانون به نه وي، دپارلمان یعني دمقننه اداري جواز نشته، ځکه په یو ملک کښې دوه حکومتونه یعني دوه قانونه نشي عملي کیدی، لکه څنګه چې په یوه سینه کې دوه زړونه جمع کیدی نه شي: مَاجَعَلَ اللهُ لِرَجُلٍ مِن قَلبَينِ فِي جَوفِه۔

# ۴ - تعریف دکتاب الله

اماالکتاب فالقرآن المنزل علی الرسول المکتوب فی المصاحف المنقول عنه الینا نقلا متواترا بلا شبهة -( نور الانوار)۔

د قرآن نزول دنبي علیه السلام په ژوند کې سرته رسیدلی دی ـ د نبي علیه السلام په أمر کاتبانو دنبي علیه السلام په وخت کې لیکلی دی۔

د حضرت عثمان رضی الله عنه په دور کې په یو مصحف کې مرتب شوی دی۔

"المنقول عنه "ـقرآن کریم ټول متواتر دی ."کلمة واحدة" ، د سوره فاتحه نه تر "والناس" پورې ټول یو شان متواتر دی ، په خلاف د أحادیث مبارکه چې ځنې متواتر ، او ځنې مشهور ، او ځنې خبرواحد دي ـ

مصحفي یعني کتابي شکل ورته د حضرت عثمان رضی الله عنه په دور کې د هغهٔ په أمر صحابه کرامو ورکړی دی ، د نبی علیه السلام او د شیخینو په زمانه کې دا موجوده ترتیب نه وو ، لیکن بیا ئ هم نسبت نبی علیه السلام ته کیږي، ځکه کوم څیز چی د صحابه کرامو نه په کوم ډول ثابت دی ، نو دا د نبی علیه السلام نه هم په دغه ډول ثابت دي ـ قرآن عظیم الشان په موجوده صورت کې د صحابه کرامو نه په تواتر سره ثابت دی ، نو هم دغه قرآن نبي علیه السلام ته منسوب دی ، بل نه ـ او هم دغه قرآن په لوح محفوظ کې دی، بل نه ـ لکه چې په تعریف د کتاب الله کې په صراحت سره ذکر دي ـ د دې نه خلاف کونکی کافر دی، لکه روافض ـ بیا دا حکم یوائې په قرآن پورې خاص نه دی بلکه :

۱ـ شل رکعته تراویح د حضرت عمر رضی الله عنه د زمانی نه په تواتر سره ثابتی دی، نو د شل رکعته تراویح نسبت به نبي علیه السلام ته کیږي، او د تواتر نه انکار کفر دی، فتاوی عالمګیري کې دي: " من انکر التواتر فقد کفر " ـ

۲ ـ دغه شان آذان ثاني د جُمعې د عثمان رضی الله عنه د دور نه په تواتر سره ثابت دی ـ

۳ـ دغه شان د ازواج مطهرات ازواج النبی علیه السلام کیدل په تواتر سره ثابت دي، او د دوي پاکوالی په قرآن سره ثابت دی، نو په دوي باندې تهمت لګول د تواتر نه انکار دی، او د نبی علیه السلام د طیب کیدلو نه انکار دی ، ځکه د نبي علیه السلام او د هغهٔ د بیبیانو د تهمت د تور نه پاک کیدل په نص د قرآن سره ثابت دي ـ هر پیغمبر طیب وي، نو د هغه بي بي به هم طیبه وي "الخبیثات للخبیثین والخبیثون للخبیثات والطیبات للطیبین والطیبون للطیبات" ، په دی کې د مسند الیه حصر په مسند کې دی او بیا مسند الیه نبي علیه السلام او ازواج مطهرات دواړه ګرځولي شوي دي نو چا چې په ازواج مطهرات باندې تهمت ولګولو نو دا کافر دی په وجه د تواتر د انکار ـ

۴ـ دغه شان دصحابه کرامو صحابه کیدل هم په تواتر سره ثابت دي لهذا که چاد یو صحابي دصحابیت نه انکار وکړو ، یا ئ تکفیر وکړو، یا ئ ورته بدعتی اووې ،اګرکۀ دی د خپل قول تاویل کوي خو داکافر دی.

۵ ـ داسلام کلمۀ توحید اوکلمۀ طیبه "لااله الاالله محمد رسول الله "،داپه تواتر سره ثابت ده.د یوعام سړي نه تپوس وکړه چی کلمه اووایه، نو هغه به درته دا کلمه وایي، داد ایمان کلمه ده، په دې سره سړی مسلمانیږي، دلیل ئ څه دی ؟،نو هغه تواتر دی،په کوم دلیل سره چی قرآن ثابت دی یعني تواتر،هم په دغه دلیل داکلمه ثابته ده ، لهذا ددې نه انکار کول ،داد تواتر نه انکار کول دی.

۶ـ خلافت دابوبکر رضی الله عنه هم په تواتر سره ثابت دی ،چی دا اولنی خلیفه دی بعد وفات النبی علیه السلام.

۷ـ خلافت دعمر او دعثمان رضی الله عنهما هم په تواتر سره ثابت دی.

۸ ـ خلافت دعلی رضی الله عنه متواتر دی. اګرکه په دغه وخت کې معاویه رضی الله عنه هم خلیفه وو.

۹ـ خلافت دمعاویه رضی الله عنه متواتر دی .

۱۰ـ پنځه مونځونه به تواتر سره ثابت دي .

۱۱ـ عدالت دجمیع صحابه کرامو په تواتر سره ثابت دی ،یو صحابي ته هم د بدعت نسبت کول د تواترنه انکار دی ،کفر دی.عمریاعثمان یوبل یوصحابي رضی الله عنهم ته بدعتی وئیل کفر دی.

۱۲ـ "غسل الرجلین فی الوضوء "دقرآن نه ثابت دي، داهم متواتر دی ،ددې معارضه او رد په خبرواحد سره زندقت دی.

۱۳ـ مسح علی الخفین په تواتر سره ثابت ده ،ددې نه انکار کفر دی.

۱۴ـ درې طلاقه درې دي،داهم دقرآن نه ثابت دي :الطلاق مرتان .......فان طلقها ،نو ددې رد او نبذ هم په خبرواحد سره ناجائز دي ،اوتحلیل دحرامِ قطعي دی چې نتیجه او حکم ئ کفر ګرځي.

**۱۵**۔ کوم ځیزچی په قرون مشهود لهابالخیرکې مشروع وي ،اوروسته امت ته په تواتر سره رارسیدلې وي، نود هغې حکم دمتواتردی ،ددې وجې نه په کُتُب فتاوی کې دا خبره لیکلي ده چی دامام ابوحنیفه رحمه الله دا جتهاد نه انکار کول کفر دی ،ځکه دهغهٔ اجتهاد په تواتر سره ثابت دی۔ نود فقه حنفي نه انکار دا د توا تر نه انکار دی ،کفر دی ۔

**فرق په مینځ دکتاب الله اوسنتِ رسول کې**

قرآن کریم دالله تعالی کتاب دی ،دقرآن کریم حیثیت ممتاز دی ،ځکه دا دخالق کلام دی۔ څنګ چی دالله تعالی ذات ممتازدی، نودغه شان ئ کلام هم ممتاز دی ۔

په شریعت کې دلیل یو اځې قرآن نه دی،ددې مطلب دادی چې ټول احکام یو اځې په قرآن کې نه دي، بلکه نبی علیه السلام هم ډیر احکام بیان کړي دي، چی ورته سنت وایي ،قرآن او سنت دواړه د اسلام لپاره منبع،أصل او اساس دی ،خو په دې کې فرق شته دی ،د دور حاضر جاهلانو دا فرق ختم کړی دی ، او په دې سره ئ خپل باطني کفر ته لاره برابر کړې ده ۔اعاذناالله من الفِتن۔

۱۔ قرآن کریم علی الاطلاق دلیل دی ،یعني هره خبره چي قرآن بیان کړه هغه دلیل دی ،ددي دحجیت لپاره سند ،د راوي حال ،صحیح ،حسن ،هیڅ یو شیئ نشته ،په خلاف دحدیث شریف چې حدیث علی الاطلاق دلیل نه دی بلکه دهغې ددلیل کیدلو لپاره شرئط دي ۔لهذا دا فرض دي چې کتاب الله ته اوله درجه ورکړی شی۔

۲۔ سنّت ځکه دلیل دی چې قرآن کریم دلیل ګرځولی دی: مَا أَفَاءَ اللهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى فَلِلّهِ وَلِلرَّسُولِ وَلِذِي الْقُرْبَى وَالْيَتَامَى وَالْمَسَاكِينِ وَابْنِ السَّبِيلِ كَيْ لَا يَكُونَ دُولَةً بَيْنَ الْأَغْنِيَاءِ مِنْكُمْ وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوا وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ۔(الحشر ۷)، په خلاف د قرآن کریم چې دهغې ددلیل کیدلو لپاره دحدیث نه دلیل ته حاجت نشته۔ لهذا ددې دواړو حجتونو سره معامله هغه شان پکار ده ، څنګ چې نبی علیه السلام او صحابه کرامو کړی ده ،یعني اول به رجوع کتاب الله ته کیږي، که په کتاب الله کې نه وي نو بیا به سنت ته۔ دحضرت معاذ رضی الله عنه نه نبی علیه السلام تپوس وکړو:فیصله به په څه کوی؟ ،هغه اووئیل: په کتاب الله ۔نبی علیه السلام بیا تپوس وکړو :که په کتاب الله کې نه وی ؟،هغه: وئیل چې بیا به په سنتِ رسول فیصله کوم ،او که سنت کې هم نه وه نو بیا به خپل اجتهاد کوم۔

۳ ـ قرآن کریم وحي جلي ده ،اوحدیث شریف وحي خفي ده۔

د وحي جلي دنزول طریقه د وحي خفي دنزول نه جدا ده ـ وحي جلي دالله تعالی له خوانه تعلیم دی نبي علیه السلام ته په واسطه دجبریل علیه السلام : اَلرَّحمنُ عَلَّمَ القُرآنَ ـ وَمَا یَنْطِقُ عَنِ الْهَوَى، إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَى ،عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَى ، ذُو مِرَّةٍ فَاسْتَوَى ـ او په تعلیم کې معلِم اومتعلِّم حاضر وي قلبًا اوقالبًا ، او استفاده د قریب نه کیږي،داصورت قرآن پاک ذکر کړی دی :وَهُوَ بِالْأُفُقِ الْأَعْلَى (۷) ثُمَّ دَنَا فَتَدَلَّى (۸) فَكَانَ قَابَ قَوْسَيْنِ أَوْ أَدْنَى (۹) فَأَوْحَى إِلَى عَبْدِهِ مَا أَوْحَى (۱۰النجم) په وحي جلي کې به نبی علیه السلام هر قسم مشغولتیا پریخودله ،او ربط اوتعلق به ئ دآسمان سره وو ـ

د وحي جلي نزول به داسې وو چې سره ددیني او دنیوي کارونو په ویخه او په اودهٔ حالت کې به ورته په زړهٔ کې إلقاء کیدله ،اوکله به ورته فرښته (مَلَک ) راغی۔

۴ ـ وحي جلي یواځې سید المَلک حضرت جبرئیل علیه السلام راوړې ده، او د وحي خفي لپاره یو فرښته (مَلَک )مقرر نه وو ،کله جبریل ،کله بل مَلَک ،کله په خوب کې ،کله په ویخه .

وحي جلي به په یو خاص شان سره نازلیدله ،دحضرت جبریل علیه السلام سره به یو شمیرفوج دملائکو راتلو لپاره دحفاظت اوعظمت دقرآن: إِلَّا مَنِ ارْتَضَى مِنْ رَسُولٍ فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ رَصَدًا۔ (الجن۲۸)،او وحي خفي داسې نه وه ـ

۵ ـ دقرآن دا موجوده ترتیب مصحفي بعینه دلوح محفوظ ترتیب دی ،دضرورت په اساس به دلوح محفوظ نه یا داسمانِ دنیا نه زمکې ته نازلیدو ،اودحدیث شریف منبع دنبی علیه السلام سینه وه ، الله تعالی به ورله په زړهٔ کې څه واچول ،هغه به ئ أمت ته وئیل.

۶ ـد وحي جلي دنزول میاشت ،شپه معلوم دي ، شَهرُ رَمَضَانَ الَّذِی أُنزِلَ فِيهِ القُرآنُ ـ إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةٍ مُبَارَكَةٍ إِنَّا كُنَّا مُنْذِرِينَ ـ إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ ـاو د احادیث مبارکه یووخت مقرر نه دی معلوم.

۷ ـ دقرآن کریم د حفاظت ذمه واري الله تعالی پخپله اخستې ده : إِنَّا نَحْنُ نَزَّلْنَا الذِّكْرَ وَإِنَّا لَهُ لَحَافِظُونَ ـ إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ ـاو داحادیث مبارکه ذمه واري الله تعالی نه ده اخستې۔

۸ ـ قرآن کریم د اختلاف نه پاک او مبرّا دی: أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللهِ لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا(۸۲النساء) ، او احادیث مبارکه کې لفظي او معنوي هرقسم اختلاف ثابت دي ـ

۹ ـ نبي علیه السلام د وحي جلي د کتابت لپاره ۴۰ کاتبان مقرر کړي وو ،او د احادیث مبارکه لپاره ئ داسې اهتمام نه وو کړی ـ

۱۰ ـ د قرآن صفت تنزیل دی ،او د حدیث صفت تنزیل نه دی ـ

۱۱ ـ په قرآن کریم کې آیتونه وي ،او په حدیث شریف کې نه ـ

۱۲ ـ په قرآن کریم کې سورتونه وي ،په حدیث کې دا ترتیب نشته ـ

۱۳ ـ قرآن اول او آخر لري نزولًا ومصحفًا ـ احادیث داسې نه دي ـ

۱۴ ـسورتونه د قرآن څه مکي او څه مدني دي ،او احادیث مبارکه اکثرنه دي معلوم چې مکي دي که مدني ـ

۱۵ـد قرآن خاصه ده "جمع او ترتیب" چي خلفاء راشدینو کړی دی، او د احادیث مبارکه داسې جمع نه ده شوې ـ

۱۲ ـ په ټول قرآن باندې د صحابه کرامو اجماع ده ،خو په ټولو احادیثو باندي اجماع نشته ـ

۱۷ ـ د قرآن کریم په یو حرف کې هم تبدیلي نشي کیدې، نه د پیغمبر د طرفه او نه د صحابو د طرفه ،او د احادیثو په حق له د محدثینو اتفاق دی چې روایت بالمعنی جائز دی ـ

۱۸ ـ قرآن شخصي او صفتي أسماء لري ،او حدیث ئ نه لري ـ

۱۹ـ قرآن پاک حکمي امتیازات لري:

## امتیازاتِ حُکمیه

۱ـد قرآن قراءت واجب دی، لهذا دومره زده کول چې مونځ په اداء شي، لکه فاتحه ټوله واجب ده ،او د باقي قرآن نه څه حصه ـ۲ ـمسّ القرآن بدون الطهارة جائز نه دي ـ ۳ ـقرآن دارالحرب ته نه شي وړلي ـ

**۴**۔قرآن چې لیکي او چاپ کوي نو صرف په رسم عثماني باندي به ئ لیکي۔**۵** ۔د قرآن ترجمه بغیر د لفظ عربي لیکلو نه جائز نه ده۔**۶**۔ قرآن کې ۱۴ آیات السجدة دي ۔ **۷**۔ قرآن مُقدم دی په حدیث باندې باعتبار القضاء والحکم والاستدلال کما في حدیث معاذ۔

ددي دومره امتیازاتو باوجود دا وئیل چي قرآن او سنت یو شان دي،داد الله تعالی دفرق نه مخ اړول دي،کتاب الله پریخودل دي،چې فتنه ورته وئیلی شي ، دنبي علیه السلام او دصحاب کرامو دلارې نه بی لارې کیدل دي چې ضلالت ورته وئیلی شي ۔ فایّا کم وایّاهم لایُضلّونکم ولا یفتنونکم۔

**********

# ۵- موضوع د قرآن کریم

قرآن کریم وحي جلي ده ،نو د قرآن کریم موضوع د ټولې وحې جلي موضوع ده، دغه موضوع د قرآن پاک نه پیژندل پکار دي :

وَكَذَٰلِكَ أَنْزَلْنَاهُ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ وَأَنَّ اللهَ يَهْدِي مَنْ يُرِيدُ۔ (الحج ١٦)،په "کذلک "کې کاف لپاره د تشبیه دی ،یعني د نورو نبیانو د وحي په شان دا قرآن کریم هم آیات بینات دي،دی ته استمرار هم وئیلي شي ۔ إِنَّا أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ كَمَا أَوْحَيْنَا إِلَىٰ نُوحٍ وَالنَّبِيِّينَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَوْحَيْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ وَهَارُونَ وَسُلَيْمَانَ وَآتَيْنَا دَاوُودَ زَبُورًا، النساء ١٦٣، (حم ١عسق ٢كَذَٰلِكَ يُوحِي إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكَ اللهُ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ٣ **الشورى** ، یعني قرآن پاک او ټول اسماني کتابونو یوه واضحه فیصله په مضبوط دلائلو سره بیان کړې ده ،خو ټول خلق ئ بیاهم نه مني ،ځکه هدایت په آیات بینات سره د الله پاک په اراده موقوف دي ۔

**اسبابِ هدایت** ۔ د هدایت لپاره دوه سببه دي: ۱۔ سبب ظاهري چې هغه آیات بینا ت دي۔ ۲۔ سبب حقیقي چې هغه د الله پاک اراده ده۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّابِئِينَ وَالنَّصَارَىٰ وَالْمَجُوسَ وَالَّذِينَ أَشْرَكُوا إِنَّ اللهَ يَفْصِلُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّ اللهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ (الحج ١٧)،دا مفصل فیصله په دلائل مسلمه سره د شپږو ډلو په مینځ کې ده :مؤمنان ، یهود ،نصاری،صابئین ،مجوس،مشرکین۔ په دنیا کې الله تعالی فیصله کړې ده په آیات بینات یعني په دلیل سره،او په آخرت کې به الله تعالی دغه خپله فیصله نافذوي ۔

أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللهَ يَسْجُدُ لَهُ مَنْ فِي السَّمٰوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ وَالنُّجُومُ وَالْجِبَالُ وَالشَّجَرُ وَالدَّوَابُّ وَكَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ وَمَنْ يُهِنِ اللهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُكْرِمٍ إِنَّ اللهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ ۔( ۱۸الحج)۔

په دي آیت کې تعیین کوي چې دا شپږډلې په څوک دي ؟، په اسمانونو او په زمکو کې چې څومره مخلوق دی، دا ټول د الله تعالی حکم مني :ملائک ،لمر،سپوږمئ،ستوري، غرونه،بوټي،څناور، ددې ټولو لپاره د الله پاک حکم په یوډول دی چې ټول ئ بلالیت ولعل مني ،دیته تکویني حکم وایي ، په تکویني حکم کې انسان او پیری هم ددوي په شان دي ، په تکوین کې د مخلوق هیڅ دخل او اختیار نه وي۔

## په انسان او په نور مخلوق کې فرق

انسان د تکويني حکم سره تشريعي حکم هم په خپل اختيار او رضاء په خپله غاړه اخستی دی ،او نور مخلوق د دې نه معذرت کړی دی :إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّموات وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا (الاحزاب ۷۲)، مونږه وړاندې کړلو امانت اسمانونو او زمکې او غرونو ته ،نو هغوي انکار وکړو د دې امانت د پورته کولو نه او پورته کړلو دا امانت انسان ،بيشکه دا انسان ظال او جاهل دی۔

په انسان کې دالله تعالی دوه امرونه دي:۱۔ يو تکويني امر چې سره د انسان نه دالله تعالی په ټول مخلوق کې دی ۔۲۔ تشريعي امر چې هغه د انسان سره خاص دی نور مخلوق د هغې نه بخنه غوښتلې ده۔ د سورۀ حج په دې آيت کې د ټول مخلوق په خلاف دانسانانو دوه ډلې ښودلې دي، وَكَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ الْعَذَابُ ،ځکه څه انسانان دالله تعالی تشريعي حکم مني او څه ئ نه مني۔

## د تکويني او د تشريعي فرق

تکويني امر دالله تعالی هغې فعل ته وئيلی شي چې په هغې کې د مخلوق هيڅ اختيار او دخل نه وي ،لکه يو انسان د دې اختيار نه لري چې د انسان په ځائ ځناور وي ،د سړي په ځائ ښځه وي ،د ښځې په ځائ سړی وي ،تور وي ،سپين وي ،روغ وي ،ناروغ وي وغيره۔ او تشريعي امر هغه وي چې د هغې په کولو او نه کولو کې اختيار وي ،لکه د انسان کافر کيدل او مؤمن کيدل ،مونځ کول او نه کول ، دروغ وئيل او نه وئيل وغيره۔ تشريعي حکم ته امانت او تکليف هم وئيلی شي ۔ وَمَنْ يُهِنِ اللهُ فَمَا لَهُ مِنْ مُكْرِمٍ إِنَّ اللهَ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ ۔د آيت په دې حصه کې د تکوين او د تشريع د دواړو امرونو بيان دی، چې الله تعالی على الاطلاق حاکم دی ،چې څه غواړي کوي او چې څه غواړي په بنديانو ئ لازم کوي ۔

## د شپږو ډلو وضاحت

۱- **مؤمنين** :حضرات انبياء عليهم السلام ،صحابه کرام رضی الله عنهم او د صحابه کرامو مقلدين۔

۲- **یهود** :عمومًا د خلقو په ذهن کې دا خبره ده ،چې یهود د موسي علیه السلام امت دی،دا خبره نه ده صحیح ،دیهودیانو ابتداء د حضرت یعقوب او د حضرت یوسف علیهما السلام دوخت نه شوې ده،او موسي علیه السلام په دوي کې مشهور بالکتاب نبي دی۔ دمشرکینو په مقابل کې دوخت مؤمنان۔

۳- **نصاری:** دعیسی علیه السلام او دانجیل منونکي ،دیهودو په مقابل کې دوخت مؤمنان۔

۴- **صابئین** : "صبأ" بمعنی "ترک دین آباءهم ". دا د اهل کتابو یوه ډله ده چې ددوي په نزد هم کافر دي ۔ دمشهورقول مطابق د زبور دمنلودعوی کوي او په کواکبو کې دتأثیرعقیده لري۔

۵ - **مجوس** : آتش پرست،د اوور ته منونکي ،دوي مشرکین فی الذات دي۔ د دوه خدایانو قائل دي :۱۔ "خالق الخیر" چې دوي ورته "یزدان " وایي۔ ،۲۔ "خالق الشر" چې دوي ورته "اهرمن "وایي۔ دوي اوور تي عکوف یعني ناست کوي ،هم دغه ئ عبادت دی ۔دعام مشرکینو په نزد هم کافر دي په وجه د شرک في الذات ۔

۶- **مشرکین** :ددوي ابتداء د قوم نوح علیه السلام نه شوې ده ۔ قوم نوح، قوم هود ،قوم صالح،قوم لوط،قوم شعیب اوقوم ابراهیم ددوي مشهور قومونه دي ۔عامة العرب ،او دنبي علیه السلام قوم هم دمشرکینو نه دی۔ د دوي په باره کې الله تعالی فرمایي: فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِمَّا يَعْبُدُ هَؤُلَاءِ مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُمْ مِنْ قَبْلُ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوصٍ( هود ۱۰۹)۔

بل ځائ کې الله تعالی داختلاف کونکودرې ډلې بیان کړي دي :۱۔ مشرکین ،۲۔ اهل کتاب ،**۳**۔انبیاء علیهم السلام : لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمُشْرِكِينَ مُنْفَكِّينَ حَتَّى تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ (۱) رَسُولٌ مِنَ اللَّهِ يَتْلُو صُحُفًا مُطَهَّرَةً (۲البینه) ۔مختصر دا چې دانسانانو درې ډلې دي :۱۔ مؤمنان، ۲ ۔أهل کتاب (یهود ، نصاري، صابئین ) ، **۳** ۔ مشرکین ۔ تفصیل ددې دادی چې دیهودو او دنصارو مشترک نوم اهل کتاب دی ،اوصابئین دأهل کتابو په ضمن کې دي،اومجوس د مشرکینو په ضمن کې دي ، نوقرآن چې چرته هم دفیصلې خبره کوي نو هغه به ددې درې ډلوتر مینځه وي: مؤمنان،أهل کتاب،مشرکین۔

حاصل د سوره حج ددوه آیتونو دا شو چې وخت د سره الله تعالی آیات بینات دنیا ته رالیګلي دي ،او وخت دسره ئ یوه فیصله کړیده په مسلّم دلیل سره،ددغې فیصلې عنوان دادی : د انس وجن په مینځ

کې اختلاف دی ،شپږ ډلې شوې دي ،حاصل ئ درې ډلې دي، په دې درې ډلو کې یوه په حق ده او دوه په باطل دي،نودوه غټې غټې ډلې شوې:حق او باطل ـ

ددغه خلقو اختلاف په څه کې دی؟ ،یعني "مابه الخصام " څه څیزدی؟،دا سورۀ حج بیان کړي دي:هٰذَانِ خَصۡمَانِ اخۡتَصَمُوا فِي رَبِّهِمۡ الایه(۱۹) ـ مابه الخصام یعني په څه کې چې اختلاف دی هغه "ربهم " دی ـ "هم " ضمیرراجع دی الناس ته، مطلب داچې اختلاف په دی کې دی چې دانسانانو رب څوک دی؟،دچاحق دی چې دانسانانو ربّ شي؟ـ

لهذا په ټول قرآن کریم کې دایمان او دکفر یعني دمنلو او دنه منلو ، دجزا او دسزا ،دبشارت او دتخویف تعلق به د "رب الناس" سره وي ـ لهذا د "کفروا " معنی به وي "کفروابربهم " او د "آمنوا " معنی به وي "آمنوابربهم " ، که "ربهم " معمول ورسره ذکروي او که نه ،او که د حرف جر سره وي او که بغیر د حرف جر نه ـ

وَهُدُوا إِلَى الطَّيِّبِ مِنَ الۡقَوۡلِ وَهُدُوا إِلَى صِرَاطِ الۡحَمِيدِ ،یعنې دوی الله تعالی خپل رب منلې دی دوحي دلارې نه ـ

الله تعالی خپل رب منونکي مؤمنان دي،اونه منونکي کافردي چې أهل کتاب اومشرکین دي ،او "مابه الخصام" ددوي په مینځ کې "رب العلمین " دی ـ

**پس موضوع دقرآن کریم داشوه :فیصله کول په آیات بینات سره چې دانسانانو رب څوک دی ـ**

لهذادا درې غټې ډلې دقرآن کریم دلارې پیژندل پکار دي ،ځکه دا دقرآن کریم موضوع ده چې په ډیر تفصیل سره ئ ذکر کړې ده ـ

ددوي درې قسمه تعارف دی: ۱ـ اسمي،۲ـ محلي یا جغرافیایي ،۳ـ اعتقادي یا دیني ـ

**۱ - مؤمنین**

دانبیاءکرام علیهم السلام ذکربه دمشرکینو اوداهل کتابو سره سره راځي، ځکه انبیاء علیهم السلام ددوي خصم دي، دیو خصم په مقابل کې دبل خصم ذکرخوامخوا راځي ـ

## ۲- مشرکین

مشرکین مقدم دي په أهل کتابو باندي په وجود کې ،نو په ترتیب کې به هم مقدم ذکر کیږي -

۱- **اسمي تعارف -** قرآن دوي ته مشرکین وايي :إن الذين كفروا من أهل الكتاب والمشركين الايه - (البينه۱) -
او ددواړو مشترک نوم کافر دی، بیاهریو ته هم کافروئیلې شي -

۲- **جغرافیائي تعارف یعني محل اوعلاقه -** په اعتبار د جغرافیه سره دوي پیژندل ضروري دي ،ځکه قرآن پاک کې چي عمومًا دکومو مشرکینو ذکر دی نودهغی نه دټولي دنیا مشرکین نه دي مراد-

دنیا په اووه براعظموباندې خوره ده- براعظم ایشیاءاودوه براعظم افریقه چې کوم ځائ را جمع کیږي ، دغلته الله تعالی انبیاءعلیهم السلام رالیګلي دي،دهغې مشهوربنارونه دادي:شام، فلسطین، اردن، مصر، مکه،مدینه،طائف،یمن ،عراق- کومو نبیانوچې هجرت کړی دی نوهم دغلته دیو ځائ نه بل ځائ ته ، دغه خلق په نسب کې د انبیاء علیهم السلام د سلسلې خلق دي،اقوامِ انبیاءورته وايي، نو جغرافیه دمشرکینواو دانبیاء علیهم السلام یوه ده -

ابتداء دمشرکینو دنوح علیه السلام دقوم نه شوي ده، علماء وايي اولنې رسول د شرک دابطال لپاره نوح علیه السلام راغلی دی،ددغه مشرک قوم نه مخکې ټول خلق په یوه عقیده باندې وو، هیڅ قسمه عقیدوي یادیني خصام وجدال نه وو-

### تاریخ انساني په اعتبار دعقیدې سره

كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ فَهَدَى اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ وَاللهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (البقره ۲۱۳)،

په دی آیت کې الله تعالی ټول انساني تاریخ را جمع کړی دی-

**د تاریخ انساني اولنی دور**۔ دآدم علیه السلام نه تر ود ، سواع، یغوث، یعوق او نسر پورې ټول په یوه عقیده وو ، اختلاف نه وو ، ټولو دالله تعالی نوم، ذات، صفات ، افعال او دواړه حقونه حکومت او عبادت منل۔

**د تاریخ انساني دویم دور**۔ بیا ورو ورو خلق دالله تعالی دحق نه داسې منکر شو چې د تشریعي حکومت حقدارئ بالکل نه منلو ، او دعبادت حقدارئ منلو ، خو عبادت ئ په خپله مرضۍ کولو۔ ددوي شهرت په قومِ نوح سره شوی دی، دوي دالله تعالی دذات، دنوم ، دصفاتو ، او دافعالو نه انکار نه دی کړی ، او نه ئ په دې کې ورسره څوک شریک جوړ کړی دی۔ دوي ته الله تعالی انبیاء علیهم السلام په تسلسل سره رالیګل ، دخپل حق دمنلو لپاره۔ قرآن کریم دهغوي نه دبعضو نومونه ذکر کړي دي ، نوح، هود ، صالح، شعیب، ابراهیم، لوط ، اسحاق، اسماعیل ، یعقوب علیهم السلام، لیکن دوي دالله تعالی حق نه دی منلی، الله تعالي په مختلفو عذابونو هلاک کړي دي ، دوي ته مشرکین وئیلي شي۔

**د تاریخ انساني دریم دور**۔ ډیر وخت پس دحضرت یوسف بادشاه په وخت کې په مصر او په خوا وشا کې څه خلق په دوي کې داسې پیدا شو چې دالله تعالی حق ئ ومنلو ، او په دې باندي ترډیر وخته پورې قائم وو ، روستني نسلونه ئ دالله تعالی دحق نه منکر شول، دا انکار دمشرکینو دانکار په شان نه وو بلکه ه یو نوي ډول وو۔ ددې نه أهل کتاب مراددي، چې یو ځل ئ دالله تعالي حق ومنلو بیائ پریخودو ، ددې نه پس په مهذبه دنیا کې دوه قسمه خلق مشهور وو: ١۔اهل کتاب، ٢۔ مشرکین، دواړو ځان ته ابراهیمیان وئیل۔

**د تاریخ انساني څلورم دور**۔ نبي علیه السلام په دعوت سره ډیر مشرکینو دأهل کتابو نه بیل شو او دالله تعالی حق ئ ومنلو۔ دا دور دنبي علیه السلام او دصحابه کرامو دی۔

داولني دور نه علاوه بیا ټوله دنیا چرته هم دمشرک نه نه ده خالي شوې ، څه خلق به مؤمنان وو ، څه به مشرکان ، غلبه به اکثر د مشرکینو وه۔ دنوح علیه السلام د قوم نه دنبي علیه السلام دوخت پورې ټول مشرکین په یوه عقیده باندي وو په باب دعبادت کې ، ظاهري صورت دشرک به دوخت او دعلاقې او دخلقو په اعتبار سره بدلیدو ، خو أصل او حقیقت به ئ یو وو: فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِمَّا يَعْبُدُ هَؤُلَاءِ مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُمْ مِنْ قَبْلُ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوصٍ (هود١٠٩)، په سوره هود کې دشروع نه دټولو انبیاء کرامو او دهغوي دقومونو ذکر دی ، په دې آیت کې الله تعالی فرمایي: ستا دقوم یعني دمکې

دمشرکينواود پخواني مشرکينو څه فرق نشته ، دوي په عقيده کې دخپل پلار نيکه يعني قوم نوح او قوم هود وغيره په شان دي ، اګرچه ظاهري شکل به مختلف وي،لکه په باب دعبادت کې دنوح عليه السلام په وخت کې بُت نه وو ،دعاديانو ،دثموديانو ،دأيکه ،اودمدين دمشرکينو بُت نه وو. په قرآن کريم کې د بُت ذکرد ابراهيم عليه السلام د قوم په تذکره کې راغلې دی،بيا دغه سلسله عامه شوه. عرب يعني مکه ،يمن ،طائف ته هم بُتان داخل شو ،عجم يعني هند ،چين ته هم ورسيدل.

حضرت مولانا شبيراحمد عثماني رحمه الله دا سورۀ نوح آيت په تفسير کې ليکي. تردې چې په کعبه "بيت الله" کې به ( ٣٦٠ )بتان پراته وو ، او حقيقت دعبادت هغه پخوانی وو يعني عکوف عندالشفيع. نو الله تعالى نبي عليه السلام ته فرمايي چې دبُت په راتلو سره ددوي په عقيده کې څه فرق نه دی راغلی.

په دې اورقو کې ددوي نوم مشرکين قرآن يامشرکين وحي دی. په باب دعبادت کې دمشرکينو عقيده په آئنده اوراقو کې په تفصيل سره راروانه ده.

اولني دور ته اشاره ده په "كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً" کې. دويم دور ته اشاره ده په "فَبَعَثَ اللهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ "کې. دريم دور ته اشاره ده په "وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ "کې. څلورم دور ته اشاره ده په " فَهَدَى اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ وَاللهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ "کې.

### ٣. عقيدوي تعارف يعني دمشرکينو عقائد

ددی مشرکينو هغه کومه عقيده وه چې دوي ته دهغې له خاطره مشرک وئيلی شوی دی ،اوحکم په دکافر او دمشرک لګيدلی دی ؟.

دمشرکينو عقيدې په دوه قسمه دي:١. صحيح عقيده،٢. غلطه عقيده ، په قرآن پاک کې داعقائد په دې تفصيل سره څکه ذکر کيږي چې صحيح دغلط نه بيل شي ،او کومه عقيده چې ددوي صحيح ده ،پيغمبر هغه صحيح عقيده په حيث ددليل سره راونيسي او په هغې سره ددوي دغلطې عقيدې اصلاح وکړي.

۱- قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَمَنْ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ فَسَيَقُولُونَ اللَّهُ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ فَذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ فَأَنَّى تُصْرَفُونَ ،كَذَلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ فَسَقُوا أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ( يونس ۳۱، ۳۲، ۳۳) ، تپوس وکه ددوي نه څوک دی چې تاسو ته رزق درکوي داسمان نه اودزمکې نه ،اوڅوک دی چې واکمن دی دغوږونو اودسترګو ،اوڅوک دي چې راوباسي ژوندي دمړي نه او راوباسي مړي دژوندي نه ،اوڅوک دی چې چلوي ټول نظام ،نوزر به اووايي الله ، نوتهٔ اووايه دوي ته ددي ايمان با وجود تاسو دالله تعالی نه نه ويريږئ ، يعني دحاکميت علت منئ چې قدرت اوعلم دي اودهغې معلول نه منئ ، په دې آيت کې دري صفتونه دالله تعالی ذکر دي:۱-رزق،۲- مِلک ، ۳- خلق- څلورم تپوس د مخلوق دساتنې لپاره ددنيا دنظام شمسي په باره کې دی ، چې دانظام څوک چلوي ؟-

"رزق " هغه نعمت دی چې دمخلوق ژوند په بناءدی-

"سمع اوبصر " هغه نعمتونه دي چې په هغې سره دانسان تکميل کيږي ،او دهغې نه بغير انسان ناقص وي- داد انسان سره دپيدائش دوخت نه موجود وي،اوپه دې سره انسان د نور حيواني مخلوق نه ممتاز کيږي-

"خلق " داکائنات ديوسرکل په شان دي ،يعني دجامد نه متحرک اودمتحرک نه جامد پيدا کيږي ،انسان متحرک دی دخاوری يادنطفی نه پيدادی چې جامدده ،بيانطفه دانسان نه پيداده چې متحرک ده ،دغه شان ونه اوبوټي دبمبتې اودتُخم نه پيدادي ،چې جامددي ،يعني نه لوئيږي ،اود ونی اود بوټي نه بياتُخم پيدا کيږي چې نُمو لري يعني لوئيږي ، په داسې آيتونوکې دامعنی اخستل ډير مناسب دي ،په نسبت د کافر اومؤمن ، ځکه داامور په دليل عقلي کې بيانيږي اودليل عقلي هغه وي چې مسلم وي بين الخصمين- دا تپوسونه د صفاتو باره کې وو-

نظام شمسي-دزمکې او داسمان په مينځ کې چچنيا دساتنی چې کوم نظام دی ،ديته "نظام شمسي " وئيلی شي-دانظام يادنياچليږي په داسې غټو غټو اسبابو سره چې هغه دانسان د وس نه بهر دي چې مونږ ورته اسباب کبيره خارجه عن طاقة البشر وايو ،لکه شپه وورځ په لمرسره،اوبه اوباران په وريځ سره، فصلونه او دانې په باران سره ،ددې درې نومونه دي:۱- تدبيرالامر،۲- افعال إلهيه،۳- شأن ،داهم دقدرت کامله سره متعلق دي -

په دې آیت کریمه کې تپوس دذات ،اودغې ذات دصفت قدرتِ کامله، او دنوم په باره کې دی۔

"فسیقولون الله "کې "فاء "دتعقیب مع الوصل .او "سین " دتقریب لپاره دی ،یعني فورًا به درته جواب درکړي چې "الله "، نونوم دالله تعالی ئ ومنلو ،نوم دیو ذات لپاره وي نوذات دالله تعالی ئ هم ومنلو ،او سوال دصفاتو باره کې دی نوصفات ئ هم ومنل چې قدرت کامله د الله تعالی سره خاص دی، او د قدرت منل دعلم دمنلونه بغیرمتصورنه دي ،ځکه قدرت موقوف وي په علم باندې نوعلم ئ هم ومنلو۔

دادوي صحیح عقیده ده، نوانبیاء علیهم السلام ورته ددې دعوت نه ورکوي چې الله تعالی خپل خالق، مالک،رازق ومنئ، یادالله تعالی ذات ومنئ یادهغۀ نوم الله ومنئ ،ځکه په اصطلاح دعلماو کې دا تحصیل حاصل دی ،چې یوباطل اوبل عبث عمل دی اوالله تعالی دهر عبث نه پاک او منزه اوبالا دی، بلکه الله تعالی خپل پیغمبر ته وایي: فقل أفلاتتقون،تۀ دوي ته اووایه چې تاسو دالله تعالی نوم،ذات، صفات ،اوافعال منئ نوویریږئ ترې ولې نه په شان دحاکم ؟یعني خپل رب اوحاکم ئ ولې نه منئ؟، څنګ چې په ورپسې آیت کې ددې صراحت دی : فَذَٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ۔ځکه علم اوقدرت تاسو دالله تعالی سره خاص منئ او داعلت دی دحاکم کیدو لپاره،نو چې علت منئ نومعلول ولې نه منئ؟علت اومعلول کې خو تخلّف نه وي ،علت چې ثابت یعني تسلیم شي نو معلول ورسره هم ثابتیږي۔

**دعلت او دمعلول مثال** ۔ددې لپاره مونږ دوه مثالونه ذکر کوو ،یو په مادي امورو کې اوبل په معنوي امورو کې۔

۱۔لمرعلت دی دورځ لپاره،داسې نه شي کیدی چې دلمر راختل ومنلی شي اود ورځ نه انکار وکړی شي ،که داسې چاوکړل نودهغۀ شمار په انسانانو یعني دعقل په خاوندانو کې نه شي کیدی،ځکه دوي د بداهت یعني دعقل نه منکر دي ،داد مادي امورو مثال دی۔۲۔ "انت طآلق " علت دی د وقوع طلاق لپاره، چې خاوند خپلې ښځې ته " انت طآلق "اووایي نوفورًا طلاق واقع کیږي، که یو وایي نو یو ، اوکه دوه وایي نو دوه، اوکه درې وایي نو درې ،په دې کې تخلف نه راځي۔ نوعلت منل چې " انت طآلق "ئ وئیلي دي ،او معلول نه منل ،دا د مشرکینو فلسفه ده چې الله تعالی په شدومد سره رد کړې ده ،او ددې منونکو ته ئ مشرک وئیلي دي۔

فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَالُ فَأَنّٰى تُصْرَفُونَ ،دغه الله چې تاسو ئ په نوم ،ذات، صفات، افعالو سره منئ ،ستاسو رب دی په رښتیا ،یعني په دلیل سره،نو معلومه شوه چې انبیاء کرام دعوت ددې خبرې ورکوي چې الله تعالی خپل رب ومنئ۔ "أنّي" بمعني "أين"،یعني په کوم ځائ کې تاسود صحیح خبرې نه اخواشوئ؟،دعلت او معلول تر مینځه ؟،په دې کې اصل استفهام دعلت نه دی یعني آیا تاسو دا علت مذکوره نه منئ ځکه دمعلول نه منکر شوئ۔

۲۔ قُلْ لِمَنِ الْأَرْضُ وَمَنْ فِيهَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۸۴ سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ قُلْ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ۸۵ قُلْ مَنْ رَبُّ السَّمٰوٰتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ ۸۶ سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ قُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۸۷ قُلْ مَنْ بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۸۸ سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ قُلْ فَأَنّٰى تُسْحَرُونَ بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ(۹۰ المؤمنون)۔"لِمَن"کې "لام" دتملیک لپاره دی یعني تۀ تپوس وکړه دمکې دخلقونه :دازمکه دچا ملک دی؟،اوکوم انسانان چې په دې کې آباد دي هغه دچامِلک دی؟ یعني په دې دواړو دچاحکومت دی؟،ددې نه تکویني حکومت مراد دی۔ وایي به :دادواړه دالله تعالی مِلک دی ،یعني په زمکه او په انسان په دواړو تکویني حکومت دالله تعالی دی۔ قل أفلاتذکرون،اووایه:چې دزمکې اودځان مالک الله منئ ،یعني دالله تعالی تکویني حکومت منئ نو تاسو دالله تعالی حق یعني تشریعي حکومت ولې په ځان نه منئ ؟۔ ورته اووایه: داووه اسمانونو مالک څوک دی ؟، اودلوې تخت مالک څوک دی؟،فوري به جواب درکړي: دادالله تعالی دي،لام دتملیک لپاره دی نود "رب السموات"معنی ده: مالک السموات ،ځکه دسوال اودجواب په مینځ کې مطابقت لازم دی۔

قُلْ مَنْ بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ۔ "ملکوت "کې "واو "او "تاء" دمبالغې لپاره دی ،دمُلک او دمِلک دواړونه دی په معنی داختیاراود تصرّف،یعني ددنیادا هرڅه دچا دې اوددې اختیاراو تصرّف دچاپه لاس کې دی ؟۔ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ،داد ملکوت تفصیل دی چې هغه بچ کونکی دی ،اودهغۀ نه څوک بچ کیدی نه شي ،که تاسو په دی باب کې څه عقیده لرئ نو اووایئ ۔ سَيَقُولُونَ لِلّٰهِ قُلْ فَأَنّٰى تُسْحَرُونَ، زر به اووایي داهرڅه دالله تعالی دي یعني دهغۀ په اختیار کې دي ۔ تۀ ورته اووایه:نو په تاسو دا څه سحر شوی دی چې علت منئ او معلول نه منئ ؟۔ بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ ، "بل "د "اضراب "لپاره دی، یعنی دغه مخکې تپوس کړې شوي هرڅه مني

،خو مونږ ورته خپل حق راوړی دی ،او دوي زمونږ حق نه مني ،او یقینًا دوي دروغ وايي زمونږ دحق په باره کې ـ دغه دروغ په سوره انعام آیت ۱۴۸او سوره نحل آیت **۳۵** کې ذکر دي ـ

**۳** ـ وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّموتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ (۹ الزخرف) ، که ته ددوي نه تپوس وکړی چي داا سمانونه اوزمکې چا پيدا کړي دي ؟، نو دوي به په قسم سره وايي: دا هغه ذات پيدا کړي دي چي زورور دی، او په هرڅه پوهه دی ـ علم کامل او قدرت کامله دا الله تعالی دټولو صفاتو حاصل دی، اودوي دهغې اعتراف کوي ـ

**۴** ـ وَكَأَيِّنْ مِنْ دَابَّةٍ لَا تَحْمِلُ رِزْقَهَا اللهُ يَرْزُقُهَا وَإِيَّاكُمْ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ (۶۰) وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّموتِ وَالْأَرْضَ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَيَقُولُنَّ اللهُ فَأَنَّى يُؤْفَكُونَ (۶۱) اللهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَيَقْدِرُ لَهُ إِنَّ اللهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ (۶۲) وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُولُنَّ اللهُ قُلِ الْحَمْدُ للهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ (۶۳ العنكبوت) په دې آیتونو کې دا الله تعالی قدرت ،علم ،افعال په تکرار سره ذکردي او په ځائ ددليل کې ذکر دي ،ځکه چي مشرکين ئ مني ـ

**۵** ـ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ لَه مَا بَيْنَ أَيْدِينَا وَمَا خَلْفَنَا وَمَا بَيْنَ ذٰلِكَ وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ۶۴ رَبُّ السَّموتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا فَاعْبُدْهُ وَاصْطَبِرْ لِعِبَادَتِهِ هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا (۶۵ مریم) ، او مونږ نه راکوزیږو مګر ستاد حاکم په امرسره ، یواځې دهغهٔ دي هرڅه چې دي ،زمونږ نه مخکې اوزمونږ نه شاته او څه چې دي په مينځ ددې کې ،اونه دی ستاحاکم هیرونکی ،مالک دی دا سمانونو اود زمکې او چې څه دي ددي دواړو په مينځ کې ،نو تهٔ دهغهٔ حکم منه ،تهٔ دهغهٔ نه حاجت غواړه او استقامت وکړه تهٔ دهغهٔ په فیصلې او په غوښتنه، آیاتاته ثوک معلوم دي دهغه پشان په نوم او په صفت کې ـ وَمَا نَتَنَزَّلُ إِلَّا بِأَمْرِ رَبِّكَ ، رَبُّ السَّموتِ وَالْأَرْضِ، داد قدرت بیان دي ، وَمَا كَانَ رَبُّكَ نَسِيًّا ، داد علم بیان دی ـ په دی آیتونو کې دا الله تعالی دعلم او د قدرت دبیان نه روستو وايي :هَلْ تَعْلَمُ لَهُ سَمِيًّا ،تاته ثوک معلوم دي دهغهٔ سره په نوم یا په صفاتو کې شریک ؟، استفهام انکاري دی ،یعني دهغهٔ سره ثوک شریک نشته ـ

د "سَمِيًّا "معنی نوم اوصفات دواړه ده، مطلب ئ دادی: تهٔ هم دا عقیده ساتی چې دا الله تعالی سره په نوم او په صفاتو کې ثوک شریک نشته ـ او مشرکين هم دا الله تعالی دنوم قائل دي بلا شرکت، دذات ئ قائل دي بلا شرکت ،د صفاتو ئ قائل دي بلا شرکت ،دا فعالو ئ قائل دي بلا شرکت ـ

د دې آیتونو نه دا خبره هم معلومه شوه چې په مشرکینِ قرآن کې شرک فی التصرّف او شرک فی العلم نه وو ،دا دواړه د شرک اعتقادي اقسام دي۔ لهذا دهغوي په عقیده کې دا قسم شرک نه وو ۔

دمشرکینو دصحیح عقیدو حاصل دا شو چې دالله تعالی ذات، نوم ،صفاتاو افعال مني ،په دې کې ورسره څوک شریک نه مني۔

کله چې دمشرکینو په طریقه عبادت کې بتان داخل شو او دهغې نه دا خبره ذهن ته راتله چې داخلق دبتانو نه حاجت غواړي یعني دبتانو عبادت ئ شروع کړو چې مخکې داسې نه وه،لهذا ددوي دمخکېني مشرکانو نه بدله شوه ۔ قرآن ددي خبري وضاحت کړی دی ،او دمشرکانو دخلې نه ئ ددې اشکال ازاله کړې ده ۔ دقرآن نه ظاهریږي چې دا نوي کار د حضرت ابراهیم علیه السلام قوم شروع کړی دی ،ځکه هغه چې دقوم دا نوی عمل ويني نو په ډیر تعجب تري تپوس کوي:

۲ ۔ وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ إِبْرَاهِيمَ ٦٩ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا تَعْبُدُونَ ٧٠ قَالُوا نَعْبُدُ أَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِينَ ٧١ قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ ٧٢ أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ ٧٣ قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا كَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ( ٧٤الشعراء)۔

حضرت ابراهیم علیه السلام دخپل پلار اودقوم نه تپوس کوي: ستاسو دعبادت حقیقت څه دی ؟،هغوي وئیل: مونږ حاجت غواړو دبُتانو نه،داسې چې ټوله ورځ دوي ته ناست یو۔ ابراهیم علیه السلام بیا تپوس وکړو :آیادوي اوري چې تاسو ترې حاجت غواړئ یادوي تاسو ته نفع یانقصان رسوي ؟، یعني تاسو په دوي کې علم کامل او قدرت کامله منئ؟، ځکه ظاهري اسباب دعلم اودقدرت خو ورسره نشته ،ځکه دا دمړو بُتان دي، نوآیا په دوي کې مافوق الاسباب علم او قدرت منئ ؟۔

قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا كَذَٰلِكَ يَفْعَلُونَ ۔"بل " داضراب لپاره دی ،یعني داتهٔ چې څه ګڼړی داسې نه ده ، مونږه علم کامل او قدرت کامله په دوي کې نه منو۔ زمونږد پلارنیکه چې څه عقیده وه،مونږ په هغه عقیده دوي ته ناست یو ،چې صرف دشفاعت په عقیده مودوي الله تعالی ته مخکې کړي دي ،لهذا فقط صورت بدل دی ،اصل عقیده نه ده بدله شوي۔

وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَبِيًّا (٤١) إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنْكَ شَيْئًا(٤٢مریم) ، حضرت ابراهیم علیه السلام دخپل پلار نه تپوس کوي: ای باباجانه !تهٔ ولې حاجت غواړی دهغه څه نه چې نه اوري اونه لیدل کوي ؟ ،سمع اوبصردعلم نه عبارت دي،یعني علم کامل نه

لري۔ "ولايغني عنک شيئا" دا دقدرتِ کامله نه عبارت دی ،يعني ستاهم دا عقيده ده چې په دوي کې دعلم کامل اودقدرت کامله صفت نشته ،نوبياترې ولې حاجت غواړئ؟۔

الله تعالی په سورهٔيونس کې ددوي دعقيدې تفصيل دا سې کړی دی:

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللهِ قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّموَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ (١٨).او دوي دالله تعالی نه مخکې حاجت غواړي دهغه چا نه ،چې ددوي هم دا عقيده ده دهغوي په حق کې چې قدرت ئ نشته،اونفي دقدرت مستلزم ده نفي دعلم لره ، اوو ايي:دا معبودان زمونږسفارشيان دي ،د الله تعالی په درباركې،مونږحاجت غواړودالله تعالی نه خوپه واسطه ددې نيکانو خلقو ،چې دوي مونږ الله تعالی ته محض نزدی کوي۔

شيخ الاسلام حضرت مولانا شبيراحمد عثماني رحمه الله فرمايي: دا دنوح عليه السلام دقوم هغه پنځه نيکان سړي وو ،چې دوي وفات شول نوخلقو ددوي ذات الله تعالی ته وسيله کولو ، بيارو ستو ترقي وشوه، او اصنام وتماثيل جوړشو دتوجّه برابرولو لپاره،دې ته دشفاعت اود ولايت عقيده وايي۔

الله تعالی نبي عليه السلام ته فرمايي: فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِمَّا يَعْبُدُ هَؤُلَاءِ مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُمْ مِنْ قَبْلُ وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنْقُوصٍ(١٠٩هود) ،د صورت دتبديلئ په وجه ددوي دحاجت غوښتلو په حق له تهٔ په شک کې مه پريوځه۔

دوي دشفيع نه دحاجت غوښتلو يعني دخپل عبادت اوشفاعت معني پخپله هم دغه شان کوي :وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِ اللهِ اَولِيَاءَ مَا نَعبُدُهُم اِلَّا لِيُقَرِّبُونَا اِلَى اللهِ زُلفًا ، اوهغه خلق چې نيسي دا الله نه مخکې نيکان خلق لپاره دحاجت غوښتلو ،وايي: مونږ نه غواړو ددي نه خپل حاجت مگر په دې عقيده چې دوي زمونږ حاجت مخکې وي الله تعالی ته ،يعني مونږ عبادت دالله تعالی کوو ،حاجت دالله تعالی نه غواړو خومونږکمزوري يو، گنهگاريو ،نو دا نيکان بندگان مونږالله تعالی ته نزدې کوي۔

دحضرت ابراهيم عليه السلام پلارچې دعکوف لپاره دبتانو موجد دی ،ددې دا استحضارقلبي په خاطر ئ مظنونه شفعاو له وثني شکل ورکړو ،دشرک ددې نوي شکل باني دی ،دخپل ديني منصب په خاطر يواځې ددهٔ جوړکړی بُت دشفاعت او دتقريب لپاره مقبول عام وو ،اودبل چاجوړکړی بت ددې وړ نه وو۔کوموخلقوچې وس لرو هغوي ته به ئ ځانگړی بت ورکولو ،او دبی وسه خلقو لپاره پخپله عبادت

خانه کې پېنځه بتان د شفعاء خمسه په عنوان سازکړي وو: ود، سواع، يغوث، يوق، نسر، د دوي د صورتونو انتخاب د آزر ځانګړی اجتهاد وو، او جدا تأثير د هر شفيع د مخکې نه راروان وو، کله چې ابراهيم عليه السلام بيت الله په دويم ځل جوړ کړو نو ډېر وخت روسته د غه شفعاء خمسه د آزر د آباد کړی عبادت خانې نه بيت الله شريف ته منتقل شو، او بيا د قومونو او د قبيلو په شمير دا رو روډېريدو، چې آخرنی حد ئ ۳۶۰ ته رسيدلی وو۔ مشرکين مکه چې ځان ته ابراهيميان وئيل، طواف به ئ د بيت الله کوو، او د پلار نيکه يعني د قوم نوح په عقيده ئ د ننه په بيت الله کې ۳۶۰ بُتان وو لپاره د شفاعت، او په وخت د طواف کې به ئ په تلبيه کې د خپلی عقيدی اظهار په دې الفاظو سره کوو:

لبيک اللهم لبيک لبيک لاشريک لک لبيک الاشريکا تملکه وماملک، حاضريو مونږ حاضريو تاته ای الله حاضريو مونږ، او حاضريو ستا دربار ته، نشته ستا څوک شريک، حاضريو مونږ حاضريو تاته، مګر هغه شريک چې ته ئ د هغهٔ هم مالک يې، او هغه د څه مالک نه دی۔

### سجدهٔ تعبدي د دې امت سره خاص ده

د مشرکينِ قرآن په دين کې سجده نشته، نه الله تعالی ته او نه غير الله ته، بلکه د آدم عليه السلام نه تر يهودو د زمانې پورې سجده د عبادت په حيث نه وه مشروع، آدم عليه السلام ته د ملائکو سجده د سلام او تحيّه وه۔ سجده د عبادت نبي عليه السلام او دې امت ته ورکړې شوې ده، څنګه چې نبي عليه السلام د نبوت خاتم دی دارنګه د عبادت هم خاتم دی۔نو سجود چې غايت تذلل دی، د نبي عليه السلام او د هغه د امت لپاره عبادت وګرځولی شو۔

حديث کې چې راځي: لعن الله اليهود والنصاري إتخذوا قبورا نبياءهم مساجد، متفق عليه۔ د مساجد نه معاکف مراد دي يعني د حاجت غوښتلو لپاره د ناستې ځايونه۔

دارنګه حضرت يوسف عليه السلام چې خوب وليدو چې يولس ستوري، لمر او سپوږمۍ ماته سجده کوي: رأيتهم لي ساجدين، د دې تعبير په حکمبرداری سره دی۔ هم د غه شان: وَرَفَعَ أَبَوَيْهِ عَلَى الْعَرْشِ وَخَرُّوا لَه سُجَّدًا وَقَالَ يَاأَبَتِ هَذَا تَأْوِيلُ رُؤْيَايَ مِنْ قَبْلُ قَدْ جَعَلَهَا رَبِّي حَقًّا الايه(يوسف ۱۰۰)، کې مذکوره سجده د عبادت نه ده بلکه استسلام يعني حکمبرداري يا تحيه يعني سلام په صورت د سجدې کې وو۔ حاصل دا چې په أديانِ سابقه کې سجده تعبدي نه وه۔ بيا د حضرت عيسی عليه السلام په وخت کې سجدهٔ عبادت

مشروع شوه ځکه عیسی علیه السلام به ددې أمت مشر او حاکم وي، کنه أصل سجدهٔ عبادت کیدل دنبي علیه السلام په دین کې دي ،البته دټولو نبیانو خصوصي عبادت سجود وو.

نبي علیه السلام او حضرت علي رضي الله عنه مونځ کولو ، ابوطالب ته نااشنا ښکاره شو ،سره ددې نه چې دبیت الله خادم وو خو مخکې ئ دا نه وه لیدلي. لهذا دمشرکینو عبادت دخپلو ساز کړي آلهؤ په صورت دعکوف کې وو: مَاهٰذِهِ التَّمَاثِيلُ الَّتِي اَنتُم لَهَا عَاكِفُونَ، وَانظُر اِلى اِلٰهِكَ الَّذِي ظَلتَ عَلَيهِ عَاكِفًا.

## دمشرکینو غلطه عقیده

مشرکین چې الله تعالی مني،ذات ئ مني،صفات ئ مني،افعال ئ مني نو آخر څه نه مني چې په هغې باندې دوي مجرمان دي،جهنمیان دي،او الله تعالی ورته مشرکان وایي؟. ددې سوال جوب قرآن کریم داسې ورکوي:

اُحْشُرُوا الَّذِينَ ظَلَمُوا وَأَزْوَاجَهُمْ وَمَا كَانُوا يَعْبُدُون(٢٢)مِنْ دُونِ اللهِ فَاهْدُوهُمْ إِلى صِرَاطِ الْجَحِيمِ(٢٣)،روان کړئ هغه خق چې دالله تعالی حق ئ مخلوق ته ورکړی وو او مشران ددوي چې دوي ورته تحاکم کولو ماسوا دالله نه ،نوروان ئ کړئ ددوزخ پل ته.یعني رعایا او حاکمان چې تابع او متبوع دي ټول را جمع کړئ په دوزخ باندې غزیدلی لارې ته. په عام اصطلاح کې ورته "پل صراط "وئیلي شي ،دقبرونو نه به ټول خلق یو میدان ته راشړلی کیږي ،ددغې میدان په صحیح حدیث کې داسې ذکر دی : عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: سَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِهِ: يَوْمَ تُبَدَّلُ الأَرضُ غيرَ الأَرْض والسَّموات.فَأَيْنَ يَكُونُ النَّاسُ يَوْمَئِذٍ؟ قَالَ: عَلى الصِّرَاطِ.(رَوَاهُ مُسلم) ،دحضرت عائشه رضي الله عنها نه روایت دی ،هغه وایي ما تپوس وکړو دنبي علیه السلام نه ددې آیت څه مطلب دی :يَومَ تُبَدَّلُ الاَرضُ غَيرَ الاَرضِ وَالسَّمواتُ مَطوِيَّات بِيَمِينِه الايه. چې دقیامت په ورځ به دازمکه او دااسمان په نوره زمکه او اسمان تبدیل شي ،نود تبدیل په وخت کې دامخلوق به چرته وي؟، نبي علیه السلام اووئیل:په "صراط " باندې به وي. وَقِفُوهُمْ إِنَّهُمْ مَسْئُولُونَ ٢٤ مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُونَ ٢٥ ، وې دروئ ددوي نه تپوس کوو ،ولې دیوبل مددنه کوئ ، کوم نصرت چې دحاکم اود رعایا په مینځ کې وي. داتپوس دحکومت دی ،ځکه حکومت دتابع او دمتبوع دتناصر نه عبارت دی، چې ستاسو هغه حکومت څه شو چې دالله تعالی دقانون په ځائ په انساني جوړشوي قانون باندې قائم وو.

په صحیح حدیث کې ددې تفصیل دا سې دی:

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَقْبِضُ اللهُ الْأَرْضَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَطْوِي السَّمَاءَ بِيَمِينِهِ ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ مُلُوكُ الْأَرْضِ؟. (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ) ـ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دی، نبي علیه السلام فرمایي: الله تعالی به دا زمکه د قیامت په ورځ په مُټې کې واخلي، او راغونډه به کړي اسمانونه په خپل خي لاس کې، بیا به وفرمايي: زۀ وخت د سره بادشاه یم، چرته دي د زمکې بادشاهان ؟، متفق علیه.

عَن عبد الله بن عَمْرو رضي الله عنهما قَالَ: قال رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَطْوِي اللهُ السَّموات يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْيُمْنَى ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ أَيْنَ الْجَبَّارُونَ؟ أَيْنَ الْمُتَكَبِّرُونَ؟ ثُمَّ يَطْوِي الْأَرَضِينَ بِشِمَالِهِ وَفِي رِوَايَة: يَأْخُذُهُنَّ بِيَدِهِ الْأُخْرَى ثُمَّ يَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ أَينَ الجبَّارونَ أَينَ المتكبِّرونَ؟. (رَوَاهُ مُسلم) ـ

د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه روایت دی، نبي علیه السلام فرمایي: راغونډه به کړي الله تعالی اسمانونه د قیامت په ورځ بیا به ئې راونیسي په خپل خي لاس کې، بیا به وايي: زۀ وخت د سره بادشاه یم، کوم دي چې په زور ئې حکومت کولو ؟، کوم دي چې لویي او مشري ئې خپل حق ګڼړلو ؟، بیا به راغونډې کړي زمکې په بل لاس کې بیا به وايي: زۀ وخت د سره بادشاه یم، کوم دي هغه چې بې دوحې نه ئې مشري کوله ؟، کوم دي چې مشري ئې خپل حق ګڼړلو ؟.

عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: جَاءَ حَبْرٌ مِنَ الْيَهُودِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ إِنَّ اللهَ يُمْسِكُ السَّموات يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلى أُصْبُعٍ وَالْأَرَضِينَ عَلى أُصْبُعٍ وَالْجِبَالَ وَالشَّجَرَ عَلَى أُصْبُعٍ وَالْمَاءَ وَالثَّرى عَلَى أُصْبُعٍ وَسَائِرَ الْخَلْقِ على أصبع ثُمَّ يَهُزُّهُنَّ فَيَقُولُ: أَنَا الْمَلِكُ أَنَا اللهُ. فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَجُّبًا مِمَّا قَالَ الْحَبْرُ تَصْدِيقًا لَهُ. ثُمَّ قَرَأَ: وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَقَّ قَدْرِهِ وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَالسَّموَاتُ مَطْوِيَّاتٌ بِيَمِينِهِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يشركونَ (مُتَّفق عَلَيْهِ) ـ

د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روایت دي، د یهودو یو عالم نبي علیه السلام ته راغی، او وې وئیل: ای محمد ! بیشک الله تعالی به راټینګ کړي اسمانونه د قیامت په ورځ په یوه ګوته، او زمکې په بله ګوته، او غرونه او ونې په بله ګوته، او اوبۀ او خاوره په بله ګوته، او نور ټول مخلوق په بله ګوته، بیا به ګوتې وخوزوي، او وایي به زۀ وخت د سره بادشاه او حاکم یم، زۀ الله یم. نو نبي علیه السلام وخندل چې

خوشحاله شو دیهودي دعالم دوینانه چې دۀ تصدیق وکړو دنبي علیه السلام ـ بیا نبي علیه السلام داآیت ولوستلو:ترجمه ـاو انسانانو الله تعالى اونه منلو څنګه چې منل پکار وو ،اوټولې زمکې به دا الله تعالى په مُټې کې وي دقیامت په ورځ، او اسمانونه به راغونډ وي دهغۀ په خي لاس کې ،پاک دی هغه او لری دی دهغه نه چې دوي ئ ورسره شریک ګرځوي ـ

بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُونَ ٢٦ وَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ٢٧ قَالُوا إِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَأْتُونَنَا عَنِ الْيَمِينِ ٢٨ قَالُوا بَلْ لَمْ تَكُونُوا مُؤْمِنِينَ ٢٩ وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِنْ سُلْطَانٍ بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طَاغِينَ ٣٠ فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَا إِنَّا لَذَائِقُونَ ٣١ فَأَغْوَيْنَاكُمْ إِنَّا كُنَّا غَاوِينَ ٣٢ فَإِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ٣٣ إِنَّا كَذَلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ ٣٤ إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ ٣٥ وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُو آلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَجْنُونٍ ٣٦ بَلْ جَاءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِينَ (٣٧ الصافات) ـ

ترجمه آیت۲۲ : بلکه دوي حاکم اورعایا ټول د الله تعالى حکومت ته غاړه ایخودونکي دي، کشران به مشرانو ته مخا مخ شي او وایي به ورته: إنکم کنتم تأتوننا عن الیمین،(په تیرشوي حدیثونو کې ددې تعبیر په جبّار اومتکبأرسره شوی دی ) تاسو به مونږته خپل زور ښکاره کوو دحکومت ،نو مونږستاسو قانون اوفیصلې منلې وې اومونږخپل حاکمان منلي وئ ـ مشران به ورته وایي زمونږ د زور له خاطره نه ،بلکه تاسو دا الله تعالى حاکمیت نه منلو ،اوپه دې باب کې زمونږ هیڅ زور نه ووپه تاسو، تاسو پخپله خوښه دوحي او درسول په ځائ مونږ ته اوزمونږ محکمو ته فیصلې راوړونکي وئ ، نومونږ ټول په دې کې برابر یو وس ،زمونږ دټولو په حق کې زمونږ دحاکم اودبادشاه فیصله د اوور ده ،چې څکو به ئ ، مونږ تاسو دا الله دقانون نه اړولي یئ څنګه چې مونږه دا الله دقانون نه اوړیدلي وو ، نودا ټول به په دغه ورځ په عذاب کې ګډ وي ، همدغه شان کوو مونږ دمجرمانو سره ، جرم ددوي داوو چې پیغمبربه ورته کله هم وئیل چې دانسانانو دا الله تعالى نه علاوه بل إله نشته ،نودوي به دا الله تعالى په ځائ مشري ځان له غوښتله چې مشري او حکومت زمونږ حق دی ،او وئیل به ئ آیا مونږه پریږدو خپل حاکمان او آلهه د یو شاعر سودائي په وینا ؟، "بل" د "اضراب" لپاره دی، یعني دی نه شاعر دی چې ښکته بره خبرې کوي ،او نه سودائي دی چې اوچتې او لوئي وایي،بلکه دا الله تعالى لخوا مُطاع او سردار دی دانسانانو ،تاسو ته ئ دا الله تعالى حق راوړی دی چې حاکم او إله جوړیدۀ دا الله تعالى حق دی ، اوهم دغه خبره ټولو رسولانو کړې ده ـ

په دې آیتونو کې دا تصریح ده چې د مشرکینو اختلاف د انبیاءعلیهم السلام سره په "إله "کې وو. او په سورۀحج کې دي چې اختلاف او اختصام ئ په "رب " کې وو ،نو ددې نه دا معلومه شوه چې "إله " او "رب "مترادف دي ، په دې کې فرق کول د قرآن سره ښکاره جنګ دی ،چې بغیر د تسلیمیدو نه بله لاره نشته، قرآن خو چا ته نه تسلیمیږي، اوس د مُلّا نمبر دی چې قرآن ته تسلیمیږي که نه؟،لیکن د دې وخت د مُلّا تعریف مفتي رشید احمد صاحب رحمه الله دا سې کړی دی:المولوی عدو الله وعدوکتابه. یعني دا چرته نه شي کیدی چې د دې وخت د علم دعویدار الله تعالی ته او د هغۀ کتاب ته تسلیم شي.

حاصل دا شو چې غلطه عقیده د مشرکینو دا ده چه الله تعالی "إله او رب "نه مني، او د نه منلو صورت ئ دا دی : "یستکبرون "، او د الله تعالی د إله کیدو په مقابل کې "آلهتنا" وایي،یعني د إله نسبت او اضافت په لفظ د جمع سره ځان ته یعني انسان ته کوي ،چې إله جوړیدل د انسان حق دی ،او د إله به د یو نه زیات وي.

## مسئله إله

کله چې دا خبره متعین شوه چې د اهلِ ایمان او د کافرانو په مینځ کې اختلاف او جګړه په "إله "او په "رب "کې ده ،نو واجب شوه چې د "رب "او د "إله "معنی معلومه کړی شي چې معلومه شي چې مشرکینو الله تعالی خپل إله په کومه معنی منلو؟. او د دې معلومول خاص دي د قرآن یعني د وحې سره ، ځکه چې دا دوحې اصطلاح ګرځیدلې ده ،حتی چې د ټولې وحې اساس دی.

**د إله معنی د کتاب الله نه**

وَلَهُ مَنْ فِي السَّمٰواتِ وَالْأَرْضِ وَمَنْ عِنْدَهُ لَا يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِهِ وَلَا يَسْتَحْسِرُونَ ١٩ يُسَبِّحُونَ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ لَا يَفْتُرُونَ ٢٠ أَمِ اتَّخَذُوا آلِهَةً مِنَ الْأَرْضِ هُمْ يُنْشِرُونَ ٢١ لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللهُ لَفَسَدَتَا فَسُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَرْشِ عَمَّا يَصِفُونَ ٢٢ لَا يُسْأَلُ عَمَّا يَفْعَلُ وَهُمْ يُسْأَلُونَ ٢٣ أَمِ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ آلِهَةً قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ هٰذَا ذِكْرُ مَنْ مَعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِي بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ الْحَقَّ فَهُمْ مُعْرِضُونَ(٢٤الانبیاء).

اویو اځې د هغۀ مملوک او غلامان دي هغه څوک چې په اسمانونو کې دي او په زمکه کې ،او کوم مملوک او غلامان چې د هغۀ سره دي یعني ملائک ،هغوي د هغۀ د حکم نه انکار نه کوي او نه ستړي کیږي ،هغوي د الله پاکي بیانوي شپه او ورځ او نه ستړي کیږي ،د مکې خلقو په زمکه کې آلهه نیولي دي، چې

دوي به بچ کړي، یاژوندي به ئ او ساتي یعني کله چې الله تعالی انسان دخپل حاکمیت دویمې مرحلې ته بوځي چې تپوس ترې وکړي چې په دنیا کې ستا رب او إله څوک وو ؟، اودوي خو هغه رب مني نه، نودا آلهه دزمکې یعني دمکې سرداران به دوي همیشه لپاره ژوندي وساتي چې دتپوس نه بچ شي ؟: څنګه چې په سوره واقعه کې ددې صراحت دی : فَلَوۡلَآ إِن كُنتُمۡ غَيۡرَ مَدِينِينَ ٨٦ تَرۡجِعُونَهَآ إِن كُنتُمۡ صَٰدِقِينَ( ٨٧ الواقعه) ،که تاسو له زۀ سزا نه درکوم نو دامړ کیدونکی ځان ته راواپس کړئ که چرې رښتني یئ چې الله حاکم نه دی دتپوس حق نه لري۔

په اولني دوه آیتونو کې ئ دزمکې او داسمان مخلوق جدا کړل ،یعني ملائک ئ د انسانانو نه جدا کړل۔ اسماني مخلوق چې ملائک نومولی کیږي که په اسمان کې وي ،اوکه په زمکه کې ،هغوي یو إله منلی دی ،اودزمکې خلقوچې انسانان نومولی کیږي ډیرآلهه ئ نیولي دي ۔

په اسمان کې الوهیت دامورتکوینیه نه عبارت دی ،او په دې ټول متفق دي یعني انبیاء، اهل کتاب اومشرکین چې دتکویني اموروبادشاه یواځې الله تعالی دی ،داخبره په تفصیل او دقرآني نصوصو په صراحت سره تیره شوه دمشرکینو په صحیح عقیدو کې۔

دقرآن کریم په شان په حدیث کې هم مصرح ده چې د مشرکینو دا عقیده ده چې دتکویني کارونو حاکم یا په اسمان کې یو إله دی ،اوخیر اوشر دهغۀ په لاس کې دي:

عَن عمرانَ بنِ حُصينٍ رضي الله عنهماقَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ لأَبِي: يَا حُصَيۡن كم تعبد الۡيَوۡم إِلَهًا؟ قَالَ أَبِي سَبۡعَةً: سِتًّا فِي الۡأَرۡضِ وواحداً فِي السَّماءِ قَالَ: فَأَيُّهُمۡ تَعُدُّ لِرَغۡبَتِكَ وَرَهۡبَتِكَ؟ قَالَ: الَّذِي فِي السَّمَاءِ الحديث (رَوَاهُ التِّرۡمِذِيّ)۔ حضرت عمران رضي الله عنه وايي:نبي علیه السلام زما پلارته اووئیل:ای حصین !تۀ د څو آلِهَو عقیده ساتی ؟، زما پلار ورته اووئیل:د اووه(۷): شپږ په زمکه کې او یو په اسمان کې ، نبي علیه السلام اووئیل:امیداو ویره دچانه ساتی په دوي کې ؟،زما پلار ورته اووئیل: دهغه نه چې په اسمان کې دی۔

په دی حدیث شریف کې نبي علیه السلام تپوس کوي او حصین رضی الله عنه جواب ورکوي ،اودی په دغه وخت کې مشرک دی ،خپله عقیده هم هغه شان بیانوي ،څنګه چې قرآن دمشرکینو عقیده بیان کړې

ده ،يعني دالله تعالى نوم ،ذات،صفات او افعال مني ،علم او قدرت د اسماني إله سره خاص مني ،دنفع اودنقصان طمع او ويره دهغهٔ نه ساتي ، دزمکې په آلِهَو کې ددې مذکوره امورو نه هيڅ هم نه مني.

وروستې آيت "لوكان فيهما آلهه "کې ئ زمکه او اسمان په باب دالوهيت کې يو شان کړه ،که په زمکه او په اسمان کې آلهه وى سيوا د الله تعالى نه ،نو په دواړو کې به جنګ وو ،لهذا الله تعالى چې په يو اځې دتخت خاوند دى ،پاک دى دهغه څه نه چې دوي ئ وايي،هغه يو اځې إله دى هم په زمکه او هم په اسمان کې ،هغه چې څه کوي څوک ترې تپوس نه شي کولى،او په زمکه کې نيولي شوي آلهه او دنيونکو نه به تپوس کيږي.

د "إله " معنى ددې آيتونو په تصريح سره داشوه: إله هغه څوک وي چې دتپوس زور لري ،او دهغهٔ نه څوک دڅه تپوس نه شي کولى. او دا معنى په توحّد دلالت کوي ،لهذا إله يو دى ،که نه بيا به فساد او جنګ وى. يعني تعدد دآلِهَو مستلزم دى فساد لره.

دا ياد ساتل پکار دي چې فساد دتکويني امورو نه دى مراد ،چې يو إله عزت ورکوي او بل ذلت، يو مرګ او بل ژوند ،يو ورځ او بل شپه وغيره. ځکه په دې باره کې دمشرکينو عقيده په ډير صراحت او په هرډول سره بيان شوه چې تکويني حکومت او تصرف يو اځې دالله تعالى صفت دى:قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَمَنْ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ فَسَيَقُولُونَ اللهُ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ(٣١يونس). وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّموَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ(٩ الزخرف).

دا فساد په څه خبره دى ؟،ددې ذکر دلته په سورهٔ انبياء کې نشته ،هغه سورهٔ بني اسرائيل بيان کړې دي :قُلْ لَوْ كَانَ مَعَهُ آلِهَةٌ كَمَا يَقُولُونَ إِذًا لَابْتَغَوْا إِلى ذِي الْعَرْشِ سَبِيلًا(٤٢الاسراء). تهٔ او وايه:که نور آلهه وې دالله تعالى سره لکه چې مشرکين وايي، نوتلولو به دعرش خاوند ته د رسيدولار لټوله، چې تخت يعني حکومت ترې لاس ته کړي.ځکه د إله تصوربغير دحکومت او تخت نه شته ،او دإله لپاره تخت يعني حکومت اساس او رکن دى ،او دى بل به نه ورکولو ،ځکه دا هم إله دى ،تخت ورله لازم دى ،نود آلهو جنګ به وو ،چې په سورة الانبياء کې ورته فساد وئيلي دي.

ددې آيت نه يو څو خبرې معلومې شوې:۱۔ إله د تخت خاوند بادشاه او حاکم وي ،۲۔ إله يو اځې وي يعني په إله کې توحد او تفرد لازم او تعدد پکې محال غير متصور دی۔۳۔ زورآور وي ،حکومت په زور کوي۔ ددريوا ړو خبرو حاصل دا دی :چې دإله تصور بغير د توحد او د زور او د عرش نه نشته۔

ددې آيت نه دا هم معلومه شوه چې دآلهو جنګ په تخت يعني په حکومت باندې دی ۔

او س صورت د فساد څه دی ؟، هغه په دې آيت کې نشته ،هغه سوره مؤمنون بيان کړی دی : مَا اتَّخَذَ اللهُ مِنْ وَلَدٍ وَمَا كَانَ مَعَهُ مِنْ إِلَهٍ إِذًا لَذَهَبَ كُلُّ إِلَهٍ بِمَا خَلَقَ وَلَعَلَا بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ سُبْحَانَ اللهِ عَمَّا يَصِفُونَ( ۹۱)، نه دې نيولې الله تعالی څوک نائب په خوښه او نه ورسره څوک په زور حاکم شته ،که دا سې وی نو هر إله به خپل فوج بوتلی وو او په يو بل به ئ غور ځنګونه کو ل۔

**إتخاذالولد**

"اتخاذالولد" اصطلاح ده د بادا شاهانو ۔ قرآن هم دا اصطلاح راخستی ده ،ځکه دا د بادشاه کلام دی۔ دا کلمه استعماليږي لپاره د نائب نيولو په حکومت کې ،که د نبوت عقيده ورسره وي او که نه ۔

عزيز مصر ريان چې د مصر بادشاه وو ،او عزيز ئ حاکمي لقب وو ،هغهٔ هم د يوسف عليه السلام لپاره دغه اصطلاح استعمالوي :وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ مِنْ مِصْرَ لِامْرَأَتِهِ أَكْرِمِي مَثْوَاهُ عَسَى أَنْ يَنْفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا وَكَذَلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ وَاللهُ غَالِبٌ عَلَى أَمْرِهِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (يوسف ۲۱).او وئيل هغه چاچې وا خستلو ئ يوسف په مصر کې خپلی ښځی ته: په عزت و ساته دی ،کيدی شي زمونږ په کار راشي يا به ئ ونيسومونږ خپل نائب۔ يعني زما په ځائ به د مصر بادشاه شي۔

د مصر بله بادشاهي کورنۍ هم د خپل حکومت د نيابت لپاره دغه اصطلاح استعمالوي : وَقَالَتِ امْرَأَتُ فِرْعَوْنَ قُرَّتُ عَيْنٍ لِي وَلَكَ لَا تَقْتُلُوهُ عَسَى أَنْ يَنْفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ( ۹القصص) ۔ قرآن عظيم الشان ددې اصطلاح اصل باب يعني مجرد هم په دغې معنې کې استعمال کړې ده :أَلَاإِنَّهُم مِّن إِفكِهِم لَيَقُولُونَ وَلَدَاللهُ وَإِنَّهُم لَكَاذِبُونَ، خبردار !دوي دروغ وايي :چې الله تعالی ځان له نائب نيولی دی ،اودوي يقينًا دروغژن دي ،دوي په دغې دروغو په سورهٔ مؤمن کې رد په "ماا تخذالله من ولد وماکان معه من إله "سره شوی دی۔ددې نه مخکې آيت کې وايي :بَل جَاءَهُم بِالحَقِ وَإِنَهُم لَكَاذِبُونَ۔ بلکه دوي ته راغلی دی دالله تعالی حق او يقينًا دوي دروغژن دي۔

**حاصل**: "سورۀ انبیاء" اووې: تعدد دآلهو مستلزم دی فساد لره، "بني اسرائیل" اووې دغه فساد په تخت یعني په حکومت باندې دی، "مؤمنون "معنی او صورت دفساد په جنګ سره بیان کړوچې په یوبل به ئ فوجونه اچولي وو ،حمله به ئ کړې وه۔ ددلائل مذکوره نتیجه: الله تعالي یواځي إله دی په زمکه کې څنګ چې په اسمان کې یواځې إله ددی ،بل څوک إله نشته،نه په خوښه اونه په زور۔دإله په معنی کې یواځې والې،زور ،طاقت،دتخت خاوند کیدل داخل دي، چې إله یواځې وي،د زور خاوند وي،دعرش خاوندوي،یعني حکومت په زورکوي۔ (حکومت، قوت، وحدت)۔

## تعریف دإله ددې آیتونو په رڼا کې

الحاکم علي الاطلاق، المتفرد في الحکم ،لامعقب لحکمه۔

د"علي الاطلاق" معنی ده :الله تعالی حاکم منل هم په تکویني امورو کې اوهم په تشریعي امورو کې،هم په دنیاکې اوهم په آخرت کې،هم په ظاهره اوهم په باطن کې ۔ د "المتفرد في الحکم" معنی ده:حکمرانی کې یواځې به وي،تعدد به نه وي۔ د "لامعقِّب لحکمه" معنی ده :حکومت په زور کوي ،ددۀ حکم څوک شاته کولی نشي۔

## فرق په مینځ دامورتکوینیه او  دامورتشریعیه کې

تکویني امورهغه دي چې انسان پکې هیڅ اختیارنه لري اونه ورته دهغې څه علم وي ،محض دالله تعالی فعل وي ،لکه اهانت،عزت ،نر،ښځه،روغ،ناروغه،تور،سپین،رزق ،مرګ ،ژوند۔ ددې مشرکین قائل وو ،ځکه ددې رجع علم اوقدرت ته ده ،اوددې دوااړوصفتونومشرکین داسې قائل ووچې بل ئ ورسره څوک شریک نه منلو ،هم په دغه معنی ئ الله ته خپل رب او إله وئیل ،په ټول قرآن کې چې څومره اوکوم ځائ رغلي وي چې مشرکینو الله تعالی خپل رب او إله منلو د هغه هم دغه یو مصداق دی بل نه۔ یوڅو ځایونه مونږ ذکر کوو :۱۔ فَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنۡيَا وَمَا لَهُ فِي الۡآخِرَةِ مِنۡ خَلَاقٍ ، وَمِنۡهُمۡ مَنۡ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنۡيَا حَسَنَةً وَفِي الۡآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ(البقره۲۰۰،۲۰۱)، مشرکینوبه حج کولو اوپه دعاءکې به ئ وئیل:ای ربه زمونږه !راکړې مونږته په دنیاکې حاجتونه زمونږ، نوالله تعالی ته "ربّ" وایي په دې عقیده چې ددنیادخیراودشر رب یعني مالک الله تعالی دی، دا تکویني اموردي، ددوي په مقابل کې مؤمنان الله تعالی علی الاطلاق رب مني یعني الله تعالی حاکم تکویني او تشریعي

دوا ړه مني ، نود هغوي دعاء دا سې ده : وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ(٢٠١ ) ـ دنیاهم دالله نه غواړي او آخرت هم ،او په آخرت کې الله تعالی يواحې فیصلي کوي ـنو په دې معنی ورته رب وايي ـ

٢ ـ فَأَمَّا الْإِنْسَانُ إِذَا مَا ابْتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكْرَمَهُ وَنَعَّمَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَكْرَمَنِ ، وَأَمَّا إِذَا مَا ابْتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيْهِ رِزْقَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ ، كَلَّا بَلْ لَا تُكْرِمُونَ الْيَتِيمَ ، وَلَا تَحَاضُّونَ عَلَى طَعَامِ الْمِسْكِينِ (الفجر ١٨،١٧،١٦،١٥) ، دغه مذکور انسان چې طغيان في البلاد او فساد في البلاد کوي ،مراد ترینه په ماقبل آیتونو کې مذکور اقوام دي:عاد ، ثمود ،آل فرعون ـ دوي د ذلت مالک الله تعالی مني،عزت ورکونکی الله تعالی مني ،"مالک الخير"او "مالک الشرّ" الله تعالی مني ،دا تکویني امور دي،په دې معنی الله تعالی ته "رب" وايي ـ تشريعي "رب" ئ نه مني، لهذا په مال کې دالله تعالی قانون او حق نه مني ،لکه بل ځائ کې الله تعالی ددوي په باره کې فرمايي :وَوَيْلٌ لِلْمُشْرِكِينَ ،الَّذِينَ لَا يُؤْتُونَ الزَّكَاةَ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ (حم السجده ٧،٦)، او هلاکت دی د مشرکينو لپاره چې دالله تعالی مالي قانون نه مني ځکه چې دوي دالله تعالی د حاکميت يعني د قيامت نه انکار کوي ـ

٣ـ قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا أَنْزَلَ هَؤُلَاءِ إِلَّا رَبُّ السَّمواتِ وَالْأَرْضِ بَصَائِرَ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَافِرْعَوْنُ مَثْبُورًا ( الاسراء ١٠٢)، او وئيل موسى عليه السلام يقينا تاته ښه پته ده چې نه دي نازل کړي دا قوانين دژوند چې تۀ ترې انکار کوی مګر هغه چاچې چې تۀ ئ منی چې دا سمانونو او دزمکو مالک دی ،حضرت موسی علیه السلام فرعون دالله تعالی د حکومت دعوت ورکوي سره د دلیل نه چې ته الله رب السموات والارض يعني تکويني حاکم منی نو تشريعي ئ هم اومنه ـ

۴ـ وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمواتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا (الکهف ١۴)، د قوم وکیلان يعني پارلمان د دغې ځوانانو نه تپوس کوي ،تاسو دوخت حاکم او قانون ته ولې نه تسليمیږئ؟،نودوي د قوم دوکيلانو يعني د پارلمان په مخکې دا سې اووی:زمونږ تشريعي حاکم هغه ځوک دی چې مونږ او تاسوئ په اتفاق سره تکويني حاکم منو ، دا علت دی د تشريعي حاکم کیدو لپاره ،يعني تکويني حکومت ئ د تشريعي لپاره علت وګرځولو ،ځکه چې تکوین عبارت دی د علم او د قدرت نه او دا علت دي لپاره د حکومت مطلقه،او ددې علت د هروخت مشرکین قائل او معترف وو ـ

۵ـ قُلْ مَنْ رَبُّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَرَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ (٨٦ المؤمنون)ـ

۶ـ قَالَ رَبُّ السَّموٰاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا إِنْ كُنْتُمْ مُوقِنِينَ (۲۴ الشعراء)۔

۷ـ قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ (۲۸ الشعراء)۔

۸ـ وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّلْ لَنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ (۱۶ص)۔

تشريعي امور دي چي انسان په هغي مکلف وي ،لکه: کفر، ايمان، عقوبات يعني د مخصوص جرائمو مخصوص سزاګاني، حلال ،حرام د دي قسم حاکميت مشرکين قائل نه وو- وئيل به ئ چي الله تعالى انسان ته اختيار ورکړي دي چي د خپل ژوند لپاره قانون سازي وکړي-

وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ نَحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ (النحل ۳۵)۔

## د مشرکينو الله تعالى ته خپل رب وئيل

په ډيرو آيتونو کې مصرّح ده چې مشرکينو الله تعالى خپل رب نه منلو: ۱ـ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِعَادٍ قَوْمِ هُودٍ (۶۰ هود)،۲ـ كَأَنْ لَمْ يَغْنَوْا فِيهَا أَلَا إِنَّ ثَمُودَ كَفَرُوا رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِثَمُودَ (۶۸ هود)، ۳ ـوَإِنْ تَعْجَبْ فَعَجَبٌ قَوْلُهُمْ أَإِذَا كُنَّا تُرَابًا أَإِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ أُولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ وَأُولَئِكَ الْأَغْلَالُ فِي أَعْنَاقِهِمْ وَأُولَئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ (۵ الرعد)، ۴ـ إِنَّ الْإِنْسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ (۶ العاديات)، ۵ـ هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِنْ نَارٍ يُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ (۱۹ الحج)، ۶ـ قُلْ مَنْ يَكْلَؤُكُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُعْرِضُونَ (۴۲ الانبياء)، ۷ـ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي خَلَقَ السَّموٰاتِ وَالْأَرْضَ وَجَعَلَ الظُّلُمَاتِ وَالنُّورَ ثُمَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ (۱ الانعام)، ۸ـ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ أَنْ آتَاهُ اللهُ الْمُلْكَ إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ وَاللهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (البقره ۲۵۸)، ۹ـ وَأُحِيطَ بِثَمَرِهِ فَأَصْبَحَ يُقَلِّبُ كَفَّيْهِ عَلَى مَا أَنْفَقَ فِيهَا وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا وَيَقُولُ يَالَيْتَنِي لَمْ أُشْرِكْ بِرَبِّي أَحَدًا (الکهف ۴۲)، ۱۰ـ قَالَ فِرْعَوْنُ وَمَا رَبُّ الْعَالَمِينَ (الشعراء ۲۳)، ۱۱ـ إِذْ نُسَوِّيكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ (۹۸ الشعراء) ، ۱۲ـ وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا الْمَلَائِكَةُ أَوْ نَرَى رَبَّنَا لَقَدِ اسْتَكْبَرُوا فِي أَنْفُسِهِمْ وَعَتَوْا عُتُوًّا كَبِيرًا (۲۱ الفرقان)۔

او په څه آيتونو کې تصريح ده چې مشرکينو الله تعالى ته رب وئيل: ١ـفَمِنَ النَّاسِ مَنۡ يَقُولُ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنۡيَا وَمَا لَهُ فِي الۡآخِرَةِ مِنۡ خَلَاقٍ (٢٠٠البقره)، ٢ـ قُلۡ مَنۡ رَبُّ السَّموَاتِ السَّبۡعِ وَرَبُّ الۡعَرۡشِ الۡعَظِيمِ (٨٦ البقره)، ٣ـ قَالَ لَقَدۡ عَلِمۡتَ مَا أَنۡزَلَ هَؤُلَاءِ إِلَّا رَبُّ السَّموتِ وَالۡأَرۡضِ بَصَائِرَ وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا فِرۡعَوۡنُ مَثۡبُورًا (١٠٢الاسراء)، ۴ـقَالَ رَبُّ السَّموتِ وَالۡأَرۡضِ وَمَا بَيۡنَهُمَا إِنۡ كُنۡتُمۡ مُوقِنِينَ (٢۴الشعراء)، ۵ـ قَالَ رَبُّ الۡمَشۡرِقِ وَالۡمَغۡرِبِ وَمَا بَيۡنَهُمَا إِنۡ كُنۡتُمۡ تَعۡقِلُونَ (٢٨ الشعراء)، ٦ـ وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّلۡ لَنَا قِطَّنَا قَبۡلَ يَوۡمِ الۡحِسَابِ (١٦ص)، ٧ـ فَأَمَّا الۡإِنۡسَانُ إِذَا مَا ابۡتَلَاهُ رَبُّهُ فَأَكۡرَمَهُ وَنَعَّمَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَكۡرَمَنِ (١۵الفجر)، ٨ـ وَأَمَّا إِذَا مَا ابۡتَلَاهُ فَقَدَرَ عَلَيۡهِ رِزۡقَهُ فَيَقُولُ رَبِّي أَهَانَنِ (١٦الفجر)، په "الانسان "کې الف لام دعهد خارجي لپاره دي ،مراد ترينه هغه انسان دی چې ماقبل کې تيرشو:عاد ،ثمود ،فرعون ـ دمشرکينو الله تعالى ته رب وئيل دخپلې عقيدې مطابق دي ،يعني بمعنی مالک چې تعلق ئې دتکويني امورو سره دی، چي الله تعالى ددي مالک دی،او د الله تعالى د "إله " او د "رب "کيدو نه چي انکارکوي نو هغه په تشريعي امورو کې،يعني الله تعالى په انسانانو باندي دحکومت کولو ،أمرکولو ،قانون مقررولو حق نه لري ـ

دعمران بن حصين رضی الله عنه نه روايت او س ذکر شو چي نبي عليه السلام زما دپلار نه تپوس وکړو چې تهٔ په دې وخت کې د څو آلِهَو عقيده لرې؟،زماپلار اووې: د اووه آلِهَو عقيده لرم: شپږ په زمکه کې اويو په اسمان کې نبي عليه السلام اووئيل تهٔ په دوي کې دکوم يو نه طمع اوخوف کوې؟،زماپلار اووئيل:دآسمان والا نه طمع او ويره ساتم ــــــــــــ الحديث ، رواه الترمذي ـ

داآيات مبارکه اوداحديث نص دی په دې خبره کې چې مشرکين په تکويني امورو کې بلاشرکت غير دالله تعالى دحاکميت قائل وو ـ دزمکې آلهه ئې په دې صفت نه منل، هم دغه شان جواب د ابراهيم عليه السلام مشرک پلار اودهغهٔ مشرک قوم هغهٔ ته ورکړی وو چي دا آلهه علم اوقدرت نه لري ،لهذا دوي چاته نفع او نقصان نه شي رسولی ـ

پيغمبرانو ورته دا دعوت ورکولو چې الله تعالى مطلق حاکم اوسردارومنئ هم تکويني او هم تشريعي اودطاغوت يعني دناحق سردارانو نه ځان وساتئ:

١ـ وَلَقَدۡ بَعَثۡنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعۡبُدُوا اللهَ وَاجۡتَنِبُوا الطَّاغُوتَ فَمِنۡهُمۡ مَنۡ هَدَى اللهُ وَمِنۡهُمۡ مَنۡ حَقَّتۡ عَلَيۡهِ الضَّلَالَةُ فَسِيرُوا فِي الۡأَرۡضِ فَانۡظُرُوا كَيۡفَ كَانَ عَاقِبَةُ الۡمُكَذِّبِينَ (النحل٣٦)، په دې باندې ئې دټولو نه لوظ واخستو ، زمکه

او اسمان او حضرت آدم علیه السلام ئ په دی ګواه کړل : وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُمْ بِهِ إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاتَّقُوا اللهَ إِنَّ اللهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ المائده ۷ ، وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا الایه ( الاعراف ۱۷۲)۔

عَن أبي بن كَعْب فِي قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ (وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهم وَأشهَدَهُم عَلى أنفُسِهِم) الْآيَة قَالَ جَمَعَهُم فَجَعَلَهُم أرواحًا ثُمَّ صَوَّرَهُمْ فَاسْتَنْطَقَهُمْ فَتَكَلَّمُوا ثُمَّ أَخَذَ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ وَالْمِيثَاقَ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالَ فَإِنِّي أشهد عَلَيْكُم السّموات السَّبْعَ وَالْأَرَضِينَ السَّبْعَ وَأُشْهِدُ عَلَيْكُمْ أَبَاكُمْ آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَام أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَمْ نَعْلَمْ بِهَذَا اعْلَمُوا أَنَّهُ لَا إِلَهَ غَيْرِي وَلَا رَبَّ غَيْرِي فَلَا تُشْرِكُوا بِي شَيْئا وَإِنِّي سَأُرْسِلُ إِلَيْكُمْ رُسُلِي يُذَكِّرُونَكُمْ عَهْدِي وَمِيثَاقِي وَأُنْزِلُ عَلَيْكُمْ كُتُبِي قَالُوا شَهِدْنَا بِأَنَّكَ رَبُّنَا وَإِلهُنَا لَا رَبَّ لَنَا غَيْرُكَ ولا إله لَنَا غَيرُک فَأَقَرُّوا بِذَلِكَ وَرُفِعَ عَلَيْهِمْ آدَمُ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ فَرَأَى الْغَنِيَّ وَالْفَقِيرَ وَحَسَنَ الصُّورَةِ وَدُونَ ذَلِكَ فَقَالَ رَبِّ لَوْلَا سَوَّيْتَ بَيْنَ عِبَادِكَ قَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ أَنْ أُشْكَرَ وَرَأَى الْأَنْبِيَاءَ فِيهِمْ مِثْلَ السُّرُجِ عَلَيْهِمُ النُّورُ خُصُّوا بِمِيثَاقٍ آخَرَ فِي الرِّسَالَةِ وَالنُّبُوَّةِ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى :وَإِذْ أَخذنَا من النَّبِيين مِيثَاقَهُم إِلَى قَوْلِه :عِيسَى ابْن مَرْيَم .كَانَ فِي تِلْكَ الْأَرْوَاحِ فَأَرْسَلَهُ إِلَى مَرْيَمَ فَحُدِّثَ عَنْ أُبَيٍّ أَنَّهُ دَخَلَ مِنْ فِيهَا. (رَوَاهُ أَحْمَدُ )۔

## په حاکمیتِ تشریعي کې د اعذارِ اربعه ابطال

په باب د حاکمیت کې هیڅ قسمه عذر قابل قبول نه دی۔ په تتبُع سره دا عذرونه څلور کیدی شي :۱ ۔ په باب د حاکمیت کې غفلت عذر نه دی : وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هَذَا غَافِلِينَ (الاعراف ۱۷۲)۔۲۔ دا عذر هم مقبول نه دی چې او وایي چې دا خو زمونږ د پلارنیکه عقیده راروانه ده : أَوْ تَقُولُوا إِنَّمَا أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِنْ بَعْدِهِمْ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُونَ (۱۷۳) ۔ ۳۔ مُلا هم په عذر کې نه شي پیش کولی چې مولوي صاحب هم تشریعي حاکمیت دالله تعالی په ځائ دانسان حق منلو ،او مونږ په دغه ملا پسې روان وو : وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِي آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ فَكَانَ مِنَ الْغَاوِينَ ( ۱۷۵الاعراف ) ۔ ۴۔ وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لَا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَا يَسْمَعُونَ بِهَا أُولَئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ ۱۷۹، دا عذر هم څوک نه شي کولی چې اکثریت او جمهور په دي عقیده وو چې الله تعالی د حکومت لپاره د تقنین اجازت انسان ته ورکړی دی ،نو مونږ څه کړي وې؟

الله تعالى وايي چې دا خلق خوما د جهنم لپاره پيدا کړي دي،دجنت لپاره خوما انبياء رالیږلي وو ،قانون مې رالیږلې وو ،که چا منلي وي جنت ته به ځي، او که چا ددنیادخلقو منلي وي نو جهنم ته به ځي:لهم قلوب لايعقلون بها۔ ددې خلقو زړونه شته خو په هغې سره الله تعالى نه پيژني ،سترګې شته خو په هغې ګوري نه ،غوږونه شته خو دالله تعالى قانون په نه اوري ، دوي دځناورو پشان په خپل خواهش روان دي،لکه چي غير مکلف وي،بلکه دځناورو نه هم بدتر دي ،ځکه هغه دانساني عقل نه محروم دي چې هغه مداردی دتکليف۔

ددې آيتونو نه معلومه شوي چې مشرکينو الله تعالى په تکويني امورو کې بلاشرکت غير حاکم منلو او هم په دغه عقيده ئ ورته رب او إله وئيلو يعني کارساز ،خالق، مالک، رازق، عزت او ذلت ورکونکی ، مړکونکی ،ژوندي کونکی۔ او تشريعي حاکم ئ نه منلو نو په دې عقيده ئ ورته رب او إله نه وئيل۔د اولني تعلق دټول مخلوق سره دی نو ځکه هغه عام دی لکه رب السموات ،رب الارض ،رب العرش،رب المشرق والمغرب ،رب الناس۔ او ددويم تعلق دانسان سره دی فقط نو ددې وجې نه هغه خاص دی لکه رب الناس ،رب العلمين ،ربنا،ربکم ۔

## "رب"او "إله "مترادف دي

دادواړه لفظونه د وحي جلي اصطلاح ګرځيدلې ده ځکه چې دادقرآن پاک بلکه دټولی وحي موضوع ده۔ لهذا دادواړه لفظونه په قرآن پاک کې مرکزي حيثيت لري نوواجب ده چې دقرآن کريم نه دا دواړه په هرجهت سره وپيژندلی شي۔اولنی خبره داده چې آيا دا دواړه جداجدا لفظونه دي او که مترادف دي يعني لفظونه دوه دي خو معنی ئ يوه ده ،دقرآن نه داظاهريږي چي دا دواړه مترادف دي۔دقرآن دلوري نه دا په هرجهت سره پيژنده پکاردي۔ ددې دواړو په يووالي باندي مونږ دلائل بيانوو ۔

اول دليل۔ قرآن پاک چې دانبياء عليهم السلام اودهغوي دامتونو کوم اختلاف بيان کړی دی ،نو په سوره حج کې ئ ددې اختلاف مرکزي نکته کلمهٔ "رب " ذکر کړی ده : هَذَانِ خَصْمَانِ اخْتَصَمُوا فِي رَبِّهِمْ فَالَّذِينَ كَفَرُوا قُطِّعَتْ لَهُمْ ثِيَابٌ مِنْ نَارٍ يُصَبُّ مِنْ فَوْقِ رُءُوسِهِمُ الْحَمِيمُ(١٩) ، او په سوره صافات کې ئ "إله " ذکرکړی ده : إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ(٣٥)وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُو آلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَجْنُونٍ(٣٦)۔ نو يو دليل دغه دوه عنوانات دا ختصام شو۔

دويم دليل ـ نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ إِنَّهُمْ فِتْيَةٌ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ وَزِدْنَاهُمْ هُدًى ١٣ وَرَبَطْنَا عَلَى قُلُوبِهِمْ إِذْ قَامُوا فَقَالُوا رَبُّنَا رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَنْ نَدْعُوَ مِنْ دُونِهِ إِلَهًا لَقَدْ قُلْنَا إِذًا شَطَطًا( الكهف ١٤)، دا يو څو ځوانان وو چې الله تعالى ئ خپل حاکم منلى وو ، او مونږ ورته په دى باندي استقامت ورکړى وو ، او غوټه موورکړې وه په زړونو د دوي ـ ربط القلب د ايمان هغه درجه ده ، چې بيا د ظاهري اسبابو نه نه متأثره کيږي ـ کله چې هغوي ودريدل ـ د دې نه حسّي قيام نه دى مراد ، بلکه مقاومت مراد دى ، د دوي نه بادشاه او قوم يعني پارلمان تپوس وکړو: مَن رَبُكم ؟ ، لکه فرعون چې وئيلي وو : مَن رَبُكما ـ دوي خپله عقيده بيان کړله ، سره د دليل نه ، چې زمونږ رب هغه څوک دى چې فريقين يعني مونږ او تاسوئ د زمکې او د اسمانونو مالک منو ، او په ثمره کې بيا وايي : لن ندعوا من دونه إلها ـ مونږ د هغهٔ نه سيوا بل چا ته هرگز إله نه شو وئيلى ـ نو که إله او رب په يو معنى نه شي ، نو د خبرې ابتداء چې : مُدَعَى او عقيده پکې مذکور ده سره د دليل نه ، او انتهاء چې :نتيجه د دليل پکې مذکور ده ، دا ديو بل نه خلاف کيږي او کلام عبث او بى معنى گرځي ـ

دريم دليل ـ وَإِلَى عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ (هود٥٠)، او عاديانو ته مونږ ليگلى وو د هغوي ورور هود عليه السلام ، هغهٔ وئيل: اى زما قومه ! الله تعالى خپل حاکم ومنئ ، نشته ستاسو لپاره بل حاکم د هغهٔ نه سيوا ، نه يئ تاسو مگر د روغ تړونکي په الله تعالى باندې ـ د قوم عاد دا الله تعالى د إله کيدلو نه د انکار کولو او د هغوي د تباه کولو نه روسته الله تعالى فرمايي :
وَتِلْكَ عَادٌ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ٥٩ وَأُتْبِعُوا فِي هَذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِعَادٍ قَوْمِ هُودٍ( ٦٠ هود)، دغه عاديان وو ، چې انکار ئ کړي وو د خپل رب د حکمونو نه او د هغهٔ د رسولانو ئ او نه منله ، او د هغه چا حکم ئ ومنو چې هغه سرکشه او مخالف وو د الله تعالى د قانون ، او ورپسې شو په دوي پسې په دې دنيا کې او په ورځ د قيامت لعنت ، ښه واورئ ! عاد انکار کړى دى د الله تعالى د رب کيدلو نه ، ښه واورئ لرې کړى شوي دي عاديان د الله تعالى د رحمت او د قانون نه ، چې د هود عليه السلام قوم دى ـ

حضرت هود عليه السلام قوم ته دعوت د "إله" ورکوي ، او قوم انکار د "رب" نه کړى دى ، معلومه شوه چې دا دواړه په يو معنى دي ، کنه ټول سورت او بيا ټول قرآن عبث گرځي ـ

**ځلورم دلیل۔** حضرت صالح علیه السلام دعوت ورکوي قوم ثمود ته د "إله ": وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ هُوَ أَنْشَأَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُجِيبٌ(٦١هود)،

بیا الله تعالی فرمایي: أَلَا إِنَّ ثَمُودَ كَفَرُوا رَبَّهُمْ أَلَا بُعْدًا لِثَمُودَ ، ښه واورئ ! ثمودیانو دخپل رب نه انکار وکړو ۔ که رب او إله په یو معنی نه شي نوټول کلام یعني دعوت دنبي اود قوم جواب بی ربطه کیږي ۔او دا بی ربطي دالله تعالی د کلام صفت ګرځي ،چې نتیجه ئ دحد نه زیاته خطرناکه ده ۔

**پنځم دلیل ۔** حضرت شعیب علیه السلام هم دعوت د "إله " ورکوي ،اود قوم د هلاکت وجه دثمودیانو هغه بیانوي: وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ وَلَا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ إِنِّي أَرَاكُمْ بِخَيْرٍ وَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ مُحِيطٍ(٨٤)،كَأَنْ لَمْ يَغْنَوْا فِيهَا أَلَا بُعْدًا لِمَدْيَنَ كَمَا بَعِدَتْ ثَمُود(٩٥)،
اوثمودیانو دالله تعالی د "رب" کیدو نه انکار کړی وو: الاإن ثمود کفروا ربهم ،نو مدین والا هم په دغه جرم نیولي شوي وو یعنې:کفروا ربهم ، نودعوت د "إله" اوانکار د "رب" نه ؟، دا به هله درست شي چې دواړه یو شي ،اوکه یو نه شي نوټول قرآن لغو کیږي ۔

**شپږم دلیل۔** الله تعالی حضرت موسی او حضرت هارون علیهماالسلام ته أمر کوي:فَأْتِيَا فِرْعَوْنَ فَقُولَا إِنَّا رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ(١٦الشعراء)، ورشئ دواړه فرعون ته ،او هغۀ ته اووائ په قسم سره: مونږ دخلقو درب له خوا نه دمصر د خلقو لپاره واجب الطاعه یعني حکمرانان رالیګلي شوي یو۔ فرعون تپوس کوي: وَمَارَبُّ العَالَمِين ، تۀ دخپلې دعوې ضاحت وکړه چې سره ستا او دهارون ،د مصر دخلقو حاکم څوک دی؟ ،دلته "ما " په معنی د "مَن " دی،فرعون د "رب"او د" العالمین " د معنی نه ښه واقف وو ،نوددې دمعنی تپوس نه کوي۔ هغه داتپوس کوي چې په دې صفت تۀ څوک متصف منی ؟،ددې وجې نه سورۀ طه کې سوال په "مَن " سره راغلی دی : قَالَ فَمَنْ رَبُّكُمَا يَامُوسى (طه٤٩) ۔

دموسی علیه السلام په دعوت کې په سورۀ الشعراء کې "إنارسول رب العالمین " دی، نوځکه دفرعون په سوال کې هم لفظ د "رب العالمین " دی۔ اوپه طه کې "إنارسولاربک " دي ،نوځکه دفرعون په سوال کې "من ربّکما "دی۔ حالانکه پکاروه: مَن ربّي ،لیکن داسې ئ اونه وئیل،ځکه چې مرادترې دانسانانو رب

اوحاکم دی، که فرعون شي ،اوکه موسی اوهارون ، اوکه د مصر ،یا ددنیا وسیدونکي ټول انسانان ـ ددي وضاحت نه دا هم معلومه شوه چې د "العلمین "نه مراد فقط انسانان دي ، پیریان تابع دي، بله څه معنی دقرآن په اصطلاح کې نه ده مراد ـ

موسی علیه السلام ورته په دلیل کې مسلّم عقیده پیش کوي څنګ چې دقرآن اسلوب دی ،اوهم دغې ته دلیل عقلي وئیلي کیږي چې خبره دنظر نه بداهت اومحسوس ته منتقل شي ،او دبداهت نه څوک په شرط دسلامت عقل انکار نه کوي ،او که وکړي نو دعقل سلیم دعوی نه شي کولی ،لکه دماسپخین د لمر دزلیدو په وخت کې د ورځ نه انکار :قَالَ رَبُّ السَّموٰاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا إِنْ كُنْتُمْ مُوقِنِينَ ٢٤، دلته "رب السموت والارض الایه "خبر دی لپاره دمبتدامحذوف چې "رب العالمین "دی، په حذف ئ قرینه ذکر کیدل دي په سوال کې ،لهذا "رب السموت "د "رب العالمین "نه بدل نه دی ،لکه چې بعض اهل العلم ته دا اشتباه شوي ده ،ددې قرینه ظاهري نه علاوه ددی مثال په قرآن کې شته یعني خبر واقع کیدل د مبتدا لپاره چې هغه رب مضاف الی الانسان دی ،١ـ رَبُّنَا رَبُّ السَّموٰتِ وَالارضِ الایه(١٤الکهف)ـ ٢ ـ بَل رَّبُّكُم رَبُّ السَّموٰتِ وَالارضِ الَّذِي فَطَرَهُنَّ الایه(٥٦الانبیاء) ـ

"إِنْ كُنْتُمْ مُوقِنِينَ " مستقل جمله ده ،هم ددې وجې نه په "ومابینهما "باندې دوقف لازم علامت "م "لیکلې شوی دی ، "ان "مخففه من المثقله دی ،اوعبارت داسې سی :انّکم کنتم موقنین،چې تاسو دالله تعالی داسمانونو او دزمکو دمالک کیدلو قائل یئ، لکه بل ځائ کې دي : قَالَ لَقَدْ عَلِمْتَ مَا أَنْزَلَ هَؤُلَاءِ إِلَّا رَبُّ السَّموٰاتِ وَالْأَرْضِ الایه(١٠٢الاسراء)، هم دغه شان "ان کنتم تعقلون"دی په راروان آیت کې ـ بیادا جمله اسمیه مبتدا سره دخبرنه مقوله ده د "قال "لپاره ـ نوفرعون دپارلمان خلق یعني ملأالقوم چې حاضر وخت کې ورته دپارلمان وکیلان وئیلی شی، هم متوجه کړل: قَالَ لِمَنْ حَوْلَهُ أَلَا تَسْتَمِعُونَ(٢٥الشعراء)،وې وئیل خپل پارلمان ته: آیاتاسو نه اورئ دانااشناخبره ـ اوپه دې کې فائده دموسی علیه السلام وه ،چې دالله تعالی دحاکمیت دعوت به لویو وړو ټولو واکدارانو ته متوجه شي ـ قال رَبُّكُمْ وَرَبُّ آبَائِكُمُ الْأَوَّلِينَ ،اووئیل موسی ستاسو او ستاسو دپلارانو رب چې تیر شوي دي ،دا "تعمیم بعدالتخصیص "دی ،یعني دعوت ئ بیا دسره کړو ،چې وخت دسره دانسانانو حاکم الله تعالی دی، دا ددعوې تکرار دی دموسی علیه السلام لطرفه ،دلیل نه دی ـ

قَالَ رَبُّ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَمَا بَيْنَهُمَا إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ (۲۸ الشعراء)، دادويم دليل عقلي دى په مدعى باندې. قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ إِلَهًا غَيْرِي لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُونِينَ(۲۹) ، که زما نه علاوه دې بل څوک إله ومنلو نوزما دې قسم وي په الله: جيل به دې کړم.

کله چې دعوى د الله تعالى د حاکميت، او د موسى عليه السلام د رسالت او د نيابت بديهي او ظاهرالثبوت شوه ،حتى چې د فرعون سره څه عذر پاتې نه شو ، لکه چې نمرود عاجزه شو د خليل د دلائلو نه ،د الله تعالى د رب او حاکم کيدلو په حق کې ،هم دغه شان فرعون مبهوت او لاجوابه شو ، نو په ضد شو او د زور خبرې ئ شروع کړې.

ښه غور اوفکر وکړئ موسى عليه السلام په دعوت او په دعوى کې د "رب "لفظ راوړي ،اوفرعون په استفسار کې د رب او په جواب اوپه رد کې د "إله" لفظ ذکرکوي.که ترادف ونه منلى شي نو د الله تعالى کلام چې افصح الکلام او معجزکلام دى، تر اوسه پورې چا ددې مثل نه دى راوړى ،هغه به يو بى ربطه ،بى ترتيبه، محض خيالي کلام پاتى شي ، چې ورته به نفس کلام وئيل هم ځايه ، د الله کلام خو لاڅه کوى.

اووم دليل. په سوره شعراءکې فرعون ځان ته "إله "وايي: قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ إِلَهًا غَيْرِي لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُونِينَ (۲۹)، په سوره قصص کې هم ځان ته "إله "کې وايي: وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرِي الايه( ۳۸)، په دې دوه سورتونو کې دهغۀ ځان ته "إله "وئيل ذکر دي، اوپه سوره نازعات کې ځان ته "رب "وايي :أناربکم الاعلي .ددې نه معلومه شوه چې "رب "او "إله "مترادف دي .

اتم دليل. قَالَ أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِي يَا إِبْرَاهِيمُ لَئِنْ لَمْ تَنْتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا (مريم ۴۶)،دلته د آزر په کلام کې لفظ د "آلهه" دى ،ددې جواب په سوره انبياء کې په لفظ د "رب" سره ورکړى شوى دى: قَالَ بَلْ رَبُّكُمْ رَبُّ السَّموَاتِ وَالْأَرْضِ الَّذِي فَطَرَهُنَّ وَأَنَا عَلَى ذَلِكُمْ مِنَ الشَّاهِدِين( ۵۵ الانبياء) .

نهم دليل. مشرکان چې جهنم ته لاړ شي نو په خپله عقيده به افسوس کوي ،او د خپلو مشرانو حاکمانو سره به په جنګ وي ،هغوي ته به وايي: تَاللهِ إِنْ كُنَّا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ (۹۷) إِذْ نُسَوِّيكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ( ۹۸ الشعراء)، قسم په الله مونږ ټول په غټ کفر کې وو ، چې تاسو مو د رب العالمين سره برابر کړي وئ. نو دلته ورته

وايي چې د رب العالمين په ځائ موتاسو رب ګرځولي وئ ،اوپه دنيا کې ئ ورته "آلهه" وئيل ـ نو په دنيا اوپه آخرت دواړوکې إله او رب مترادف منلى کيږي ،ليکن دمولوي صاحب خوښه نه ده ـ

لسم دليل ـ خَلَقَ السَّموَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ يُكَوِّرُ اللَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى أَلَا هُوَ الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ (٥) خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَأَنْزَلَ لَكُمْ مِنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ يَخْلُقُكُمْ فِي بُطُونِ أُمَّهَاتِكُمْ خَلْقًا مِنْ بَعْدِ خَلْقٍ فِي ظُلُمَاتٍ ثَلَاثٍ ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُصْرَفُونَ (٦) زمر ـ ددلائل عقليه نه روسته نتيجه بيانوي " ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ "چې دغه ذات چې تاسوئ په دغه مذکوره صفاتو اوافعالو پيژنئ هم دغه ستاسو رب او حاکم دى په تاسو ـ په نتيجه کې اثبات د "رب"وشو لپاره دالله تعالى په حصر سره ځکه چې مبتدا او خبردواړه معرفه دي ـ "لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ "کې د إله نفي وشوه دغيرالله نه ،نوکه "رب" او "إله" يونه شي نو اثبات لپاره دالله تعالى اونفي دغيرالله نه نه درست کيږي ـ ثمره به ئ داوي چې نتيجه ددلائلوبه لغو شي ،ځکه دددليل نه مقصد اثبات د ربوبيت دى لپاره دالله تعالى اونفي دربوبيت ده دغيرالله نه اوپه نتيجه کې اثبات د رب خوذکر دى مګرنفي دغيرالله نه د رب نه ده بلکه د إله ده ـ نوترادف قطعي شو ،که نه ادله دقرآن سره دنتيجې نه ټول لغو کيږي ـ

يولسم دليل ـ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ(٣١التوبه) ،په دې آيت کې الله تعالى دأهل کتابو کفربيانوي چې دوي د الله تعالى په مقابل کې خپل مليان اومشران رب ګرځولي وو ، په دې عمل کې يهود اونصارى ټول شريک دي،اونصارى په عيسى عليه السلام دروغ تړلي وو چې هغۀ مونږ ته پخپله وئيلي وو چې زۀ ستاسو رب يم اوزما مور هم ، حالانکه دوي ته سره دعيسى عليه السلام نه ټولو نبيانو وئيلي وو چې فيصلې به يو الله ته وړئ ،ځکه بغير دهغۀ نه بل څوک إله نشته ـ نوکه رب او إله يو نه شي نو دآيت اول او آخر کې مطابقت نه پاتې کيږي ،اوکفر دأهل کتابو به ثابت نه شي ،ځکه هغوي به دا اووايي چې مونږ ارباب نيولي وو ،نه آلهه ـاو نهي د آلهه نيولو نه ده ـ

دولسم دليل ـ بَدِيعُ السَّموَاتِ وَالْأَرْضِ أَنَّى يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُنْ لَهُ صَاحِبَةٌ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ، ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ (الانعام ١٠٢)ـ ذَلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ دا نتيجه ده د دليل مذکور چې مشتمل دى په علم اوپه قدرت باندې ـ بَدِيعُ السَّموَاتِ"او " خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ "کې دقدرت بيان

دي ، او " وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ " کې دعلم بيان دی ۔ دې دواړو ته اشاره کوي په "ذلکم " سره چې په دغه صفت سنبهال يواځې الله تعالی دی ،او داعلت دی لپاره د رب کيدلو ،لهذا هغه په يواځې ستاسو رب دی۔او داعلت په بل چاکې نشته ، يعني علت خاص دی دالله تعالی سره ،لهذا بل څوک ستاسو رب نه شي کيدی ،نو دادوه خبرې نتيجه وګرځيدې ددليل او داثبات دالوهيت لپاره دالله تعالی ، دويم نفي دالوهيت دغيرالله نه ، اولنې خبره په " ذَلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ " سره او دويمه په "لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ" سره ذکر کړله۔که دادواړه يعني إله او رب مترادف نه شي نو نتيجه نه شي ثابتيدی۔ځکه نتيجه مشتمل ده په دوه خبرو ،چې يوه په رب سره او بله په إله سره ذکر ده۔او معنی دثمرې دآيت به داشي : ذٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ ای لارب الاهو۔

ديارلسم دليل۔ اللهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا إِنَّ اللهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ٦١ ذٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَأَنَّى تُؤْفَكُونَ (٦٢المؤمن)۔ داپشان ددولسم دليل دی۔

څوارلسم دليل ۔ كَذٰلِكَ أَرْسَلْنَاكَ فِي أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَا أُمَمٌ لِتَتْلُوَ عَلَيْهِمُ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمٰنِ قُلْ هُوَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ(٣٠الرعد)۔داهم پشان ددولسم دليل دی چې دالله تعالی لپاره اثبات دربوبيت دی او دمخلوق نه دالوهيت نفي ده ، حالانکه مقصد دالله تعالی لپاره دکوم څيز ده هم دهغې نفي کول دي دمخلوق نه۔

پنځلسم دليل ۔وَاللهُ خَلَقَكُمْ مِنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُطْفَةٍ ثُمَّ جَعَلَكُمْ أَزْوَاجًا وَمَا تَحْمِلُ مِنْ أُنْثَى وَلَا تَضَعُ إِلَّا بِعِلْمِهِ وَمَا يُعَمَّرُ مِنْ مُعَمَّرٍ وَلَا يُنْقَصُ مِنْ عُمُرِهِ إِلَّا فِي كِتَابٍ إِنَّ ذٰلِكَ عَلَى اللهِ يَسِيرٌ ١١ وَمَا يَسْتَوِي الْبَحْرَانِ هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ وَهٰذَا مِلْحٌ أُجَاجٌ وَمِنْ كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا وَتَسْتَخْرِجُونَ حِلْيَةً تَلْبَسُونَهَا وَتَرَى الْفُلْكَ فِيهِ مَوَاخِرَ لِتَبْتَغُوا مِنْ فَضْلِهِ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ،١٢ يُولِجُ اللَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَيُولِجُ النَّهَارَ فِي اللَّيْلِ وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌّ يَجْرِي لِأَجَلٍ مُسَمًّى ذٰلِكُمُ اللهُ رَبُّكُمْ لَهُ الْمُلْكُ وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِنْ قِطْمِيرٍ (١٣فاطر)۔ دلته په سوره فاطر کې ئ علم او قدرت او افعال إلهيه علت ګرځولی دی د "ربّ" جوړيدلو لپاره ،يعني استحقاق دربوبيت موقوف دی په علم او په قدرت باندی۔

قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ وَسَلَامٌ عَلَى عِبَادِهِ الَّذِينَ اصْطَفَى آللّٰهُ خَيْرٌ أَمَّا يُشْرِكُونَ ٥٩ أَمَّنْ خَلَقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ وَأَنْزَلَ لَكُمْ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَنْبَتْنَا بِهِ حَدَائِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ مَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُنْبِتُوا شَجَرَهَا أَإِلٰهٌ مَعَ اللهِ بَلْ هُمْ قَوْمٌ يَعْدِلُونَ ٦٠ أَمَّنْ جَعَلَ

الْأَرْضَ قَرَارًا وَجَعَلَ خِلَالَهَا أَنْهَارًا وَجَعَلَ لَهَا رَوَاسِيَ وَجَعَلَ بَيْنَ الْبَحْرَيْنِ حَاجِزًا أَإِلَهٌ مَعَ اللهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ٦١ أَمَّنْ يُجِيبُ الْمُضْطَرَّ إِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَاءَ الْأَرْضِ أَإِلَهٌ مَعَ اللهِ قَلِيلًا مَا تَذَكَّرُونَ ٦٢ أَمَّنْ يَهْدِيكُمْ فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَمَنْ يُرْسِلُ الرِّيَاحَ بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهِ أَإِلَهٌ مَعَ اللهِ تَعَالَى اللهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ٦٣ أَمَّنْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَمَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَإِلَهٌ مَعَ اللهِ قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ٦٥ قُلْ لَا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّموات وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللهُ وَمَا يَشْعُرُونَ أَيَّانَ يُبْعَثُونَ (٦٦العنكبوت)، د سوره عنكبوت په دې آيتونو كې ئ علم او قدرت او افعال إلهيه دليل او علت ګرځولي دي د "إله "لپاره ، چې د "ربّ" او د "إله" علت يو دى نو ددواړو معنى هم يوه ده ،او دى ته ترادف وئيلى كيږي.

شپاړسم دليل. عَن أُبي بن كَعب رضي الله عنه فِي قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ: وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُم وَأَشهَدَهُم عَلى أنفُسِهِم الْآيَة. قَالَ جَمَعَهُم فَجَعَلَهُم أزواجًا ثُمَّ صَوَّرَهُمْ فَاسْتَنْطَقَهُمْ فَتَكَلَّمُوا ثُمَّ أَخَذَ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ وَالْمِيثَاقَ وَأَشْهَدَهُمْ عَلَى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالَ فَإِنِّي أشهد عَلَيْكُم السَّموات السَّبْعَ وَالْأَرَضِينَ السَّبْعَ وَأُشْهِدُ عَلَيْكُمْ أَبَاكُمْ آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَام أَنْ تَقُولُوا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَمْ نَعْلَمْ بِهَذَا اعْلَمُوا أَنَّهُ لَا إِلهَ غَيْرِي وَلَا رَبَّ غَيْرِي فَلَا تُشْرِكُوا بِي شَيْئًا وَإِنِّي سَأُرْسِلُ إِلَيْكُمْ رُسُلِي يُذَكِّرُونَكُمْ عَهْدِي وَمِيثَاقِي وَأُنْزِلُ عَلَيْكُمْ كُتُبِي قَالُوا شَهِدْنَا بِأَنَّكَ رَبُّنَا وَإِلهُنَا لَا رب لَنَا غَيْرُكَ ولا إله لَنَا غَيرُك. فَأَقَرُّوا بِذَلِكَ وَرُفِعَ عَلَيْهِمْ آدَمُ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ فَرَأَى الْغَنِيَّ وَالْفَقِيرَ وَحَسَنَ الصُّورَةِ وَدُونَ ذلِكَ فَقَالَ رَبِّ لَوْلَا سَوَّيْتَ بَيْنَ عِبَادِكَ قَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ أَنْ أَشْكَرَ وَرَأَى الْأَنْبِيَاءَ فِيهِمْ مِثْلَ السُّرُجِ عَلَيْهِمُ النُّورُ خُصُّوا بِمِيثَاقٍ آخَرَ فِي الرِّسَالَةِ وَالنُّبُوَّةِ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالَى: وَإِذ أَخذنَا من النَّبِيين ميثاقهم إِلَى قَوْله: عِيسَى ابْن مَرْيَم. كَانَ فِي تِلْكَ الْأَرْوَاحِ فَأَرْسَلَهُ إِلَى مَرْيَمَ فَحُدِّثَ عَنْ أُبَيٍّ أَنَّهُ دَخَلَ مِنْ فِيهَا. رَوَاهُ أَحْمد.

په دې روايت كې درې ځله دلفظ "رب "معنى او وضاحت په لفظ "إله" سره شوى دى ،هم ديته ترادف وايي.

اوولسم دليل. دلغت إمامان چې شعراء جاهليت او شعراء مخضرمين دي ،هغوي هم "رب" او "إله" په يو معنى اخستى دى، لكه أميه بن أبي الصلت چې اسلام ته مايل وو خو كافر مړ دى، په خپلو اشعارو كې د الله تعالى مدح او ثناء داسې كوي :

إلى الله أهدى مدحتى و ثناءيا وقولا رضيا لايبنى الدهر باقيا

إلى الملك الاعلى الذى ليس فوقه إله ولا رب يكون مدانيا

دلته هم "إله" او "رب" ذکر دي په يو معنی "الملک الاعلی" سره ـ

**حاصل** دا چي الله تعالی ،ابراهيم عليه السلام ،موسی عليه السلام ،اصحاب کهف،فرعون ،آزريعني **اهل** حق او **اهل باطل** په دنيا او په آخرت کې په دې خبره متفق دي چي رب او إله مترادف دي، فبأيّ حديث بعدالله وآياته يؤمنون ــ

په هر لحاظ سره دا خبره واضحه شوه چي په "إله" او په "رب" کې ترادف دي ،لهذا دکتاب او د سنت په تصريحاتو سره د ربّ او د إله يو معنی ده، يعني: الحاکم علی الاطلاق المتفرد فی الحکم لامعقب لحکمه ـ

دانبياء عليهم السلام دعوی اودعوت دادی چې الله تعالی مطلق حاکم منل يعني تکويني اوتشريعي حاکم منل ، اودا عقيده نه لرونکي دالله تعالی د إله اود ربّ کيدو نه انکار کونکي دي ـ

*****

## د تشریعي حاکمیت څلور پایې دي

د "إله" او د "رب" معنی حاکم ده ،او حاکم هغه څوک وي چې حکومت کوی ،او حکومت عبارت دی د څلورو څیزونو نه:

۱- حاکمي نوم ،۲- قانون ، ۳- رجال قانون ،۴- جزاء او سزا - ددې څلورو واړو دیوبل سره تلازم او تړون دی ،یعني هر یو په نورو درې خبرو موقوف دی -د الله تعالی د حکومت هم دغه څلور پایې دي:۱- حاکمي نوم ئ "رحمن" دی ،۲- قانون ئ "وحي" یعني قرآن دی، ۳- رجال قانون ئ "انبیاء" دي ،۴- د جزا او سزا ځائ او محل ئ قیامت دی-

څوک چې الله تعالی خپل "إله" او "رب" مني نو هغه به دا څلور واړه خبرې مني - او څوک چې الله تعالی خپل "إله" او "رب" نه مني نو د کل یا د بعض نه به انکار کوي-

دا انکار په دوه قسمه دی: ۱- یو قسم هغه انکار دی چې مشرکین ئ کوي ،۲- دویم هغه دی چې اهل کتاب ئ کوي ،ددواړو تفصیل په خپل خپل ځائ کې راروان دی - قرآن چې کله یوه خبره ددې څلور خبرو نه ذکر کړي نو باقي درې به ورسره مراد وي ،دوجې د تلازم نه -

### ۱- د الله تعالی حاکمي نوم

د الله تعالی حاکمي نوم "رحمن" دی ،مشرکین الله تعالی تشریعي حاکم نه مني نو ځکه ئ د "رحمن" نوم نه انکار کوي ،حالانکه د "رحیم" په صفت ئ مني ځکه چې دا صفت د قدرت نه عبارت دی او قدرت د الله تعالی صفت مني - او "رحمن" ځکه نه مني چې "رحمن" د تشریعي حکومت نه عبارت دی، په دې دواړو کې هم دغه فرق دی ،ددې د لغوي "رَحِمَ" سره هغه شان څه تعلق نشته څنګه چې عمومًا بیانیږي ، او نه "رحمن" مشتق دی د "رَحِمَ" نه ، بلکه د حدیث قدسي په تصریح سره "رحمن" مشتق منه دی:

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم يَقُول: قَالَ الله تبَارك: أَنَا اللهُ وَأَنَا الرَّحْمنُ خَلَقْتُ الرَّحِمَ وَشَقَقْتُ لَهَا مِنِ اسْمِي فَمَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ وَمَنْ قطعهَا بتته .(رَوَاهُ أَبُو دَاوُد)، الله تعالی فرمايي: ما د خپل نوم "رحمن" نه د صله رحمۍ لپاره نوم مشتق کړی دی "رحم" -

په "الله" او په "رحمن" کې مساوات دي په دې خبره کې چې دا دواړه نومونه د الله تعالی سره خاص دي، "الله" په اعتبار د ذات سره او "رحمن" په اعتبار د حقِ حاکمیت سره - الله تعالی په قرآن پاک کې

فرمايي : وَلِلَّهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (الاعراف١٨٠)، اوخاص دي دالله تعالى سره اسماء حسنى ،پس تاسو رابلئ هغهٔ لره په دغه ښائسته نومونو سره، او پريږده هغه کسان چې دالله تعالى د بعض نومونو نه انکار کوي ـ د "اسماء حسنى" تفسير په سوره بني اسرائيل کښې ذکر دى :قُلِ ادْعُوا اللَّهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمَٰنَ أَيًّا مَا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذَٰلِكَ سَبِيلًا (الاسراء١١٠)، "او" دتسويه يعني د برابروالي لپاره دى، مطلب دادى چې: "الله" او "رحمن" يوشان نومونه دي دالله تعالى، هم په دغه وجه فقهاء کرام رحمهم الله تعالى فرمايي :په حاضر وخت کې عبدالرحمن نوم ايخودل نه دي پکار، ځکه چې خلق په نومونو کې په اختصار اموخته شوي دي نو عبدالرحمن ته به رحمن وايي او دا يو سرګنده حقيقت دى ،او دا وئيل نه دي صحيح لکه ،څنګ چې عبدالله ته الله وئيل نه دي صحيح ،ځکه "رحمن" او "الله" خاص نومونه دي دالله تعالى ـ

"الذين يلحدون في اسماءه" کې "في" دتبعيض لپاره ده ،يعني هغه خلق چې يو نوم مني دالله تعالى او بل نه مني ـ اوس دا څوک دي؟ چې يو نوم مني او بل نه مني ،نو الله تعالى فرمايي: كَذَٰلِكَ أَرْسَلْنَاكَ فِي أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَا أُمَمٌ لِتَتْلُوَ عَلَيْهِمُ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمَٰنِ قُلْ هُوَ رَبِّي لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ (١٣٠الرعد)، تهٔ مونږ داسې أمت کې ليږلى ئ چې دهغې نه مخکې ددوي په عقيده ډير خلق تير شوي دي،لپاره ددې چې تهٔ به ورته دالله تعالى هغه قانون بيانوى چې مونږتاته راليګلى دى ، اوحال دادى چې هغوي دالله تعالى دحاکميت نه داسې منکر دي چې دهغهٔ دحاکمي نوم نه هم انکارکوي ـ اى پيغمبر ! تهٔ ورته اووايه:هم دغه رحمن زما حاکم دى ،بى ددهٔ بل څوک حاکم نشته ،يوائې دهٔ ته خپل حاجتونه وړاندې کوم او هم دهٔ ته به وړاندې کيږم ، دغه خلق قانون إلي او رجال قانون يعني پيغمبر هم نه مني :وَإِذَا رَآكَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا أَهَٰذَا الَّذِي يَذْكُرُ آلِهَتَكُمْ وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمَٰنِ هُمْ كَافِرُونَ (١٣٦الانبياء)، کله چې اووينى تهٔ هغه خلق چې الله تعالى حاکم نه مني ،نو په تاپورې ټوقې کوي چې آيا داهغه سړى دى چې ستاسو حاکمان په بده يادوي، يعني هغه دحکومت أهل نه بولي ،اود دوي حال دادى چې د رحمن دقانون نه په کلکه انکار کوي ، "الذکر" دقرآن ذاتي نوم دى ، يعني نه ئ حاکمي نوم "رحمن" مني او نه ئ قانون مني او نه رجال قانون ـ

صلح حديبيه کې په صلح نامه باندې "بسم الله الرحمن الرحيم" وليکلې شوه ، مشرکينو مشرانو وئيل يوائې "بسم الله" وليکه يعني بغير د "الرحمن "نه ،که مونږدا منلئ، نو بيا زمونږ ستا سره جنګ په څه

وو ؟ ، هم دغه شان چې " مِن محمد رَسُولِ اللهِ " ئ وليکله ، هغوي بيا اوويل : "رسول الله " ترې وران کړه ،که مونږ تا رسول الله منلی نو بيا جنګ په څه وو ؟ ، معلومه شوه چې رسول او رحمن د يوې عقيدې سره تعلق ساتي چې هغه دالله تعالی د حاکميت عقيده ده ، ددې وجې نه الله تعالی دا مختصر کلمه "بسم الله الرحمن الرحيم "دهر سورت په شروع کې نازل کړې ده ،اوهم دا موضوع دقرآن ده ، چې د هر سورت ابتدا ددې خبرې نه وشي چې الله تعالی حاکم دی ،او دا ئ دستور او آئين دی ، مشرکينو په صلح نامه کې دليکلو نه انکار وکړو ، الله تعالی دهر سورت په شروع کې راوړه ،چې دا ټوله وحي په دې راغلې ده ،او هم دغه موضوع دقرآن ده ، لهذا "رحمن "دالله تعالی دنورو صفتي نومونو په شان يوصفت نه دی، بلکه دا ئ حاکمي نوم يعني عَلَم دی په اعتبار د حاکميت سره لکه چې "الله " ئ عَلَم دی په اعتبار دذات سره ـ

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اسْجُدُوا لِلرَّحْمنِ قَالُوا وَمَا الرَّحْمنُ أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا(٦٠الفرقان) ، کله چې مشرکينو ته اوئيلې شي چې رحمن ته تسليم شئ او دهغهٔ حکومت ومنئ، دلته دسجود نه "وضع الجبهة على الارض"نه دي مراد ،بلکه انقياد کامل او استسلام مراد دی،ځکه په اديان سابقه کې سجود بمعنی عبادت نشته ـ لفظ د "تأمرنا " هم په معنی دانقياد او استسلام باندې دليل دی ،ځکه أمر ته معروفه سجده نه کيږي ،بلکه ترسره کولی شي ، نودوي په انکار کې وايي: څه حقيقت دی د رحمن ؟، استفهام انکاري دی ،معنی داده چې دالله تعالی دحاکميت هيڅ حقيقت نشته ، آياستا أمر ته تسليم شو ؟، دلته هم استفهام انکاري دی، يعني دالله تعالی دحاکميت خو څه حقيقت نشته خودا څه چې وئيلي کيږي دا بس ستا أمر اوحکم پاتې کيږي ، نوتهٔ راباندې ځان حاکم منی ، ليکن مونږ داسې قطعًا نه شو کولی، او دوي الله تعالی ته حاکم وئيلو نه ډير تختي ـ

## په لفظ "رحمن " کې مبالغه

"رحمن " دالله تعالی حاکمي نوم دی او مبالغه پکې په اعتباردلزوم رحمت ده :قُلْ لِمَنْ مَا فِي السَّموَاتِ وَالْأَرْضِ قُلْ لله كَتَبَ عَلى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ لَيَجْمَعَنَّكُمْ إِلى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ(١٢ الانعام)، لازم کړي دي الله تعالی پخپل ځان باندې رحمت ـ نو "رحمن "کې مبالغه په وجه دلزوم رحمت ده ـ

وَإِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِنَا فَقُلْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ۔ په دې آیت کې دلزوم رحمت سره د رحمت تفسیر هم دی ۔ ترجمه: کله چې مؤمنان یعني صحابه کرام ستا خوا ته راشي نو ته ورته او وایه: سلام علیکم ۔ ستاسو حاکم او باد شاه په ځان رحمت لازم کړی دی، که چا یو بد عمل وکړو د بی صبرۍ نه ،او بیا ئ دهغې نه روستو توبه و باسله ،او هغه ګناه ئ پریخودو ، نو بیشک الله تعالی بخونکی مهربان دی ۔ نو دا دالله تعالی رحمت دي چې هر قسم ګناه دمعاف کولو لپاره ئ قانون مقرر کړلو ،او هغه توبه کول دي دهغې کړی ګناه نه سره د اخلاص نه :

*بازآ بازآ هر آں چہ کردی بازآ　　　گر کافر و گبر و بت پرستی بازآ*

*این درگہی ما درگہی نو امیدی نیست　　　سو بار اگر توبہ شکستی باز آ*

بلکه الله تعالی ورله ګناه په نیکۍ بدلوي: فأولئک یُبدِل اللهُ سیئاتهم حسنات الایه ۷۰ الفرقان ،د دې آیتونو نه معلومه شوه چې الله تعالی رحمت په ځان لازم کړی دی، د دې لزوم رحمت په وجه د الله تعالی نوم "رحمن" دی ،او د هغهٔ د حکومت اساس په رحم باندې دی ۔

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: إِنَّ اللهَ تَعَالَى كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ الْخَلْقَ: إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي فَهُوَ مَكْتُوب عِنْده فَوق الْعَرْش . مُتَّفق عَلَيْهِ۔ لکه قرآن کې چې الله تعالی فرمایي : كَتَبَ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ الایه (۱۲ الانعام) ، كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ الایه (۵۴ الانعام) ۔

حدیث قدسي دی: الله تعالی فرمایي ما د خپل رحمت یو ه حصه دنیا ته رالیګلی ده او ۹۹ حصې مې ځان سره پریخودي دي، ددغه یو حصه رحمت أثر ښکاره کیږي دنیا کې چې مخلوق په یو بل باندې رحم کوي ۔ نو د دې لزوم رحمت په وجه الله تعالی ځان له نوم رحمن غوره کړی دی، چې حکومت په قدرت جانب إیجاب (رحمت) سره کوي ۔

د قدرت دوه جانبه وي: ۱۔ جانب ایجاب ، ۲۔ جانب سلب ۔ جانب ایجاب ئ رحمت وي او جانب سلب ئ غضب وي، نو الله تعالی هغه حاکم دی چې د تشریع او د تقنین په باب کې په ځان ئ جانب ایجاب د قدرت لازم کړی دی ،سره د دې نه چې په سلب باندې هم قادر دی ۔ په دی اساس ئ خپل حاکمي نوم "رحمن" ایخودی دی ۔ په خلاف د دنیا د حاکمانو چې د هغوي د حکومت اساس جانب سلب او غضب وي

،څنګ چې دهغوي دحاکمي القاباتو نه ظاهره ده ، شدّاد ،عزيز، فرعون، قيصر، کسرى، خاقان، تبّع، هلاکو، چنګيز، عالمګير۔

## د"رحمن" معنى په حاکم سره مناسب ده

د "رحمن" معنى په ډيرمهربان ياعام مهربان په ځائ په حاکم سره کول مناسب دي، ځکه د "رحمن" ذکر په قرآن کې اکثر دجزاوسزا ،دګرفت اود زور په ځايونو کې شوى دى:

۱۔ كَذٰلِكَ أَرْسَلْنَاكَ فِي أُمَّةٍ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهَا أُمَمٌ لِتَتْلُوَ عَلَيْهِمُ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ وَهُمْ يَكْفُرُونَ بِالرَّحْمٰنِ قُلْ هُوَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ مَتَابِ(۳۰الرعد)،**حاصل**: تۀ چې مونږ کوم امت ته ليګلى ئ په دغه عقيده ډير قومونه تير شوي دي ، چې تۀ ورته هغه قانون واوروى کوم چې مونږ تاته نازل کړى دى ، حالانکه هغوي زمونږ دحاکمي نوم "رحمن" نه هم منکر دي ،نو قانون ته به څه غوږ ياغاړه کيږدي ، تۀ ورته صفا اووايه چې هم دغه الله تعالى چې حاکمي نوم ئ رحمن دى زمابادشاه دى، ددۀ نه بغير بل څوک بادشاه اوحاکم نشته۔

په دې آيت کې "رحمن" دالله تعالى دبادشاهت نوم ښودلى شوى دى چې مشرکانو ترې هميشه انکار کړى دى ، دهغې سره دقانون اوردجال قانون نه هم انکار کړى دى ،ځکه چې دا امتلازم دي۔

۲۔ قُلِ ادْعُوا اللهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ أَيًّا مَا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيلًا(۱۱۰ الاسراء)،دالله **تعالى** دوه خاص نومونه دي: "رحمن" او "الله" ، چې په کوم يونوم سؤال کوئ برابر دي۔

## الاسمآء الحسنى

ددې مرکب لفظ استعمال په قرآن کې په دوه طريقو شوى دى:**۱۔** د لغوي معنى په اعتبار سره ،**۲۔** د اصطلاحي معنى په اعتبار سره ۔

د اولنۍ معنى په اعتبار سره "الاسماء الحسنى" اعلامو او صفاتو ټولو ته شامل دى: هُوَ اللهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ ۲۲هُوَ اللهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ سُبْحَانَ اللهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۲۳ هُوَ اللهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّمٰوَاتِ

وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (۲۴الحشر) ـ په دې آيت کې د "الاسماء الحسنى " نه مراد د الله تعالى ذاتي نوم الله ،حاکمي نوم رحمن او ټول صفتي نومونه مراد دي ،چې بعض د بعض لپاره علت دي ـ

او د دويمې معنى په اعتبار سره صرف الله او رحمن ترې مراد دي چې اعلام دي ، ځکه چې خاص دي د الله تعالى سره لکه په آيت ۱۱۰ د بني اسرائيل کې ـ

په حديث شريف کې يو ځې په لغوي معنى سره د لفظ "الاسماء الحسنى " استعمال شوى دى ـ

عام اهل علم دې ته اسماء وصفات وايي ، دا اصطلاح د اهل علم ده ـ په قرآن پاک يا په حديث مبارک کې دا اصطلاح ذکر نه ده ،مراد د دې نه د الله تعالى اعلام يعني الله اورحمن او د الله تعالى صفات ټول دي ،څنګه چې معنى لغوي ده د "الاسماء الحسنى "ـ ولامناقشة في الاصطلاح ـ

۳ ـ وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ إِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ أَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا ۱۶ فَاتَّخَذَتْ مِنْ دُونِهِمْ حِجَابًا فَأَرْسَلْنَا إِلَيْهَا رُوحَنَا فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا ۱۷ قَالَتْ إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا(۱۸ مريم) ، مريم رضى الله عنها ته جبرئيل عليه السلام راغى د الله تعالى په أمر ،په يو خوشي ځائ کې ورته مخامخ شو د سړي په صورت کې، نو حضرت مريم رضى الله عنها اوويريده ، څنګه چې يو عفت مآب زنانه د يو بيګانه سړي نه ويريږي ، نو ورته وايي: إِنِّي أَعُوذُ بِالرَّحْمَنِ مِنْكَ إِنْ كُنْتَ تَقِيًّا ،يقينًا زۀ پناه غواړم په رحمن سره ستانه که تۀ د هغۀ نه ويريږى، يعني پکار ده چې تۀ د هغۀ نه ويريږې۔ دا مقام چې د الله تعالى نه د ويرولو مقام دى ، د هغۀ زور او بادشاهي اوحکومت به ورته وړاندې کوى او که د هغۀ لوي رحمت او غټه مهرباني ؟ ، ظاهره ده چې اولنى صورت به اختياروى نه ثاني ، اوهغه حضرت مريم رضي الله عنها په لفظ د "رحمن "سره ذکر کړو ، نو واضحه شوه چې دا د الله تعالى حاکمي نوم دى۔

۴ ـ وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَبِيًّا ۴۱ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَا أَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنْكَ شَيْئًا ۴۲ يَا أَبَتِ إِنِّي قَدْ جَاءَنِي مِنَ الْعِلْمِ مَا لَمْ يَأْتِكَ فَاتَّبِعْنِي أَهْدِكَ صِرَاطًا سَوِيًّا ۴۳ يَا أَبَتِ لَا تَعْبُدِ الشَّيْطَانَ إِنَّ الشَّيْطَانَ كَانَ لِلرَّحْمَنِ عَصِيًّا(۴۴مريم ) ، ابراهيم عليه السلام خپل پلار آزر د غير الله د عبادت نه په دې حجت سره منع کوي چې هغه نه علم لري او نه قدرت ، باباجانه !يقين وکړه ما ته د الله تعالى لخوا نه هغه علم راغلى دى چې تا ته نه دى راغلى ، نو تۀ زما تقليد وکړه زۀ به درته درست لاره اوښايم ، باباجانه ! د ناحق سردار انو قانون مه منه ځکه چې شيطان يعني د ناحق سردار د رحمن نافرمانه دى ـ

ابراهیم علیه السلام چې خپل بابا ته د شیطان عصیان ذکر کوي ،نو واي دا د رحمن نافرمانه دی ،او په دی نیولی شوی دی، نو که ته د هغهٔ خبره و منی ،تهٔ به هم ونیولی شی .که د رحمن معنی هغه لغوي واخستلی شي نو دلته هم د رحمن ذکر بی ځایه راځي ،ځکه چې ابراهیم علیه السلام خپل پلار د شیطان نه منع کوي چې هغه د رحمن نه باغي دی او په عذاب کې نیولی شوی دی. نو باغي کیدل ،او د باغي نیول دواړه د حاکم سره تعلق لري .نهایت رحم یا غټ رحم خو د دې برعکس تقاضا کوي.

۵ . يَاأَبَتِ إِنِّي أَخَافُ أَنْ يَمَسَّكَ عَذَابٌ مِنَ الرَّحْمنِ فَتَكُونَ لِلشَّيْطَانِ وَلِيًّا(۴۵ مریم) ، په دې آیت کې ئ هم د عذاب نسبت کړی دی رحمن ته ،چې په دې سره هغه معنی باطلیږي ،ځکه چې د دواړو مینځ کې نسبت د تباین دی.

۶ . أُولَئِكَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللهُ عَلَيْهِمْ مِنَ النَّبِيِّينَ مِنْ ذُرِّيَّةِ آدَمَ وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَمِنْ ذُرِّيَّةِ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْرَائِيلَ وَمِمَّنْ هَدَيْنَا وَاجْتَبَيْنَا إِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُ الرَّحْمنِ خَرُّوا سُجَّدًا وَبُكِيًّا(۵۸مریم) ، د رحمن د آیتونو په تلاوت سره ژړا او سرټیټي کامل ویره ده چې د انبیاء کرامو مشترک صفت دی، لکه په سورهٔ انبیاء کې د دې صراحت دی :فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَوَهَبْنَا لَهُ يَحْيَى وَأَصْلَحْنَا لَهُ زَوْجَهُ إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ (۹۱)،انبیاء علیهم السلام د الله تعالی نه سوال په طمع او په ویره سره کوي ،او ویره پرې غالبه وي ، دا ځکه چې انبیاء علیهم السلام الله تعالی خپل حاکم او بادشاه مني .

۷ . فَوَرَبِّكَ لَنَحْشُرَنَّهُمْ وَالشَّيَاطِينَ ثُمَّ لَنُحْضِرَنَّهُمْ حَوْلَ جَهَنَّمَ جِثِيًّا ۶۸ ثُمَّ لَنَنْزِعَنَّ مِنْ كُلِّ شِيعَةٍ أَيُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمنِ عِتِيًّا ۶۹ ثُمَّ لَنَحْنُ أَعْلَمُ بِالَّذِينَ هُمْ أَوْلَى بِهَا صِلِيًّا ۷۰ وَإِنْ مِنْكُمْ إِلَّا وَارِدُهَا كَانَ عَلَى رَبِّكَ حَتْمًا مَقْضِيًّا ۷۱ ثُمَّ نُنَجِّي الَّذِينَ اتَّقَوْا وَنَذَرُ الظَّالِمِينَ فِيهَا جِثِيًّا(۷۲ مریم ) ،په دې آیتونو کې تصریح ده چې د دنیا ټول ناحق سرداران د الله تعالی د سرداری په مقابله کې سرداران وو ، په دې ځائ کې ئ لفظ د "رحمن" راوړی دی، حالانکه د ناحق سرداری د سزا چې ذکر کیږي نو پکار ده چې بل یو لفظ ئ راوړی وی ،چې په زور او قهر دلالت کوي ، لیکن "رحمن" لفظ ئ ځکه ذکر کړو چې هم د غه لفظ د حکومت او د دبدبې د پاره الله تعالی منتخب کړی دی.

۸ ۔ قُلْ مَنْ كَانَ فِي الضَّلَالَةِ فَلْيَمْدُدْ لَهُ الرَّحْمنُ مَدًّا حَتّٰى إِذَا رَأَوْا مَا يُوعَدُونَ إِمَّا الْعَذَابَ وَإِمَّا السَّاعَةَ فَسَيَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضْعَفُ جُنْدًا۷۵مریم ،دلته د زورور او د امهال اوبیا د نیولو ، او د بدمکانۍ ،او د عسکرو نه د بیوسۍ بیان دی ،او پکې ذکر د "رحمن" دی، ځکه چې دا د زور او د حاکمیت نه عبارت دی ۔

۹ ۔ أَفَرَأَيْتَ الَّذِي كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ۷۷ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمنِ عَهْدًا ۷۸ كَلَّا سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ۷۹ وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ۸۰ وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللهِ آلِهَةً لِيَكُونُوا لَهُمْ عِزًّا ۸۱ كَلَّا سَيَكْفُرُونَ بِعِبَادَتِهِمْ وَيَكُونُونَ عَلَيْهِمْ ضِدًّا(۸۲مریم )، په دې آیتونو کې د ناحق سردار د غلط دلیل ابطال دی ،او هغه دلیل دا دی چې زور او زر لرونکی د حکومت حقدار وي ،او هغه زما سره دي لهذا د الله تعالی د طرفه دا اسباب ریاست را کول و په وجه د ریاست حقدار هم زهٔ یم ۔ الله تعالی ورله جواب ورکوي: أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمنِ عَهْدًا ،د کومو خبرو چې دی ما ته نسبت کوي چې ما ورله د قانون سازۍ اختیار ورکړی دی ،دهٔ ته دا خبره د غیبو نه چا وښودله، یعني زما د علم نه دهٔ دا خبره څنګ معلومه کړه ؟،او که دهٔ د رحمن سره څه لوظ او عهد کړی دی۔ ظاهره خبره ده لوظ او عهد د حاکمانو سره کیږي۔ الله تعالی دا ټول رد کوي ،فرمایي: كَلَّا ۔ هرګز دا سې نه ده ،نه ورته ما اجارت ورکړی دی ،نه مې ورسره څه لوظ کړی دی۔ په مقابل کې ورته الله تعالی خپل زور او حقداري د حکومت ذکر کوي نو لفظ د "رحمن" راوړي ، ځکه چې عبارت دی د زور او د پیغور نه ۔ د "كلا" سیاق یعني :سَنَكْتُبُ مَا يَقُولُ وَنَمُدُّ لَهُ مِنَ الْعَذَابِ مَدًّا ۔وَنَرِثُهُ مَا يَقُولُ وَيَأْتِينَا فَرْدًا ) د "رحمن " سره متعلق دی،او د "كَلَّا "سباق یعني :كَفَرَ بِآيَاتِنَا وَقَالَ لَأُوتَيَنَّ مَالًا وَوَلَدًا ۔ أَطَّلَعَ الْغَيْبَ أَمِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمنِ عَهْدًا ۔ د "رحمن "د معنی د فهم لپاره ښه کافی ، وافی او شافی دي ۔

چلاسي بابا وایي:

*اگر تو صحبت باما گزینی — بشرط آں کہ فارغ دل نشینی*

*محمد رانه بنی جزر سولے — کتاب الله کتاب الله بینی*

۱۰ ۔ أَلَمْ تَرَ أَنَّا أَرْسَلْنَا الشَّيَاطِينَ عَلَى الْكَافِرِينَ تَؤُزُّهُمْ أَزًّا ۸۳ فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ إِنَّمَا نَعُدُّ لَهُمْ عَدًّا ۸۴ يَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِينَ إِلَى الرَّحْمنِ وَفْدًا ۸۵ وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ وِرْدًا ۸۶ لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمنِ عَهْدًا ۸۷ وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمنُ وَلَدًا ۸۸ لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا ۸۹ تَكَادُ السَّمٰوَاتُ يَتَفَطَّرْنَ مِنْهُ وَتَنْشَقُّ الْأَرْضُ وَتَخِرُّ الْجِبَالُ هَدًّا ۹۰ أَنْ دَعَوْا

لِلرَّحْمنِ وَلَدًا ٩١ وَمَا يَنْبَغِي لِلرَّحْمنِ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا ٩٢ إِنْ كُلُّ مَنْ فِي السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ إِلَّا آتِي الرَّحْمنِ عَبْدًا ٩٣ لَقَدْ أَحْصَاهُمْ وَعَدَّهُمْ عَدًّا ٩٤ وَكُلُّهُمْ آتِيهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَرْدًا ٩٥ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَيَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمنُ وُدًّا ٩٦ فَإِنَّمَا يَسَّرْنَاهُ بِلِسَانِكَ لِتُبَشِّرَ بِهِ الْمُتَّقِينَ وَتُنْذِرَ بِهِ قَوْمًا لُدًّا ٩٧ وَكَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِنْ قَرْنٍ هَلْ تُحِسُّ مِنْهُمْ مِنْ أَحَدٍ أَوْ تَسْمَعُ لَهُمْ رِكْزًا(٩٨ مريم) ، په دې آيتونو کې اووۀ ځله د "رحمن" ذکر راغلی دی، اوهر ځائ کې په حاکمي شان سره دی:۱- د متقيانو تگ الله تعالی ته د وفد په شکل کې دي- وفد بادشاه ته ځي- عام مهربان ته خو وفد ځه چې يو اځې د تگ په ځائ ورته دبل چا په خله خبره وکړي نو هم کار کيږي-۲- هم دغه شان عهد وميثاق د زورور سره کيږي- طبعا دنرم خوئي لرونکي سره څوک څه کوي چې عهد وپيمان او قرارداد ورسره نيسي ؟-۳- دغه شان د اتخاذولد عقيده هم په باب دحاکميت کې ده ، په باب د رحمت کې ددي څه معنی نه صحيح کيږي-۴- بيا دزمکې او د غرونو په دې زره زره کيدل او د آسمانونو له دې کبله راغورځيدل هم په دغه يو اځې سبب دي چې انسانانو بل چاته ځنگ حاکم اووی، ځکه زمکه ،غرونه او آسمانونه بل څوک حاکم نه مني ، په اتفاق د جماعات ثلاثه سره - ۵ - وَمَا يَنْبَغِي لِلرَّحْمنِ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا ،د آسمانونو ،دزمکې ،دغرونو دحجت او ددليل د نتيجې حاصل دی-۶- ورپسې بيا علت ذکر دی چې بل څوک حاکم ځکه نه شي کيدی چې د زمکې او د آسمانونو ټول مخلوق مملوک دی- او مِلک د مملوک ضد وي ،نو چې فی نفسه مالک نشي کيدی ،په ځان هم د تصرف حق نه لري ،نو بادشاه به ځنگه شي- ۷-آخرني آيتونو کې د أهل ايمان د جزاء او درحمن نه دمنکرو د سزا ذکر دی -نو په دې مواقعو کې د "رحمن" لفظ راوړل ددې خبرې مضبوط دليل دی چې دا دالله تعالی حاکمي نوم دی-

۱۱ - طه ۱ ،مَا أَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْآنَ لِتَشْقَى ٢ إِلَّا تَذْكِرَةً لِمَنْ يَخْشَى ٣ تَنْزِيلًا مِمَّنْ خَلَقَ الْأَرْضَ وَالسَّمٰوَاتِ الْعُلَى ٤ الرَّحْمنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَى ٥ لَهُ مَا فِي السَّمٰوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ الثَّرَى ٦ وَإِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ فَإِنَّهُ يَعْلَمُ السِّرَّ وَأَخْفَى ٧ اللهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى(٨ طه)، اولني دوه آيتونو کې دقرآن دنازليدو مقصد ذکردی چې دا قرآن انسان ته هغه لوظ يادوي کوم چې دۀ دالله تعالی سره په باب دحاکميت کې کړی دی ،ورپسې ذکر دي چې دا قانون بی څوکه نه دی ، ددې نازلونکی د زمکې او د آسمانونو خالق او دغټ طاقت مالک دی، په تخت دبادشاهۍ باندي په خپل شان سره مستوي دی چې حاکمي نوم ئ رحمن دی ،هم يو اځې د ی حاکم دی ځکه چې مِلک په هرشي کې دهغۀ مسلم دی، نو حکومت هم د هغۀ په يو اځې دی ، ځنگه چې دهغۀ صفت عِلم مسلم دې- نو درحمن سره د عرش يعني دتخت او د استوی علی العرش ذکر،دا د

رحمن د حاکمي معنى د ښکاره کولو لپاره ولې پوره نه دى ؟۔ د پښتو يو نقل دى: چې زيړ شي او غونډ شي ،نو نارنج شي ۔

۱۲۔ وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَارُونُ مِنْ قَبْلُ يَاقَوْمِ إِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهِ وَإِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمَنُ فَاتَّبِعُونِي وَأَطِيعُوا أَمْرِي(طه ٩٠)،او يقينًا مخکې ورته هارون عليه السلام وئيلي وو :اى زما قومه ! بى شکه تاسو دحق نه وخويدئ په سخي (خوسي )سره ۔او بى شکه ستاسو حاکم بادشاه رحمن دى ۔ لهذا زما اتباع وکړئ،اوزما دأمر اطاعت وکړئ ۔

هارون عليه السلام د وخت حاضر بادشاه دى دالله تعالى لخوا نه ،نو د رحمن دحاکميت دعوت ورکوي ،اوقوم د هغۀ طاعت ته بلي ،په واسطه د خپل طاعت ۔ دا ځائ د ترهيب دى ،ځکه قوم شرک کړى دى ،چې دهغې نه اوويرولى شيي ،نو که د "رحمن "لغوي معروفه معنى واخستلى شي نو د ترهيب په ځائ کې د "رحمن " ذکر غيرمناسب دي ۔ بلکه د شرک لپار يوه نوعه ترغيب جوړيږي ۔ليکن ذکر د "رحمن " په ځائ دى، ځکه چې حاکم دى ،د هغۀ نه ئ ويروي ،دا نه چې نور ئ هم زړۀ ور کوي په شرک باندې ۔

۱۳۔ وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْجِبَالِ فَقُلْ يَنْسِفُهَا رَبِّي نَسْفًا ١٠٥ فَيَذَرُهَا قَاعًا صَفْصَفًا ١٠٦ لَا تَرَى فِيهَا عِوَجًا وَلَا أَمْتًا ١٠٧ يَوْمَئِذٍ يَتَّبِعُونَ الدَّاعِيَ لَا عِوَجَ لَهُ وَخَشَعَتِ الْأَصْوَاتُ لِلرَّحْمَنِ فَلَا تَسْمَعُ إِلَّا هَمْسًا (١٠٨طه ).دلته هم که د رحمن لغوي مشهوره معنى مراد شي نو د "خشعت الاصوات " او "فلاتسمع الاهمسا " سره "الرحمن " په هيڅ صورت کې هم مناسب نه ښکاري ۔

۱۴ ۔ يَوْمَئِذٍ لَا تَنْفَعُ الشَّفَاعَةُ إِلَّا مَنْ أَذِنَ لَهُ الرَّحْمَنُ وَرَضِيَ لَهُ قَوْلًا (١٠٩طه )،په دې کې د رحمن شان دا ښودلى دى چې هغه راضي نه وي نو هيڅ شى هم سودمند نه دى ۔ واضحه شوه چې هغه حاکم دى ،بى د هغۀ د مرضى نه هيڅ هم نه دي ممکن ۔

۱۵۔ وَإِذَا رَآكَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ يَتَّخِذُونَكَ إِلَّا هُزُوًا أَهَذَا الَّذِي يَذْكُرُ آلِهَتَكُمْ وَهُمْ بِذِكْرِ الرَّحْمَنِ هُمْ كَافِرُونَ(٣٦ الانبياء)،په دې آيت کريمه کې د کافرانو ددوه خبرونه دانکاربيان دى ،اول دا چې دنبي عليه السلام نه انکار کوي،اودا انکار دهغۀ درسول کيدو نه دى ۔ اورسول واجب الطاعه وي ، يعني دهغۀ دا طاعت نه انکار دى ۔ دويم اننکار د "ذکرالرحمن" نه دى چې مراد ترې دالله تعالى حاکمي نوم رحمن يا قرآن دى چې درحمن قانون دى دانسانانو لپاره ۔ دټولو دانکار مقصد دالله تعالى داطاعت او دحکومت نه انکاردى

.نو د رحمن ذکر په دی ځائ کې په دې وجه مناسب دی چې مشرکینو د الله تعالی تشریعي حکومت نه انکار کولو ، د الله تعالی د مهربانئ نه ئ انکار نه دی کړی لکه رزق ورکول ،عزت ورکول.

۱۲. قُلْ مَنْ يَكْلَؤُكُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مِنَ الرَّحْمٰنِ بَلْ هُمْ عَنْ ذِكْرِ رَبِّهِمْ مُعْرِضُونَ (۴۲ الانبیاء)، دلته د "رحمن" ذکر دی چې څوک مو د هغهٔ نه خلاصولی نه شي. نو که دا د حاکم په معنی نه شي او د رحمن معنی لغوي معروفه مراد شي نو د رحمن ذکر به بې محله شي . د دې نه هم معلومه شوه چې "رب" او "رحمن" یو معنی لري ،یعني حاکم. ځکه په ۳۲ نمبر آیت کې د ذکر اضافت رحمن ته دی او په دې آیت کې د ذکر اضافت رب ته دی ،او کفارو د دواړو نه انکار کړی دی ،ځکه چې معنی ئ حاکم ده .

۱۷. وَيَوْمَ تَشَقَّقُ السَّمَاءُ بِالْغَمَامِ وَنُزِّلَ الْمَلَائِكَةُ تَنْزِيلًا ۲۵ الْمُلْكُ يَوْمَئِذٍ الْحَقُّ لِلرَّحْمٰنِ وَكَانَ يَوْمًا عَلَى الْكَافِرِينَ عَسِيرًا (۲۶الفرقان)، په آخرت کې به هر حکومت ختم شي. یوائې د الله تعالی حکومت او بادشاهي به وي. په دې آیت کې چې کوم صراحت دی دا په مرتبه د نص کې دی چې په هرډول واضحه او پوره دی. لهذا رحمن د الله تعالی د بادشاهئ نوم دی. او دا خیال کول چې الله تعالی یوائې په آخرت کې رحمن او حاکم دی په دنیا کې نه ،دا کفر دی.

۱۷. وَعِبَادُ الرَّحْمٰنِ الَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى الْأَرْضِ هَوْنًا وَإِذَا خَاطَبَهُمُ الْجَاهِلُونَ قَالُوا سَلَامًا ۶۳ وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا ۶۴ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا اصْرِفْ عَنَّا عَذَابَ جَهَنَّمَ إِنَّ عَذَابَهَا كَانَ غَرَامًا ۶۵ إِنَّهَا سَاءَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ۶۶ وَالَّذِينَ إِذَا أَنْفَقُوا لَمْ يُسْرِفُوا وَلَمْ يَقْتُرُوا وَكَانَ بَيْنَ ذٰلِكَ قَوَامًا ۶۷ وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللهِ إِلٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ وَمَنْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ يَلْقَ أَثَامًا ۶۸ يُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَيَخْلُدْ فِيهِ مُهَانًا ۶۹ إِلَّا مَنْ تَابَ وَآمَنَ وَعَمِلَ عَمَلًا صَالِحًا فَأُولٰئِكَ يُبَدِّلُ اللهُ سَيِّئَاتِهِمْ حَسَنَاتٍ وَكَانَ اللهُ غَفُورًا رَحِيمًا ۷۰ وَمَنْ تَابَ وَعَمِلَ صَالِحًا فَإِنَّهُ يَتُوبُ إِلَى اللهِ مَتَابًا ۷۱ وَالَّذِينَ لَا يَشْهَدُونَ الزُّورَ وَإِذَا مَرُّوا بِاللَّغْوِ مَرُّوا كِرَامًا ۷۲ وَالَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ لَمْ يَخِرُّوا عَلَيْهَا صُمًّا وَعُمْيَانًا ۷۳ وَالَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ وَاجْعَلْنَا لِلْمُتَّقِينَ إِمَامًا ۷۴ أُولٰئِكَ يُجْزَوْنَ الْغُرْفَةَ بِمَا صَبَرُوا وَيُلَقَّوْنَ فِيهَا تَحِيَّةً وَسَلَامًا ۷۵ خَالِدِينَ فِيهَا حَسُنَتْ مُسْتَقَرًّا وَمُقَامًا ۷۶ قُلْ مَا يَعْبَأُ بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا (۷۷الفرقان ). په دې ۱۴ آیتونو کې د رحمن د منونکو ذکر دی ، چې ټول د خشیت او د خوف نه عبارت دي. یوائې د هغهٔ په حاکمیت قناعت لري ، د قتل، زنا ، اسراف، شهادتِ زور او دلغو کارونو نه ځان لرې ساتي ،په دې ځائ کې ذکر د رحمن هله مناسب ګرځي چې د رحمن معنی حاکم واخستلی شي ،چې خشیت،ویره او رعب ئ معلوم شي،او که غټ مهربان او لویې مهربان معنی

شي نو دي مذکوره امورو ذکر ورسره هرگز مناسب نه گرځي- که د رحمن معنی حاکم او باد شاه ونکړې شي نو دا ټول مضمون لغو گرځي ،د رحمن سره هرگز نه متعلق کیږي-

۱۸ - وَمَا يَأْتِيهِمْ مِنْ ذِكْرٍ مِنَ الرَّحْمَٰنِ مُحْدَثٍ إِلَّا كَانُوا عَنْهُ مُعْرِضِينَ(۵الشعراء)-

دا اعراض د رحمن نه ،او د هغهٔ د حکم یعني د قانون نه او د قانون راوړونکي نبي نه د ټولو و نه دی- که د رحمن معنی هغه لغوي شي نو ورسره اعراض نه ښایي ،ځکه کفار د الله تعالی د رحمتِ تکویني قائل وو -د دې نه مخکې ایت کې ذکر دي:که دا کار مونږ وغواړو چې پرې جبر ئ وکړو نو بیا به ئ ډیر ښه مني ،او سرونه به ئ ټیټ کړي وي ،خو د ابتلاء نه دا خلاف ده ،لهذا نه کوو- ظاهره ده چې دا هرڅه د حاکمیت معنی او صفت او شان گرځي-

۱۹ -وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ۱۳ إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُمْ مُرْسَلُونَ ۱۴ قَالُوا مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمَٰنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ( ۱۵یس)-

انطاکیه ښار ته الله تعالی درې رسولان په دوو پسې دریم ولیګل ، درې واړه په شرائطو یعني په امانت او صدق مشهور وو ، د انطاکیه واکدارانو ته ی دا الله تعالی قانون وړاندې کړلو چې هغه حاکم دی ،حاکمي نوم ئ رحمن دی ،مونږ د انطاکیه دحکومت او د مشرۍ لپاره هغهٔ ټاکلي یو- نو د قوم او دښار واکدارانو په دې الفاظو انکار وکړو : دانطاکیه د مشرۍ لپاره په تاسو کې څه خصوصیت مونږ نه وینو ، او نه الله تعالی حاکم دی چې حاکمي نوم ئ رحمن شي ،او نه ئ څه قانون د زمکې دخلقو لپاره نازل کړی دی- دټولو امورِ اربعه نه ئ په یو ځنا انکار وکړلو: رجال قانون ،قانوني نوم ،قانون ،جزاء سزا - نو نبیانو ورته او وئیل:تاسو ته دا الله تعالی لوظ دحاکمیت را یاد کړی شو خو تاسو دا الله تعالی دحکم په ځائ انساني قانون حاکم کونکي یئ- د ۳۲ آیت پورې مکمل قصه بیان ده ، یو یو ټکی د الله تعالی دحاکمیت او د بادشاهۍ نه عبارت دی ،دحبیب نجّار بَخَل، د قوم نیول ، په هغوي حسرت او افسوس چې دا الله تعالی حاکمیت نه مني ، اوبیا یو بد تاریخ دانسانانو چې دانسانانو پیړۍ او قرنونه ما په دې هلاک کړي دي-د دې ټولو قصو ذکر درحمن سره هله ښایي چې حاکم ترې مراد شي-

۲۰ - وَنُفِخَ فِي الصُّورِ فَإِذَا هُمْ مِنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنْسِلُونَ ۵۱ قَالُوا يَا وَيْلَنَا مَنْ بَعَثَنَا مِنْ مَرْقَدِنَا هَٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمَٰنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُونَ(۵۲یس) -

د حشر په میدان خپل حاکم ته د جمع کیدلو لپاره چې ټول انسانان د قبرونو نه راپورته کړې شي، نو کفار به وایي: چامونږ راپورته کړلو د خپلو آرام خانو نه ، دا خو هغه څه دي چې رحمن ئ لوظ کړی وو او نبیانو رښتیا وئیلي وو- دا وخت خالص د ویرې دی، چې هرڅه به کفارو ته مخامخ شي او د الله تعالی لوظ او د نبیانو خبري چې: زهٔ علی الاطلاق حاکم یم "دا به ورته رښتیا ښکاره شي ، نو د الله تعالی د کوم شان نه ئ چې انکار کولو یعني شانِ حاکمیت او دهغې له کبله ئ د رحمن او رسولانو نه هم انکار کولو ، دهغې هرڅه به اقرار کول شروع کړي یعني الله تعالی ته به رحمن وایي، نبیانو ته به صادق وایي ،لیکن وخت به تیر وي "سَبَقَ السَیفُ العَزَلَ"- د رحمن لفظ دلته هله مناسب ګرځي چې معنی ئ حاکم شي، ځکه چې ورځ د جزا ده ،کفارو هم الله تعالی ته د جزاء اود نیولو په خطر رحمن اووی ،نه د ښنلو اود پریخودو د خاطره-

۲۱- الرَّحْمنُ ۱ عَلَّمَ الْقُرْآنَ ۲ خَلَقَ الْإِنْسَانَ ۳ عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ۴ - رحمن زده کړی دی جبرئیل علیه السلام ته قرآن ، رحمن انسان پیدا کړی دی، چې هغهٔ ته ئ پوهه ورکړې ده یعني اسباب د پوهې چې: عقل ، رسول او وحي دي، چې تپوس به ترې کیږي د قرآن ،د رسول او د رحمن په باره کې- او دا تپوس په دې الفاظو سره دی:

عَن الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولَانِ لَهُ مَنْ رَبُّكَ فَيَقُولُ رَبِّيَ اللهُ فَيَقُولَانِ لَهُ مَا دِينُكَ فَيَقُولُ دِينِي الْإِسْلَام فَيَقُولَانِ لَهُ مَا هذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ قَالَ فَيَقُول هُوَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولَانِ وَمَا يُدْرِيكَ فَيَقُولُ قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ زَاد فِي حَدِيث جرير فَذلِك قَول الله عز وَجل :يثبت الله الَّذين آمنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِت الْآيَة ، الحديث (رواه احمد وابوداود)-

۲۲- حم تَنْزِيلٌ مِنَ الرَّحْمنِ الرَّحِيمِ -د سورهٔ رحمن اود سوره زمر او د حم سورتونو مضمون یو شان دي ، حاصل ئ دا دي چې قانون نازلول ،یعني تقنین یو اځې د الله تعالی حق دی- په نورو سورتونو کې ئ په دې دلیل او علت ذکر کړی دی او په سورهٔ رحمن او حم سجده کې دقانون اسناد ئ رحمن ته کړی دی، چې په دې سره د رحمن معنی واضحه شي چې رحمن هغه ذات دی چې انسانان ئ د خپل آئین او دستور پابند کړي دي -

۲۳ - وَجَعَلُوا الْمَلَائِكَةَ الَّذِينَ هُمْ عِبَادُ الرَّحْمنِ إِنَاثًا أَشَهِدُوا خَلْقَهُمْ سَتُكْتَبُ شَهَادَتُهُمْ وَيُسْأَلُونَ ۱۹ وَقَالُوا لَوْ شَاءَ الرَّحْمنُ مَا عَبَدْنَاهُمْ مَا لَهُمْ بِذلِكَ مِنْ عِلْمٍ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ۲۰ أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِنْ قَبْلِهِ فَهُمْ بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ (۲۱ الزخرف)،

د حم سورتونو نه مخکې سورت زمر دی ، په هغې کې حاکمیت او عبادت دواړه په صراحت سره د سورت موضوع ذکر شوي دي ، بیا د حم سورتونو موضوع یو اځې د الله تعالی حاکمیت ده ، سورۀ زخرف د کفارو د الله تعالی د حاکمیت نه د انکار یو نااشنا انداز بیان کړی دی ، هغه دا چې دا خلق نوري مخلوق یعني ملائک مني، خو په داسې ډول چي حکومت او حاکمیت ترې داسې وباسي لکه د کوچو د پیرې نه نیغ ویخته ،چې کوچ په خپل ځائ پاتې شي او ویخته ترې ووځي ـ نو ملائک مني ،خو إناث، حالانکه ملائک د دواړو جهتونو نه پاک او مبرّا دي ـ ملائکو ته د سړي وئیل داسې کفر دی لکه ښځې وئیل ـ مګر ملائکو ته د سړي په ځائ د ښځو نسبت د دغه عقیدې په بنیاد دي ـ ځکه د نړۍ د عام دستور او د عربو د کلتور مطابق إناث عبارت دی د حاکمیت د صفت نه عاري ذات ،ځکه دا هغه نوع ده چې د کتونکي ورته شهوت راځي ـ او دا دواړه مخونه یعني حکومت او انوثت د یو بل ضد دي ـلکه مشهورقول دی :

*شاه آں باشد که از و حشمت می آید　　　نه آں که بر او شهوت می آید*

کله چې د بدر لپاره د مکې نه د جنګیالیانو ټولګی جمع کیدلو ، او د هرکور نه یکې شرکت منلی شوی وو ـ خو ابو البختري په دې جنګ خوشحاله نه وو ،ځکه چې بی سببه وو ـ ابو جهل ورته راغی ـ رانجه، میکپ او خوشبوئي ورته مخې ته کیخودله ـ هغه د دې پیغور له کبله میدان ته په راوتلو مجبوره شو ـ دا ټول د انوثت لوازم وو ـ معنی دا چې د انوثت په صفت ځان ومنه چې په کور کې د ناستې حق ولرې ـ هم د غه شان مشرکین د ملائکو انوثت په دې خاطر ثابتوي چې د زور او د واک نه عبارت ونګرځي ـ کنه په دې اعتقاد کې هغوي ته بله څه فائده نه رسي ـ که ملائک سړي شي نو د مشرکینو څه کور ورانیږي؟ ، او که اناث شي نو څه ـ او دوي د خپلې عقیدې لپاره په الله پاک باندې دروغ تړي :وقالوا لوشاء الرحمن ماعبدناهم ـ دلته عبادت د سورۀ توبه د آیت ۳۰ په رنړا کې د تحلیل وتحریم د ذمه وار منلو په معنی دی، او دا معنی د حدیثِ عدي نه په صراحت سره ثابته ده ـ او سورۀ انعام ۴۸ او سوره **نحل ۳۵** کې د مشرکینو هم د غه عقیده الله پاک د هغوي نه اخستي ده : چې مونږ او زمونږ پلار نیکه په دې عقیده یو چې الله پاک د تحریم او تحلیل یعني د انسانانو د ژوند کولو لپاره د تقنین اباحت انسان ته داسې کړی دی ،څنګه چې هغۀ په بأساء او په ضراء کې د حاجت غوښتلو په وخت کې د شفیع اجازت ورکړی دی ـ الله تعالی د دوي دا عقیده او د هغې دلیل په دواړه ځائ کې یوشان رد کړي دي ـ دلته فرمایي: مَا لَهُمْ بِذٰلِكَ مِنْ عِلْمٍ إِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ، أَمْ آتَيْنَاهُمْ كِتَابًا مِنْ قَبْلِهِ فَهُمْ بِهِ مُسْتَمْسِكُونَ ، بَلْ قَالُوا إِنَّا وَجَدْنَا آبَاءَنَا عَلَى أُمَّةٍ

وَإِنَّا عَلَى آثَارِهِمْ مُهْتَدُونَ ـ او په سورة انعام کې فرمايي: كَذَلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتَّى ذَاقُوا بَأْسَنَا قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ (۴۸) قُلْ فَلِلَّهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ (۴۹) قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللَّهَ حَرَّمَ هَذَا فَإِنْ شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَهُمْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ (۵۰) ـ حاصل دا چې د جواب د توحد او يو شان والي نه هم واضحه شوه چې دا دواړه خبرې يعني د ملائکو انوثت او د الله تعالی د حکومت نه انکار په معنی کې يو دي ـ او په اساليب مختلفه او په تصاريف متفرقه يوه خبره په تکرار سره کول د قرآن کريم خصوصيت دی ـ چې څوک صبا ونه وايي چې زۀ نه ووم خبر ـ

**۲۴** ـ وَلَوْلَا أَنْ يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً لَجَعَلْنَا لِمَنْ يَكْفُرُ بِالرَّحْمَنِ لِبُيُوتِهِمْ سُقُفًا مِنْ فِضَّةٍ وَمَعَارِجَ عَلَيْهَا يَظْهَرُونَ ۳۳ وَلِبُيُوتِهِمْ أَبْوَابًا وَسُرُرًا عَلَيْهَا يَتَّكِئُونَ (۳۴ الزخرف)ـ

د رحمن نه د انکار په نتيجه کې چې کومې خبرې دلته ذکر دي يعني د دنيا سرۀ، سپين، د ژوند خوندونه، د استوګنې کورونه، بيټکونه دا هم په طور د سزا دي ـ ځکه چې څومره د آرام او د سهولت او د نزاکت عادت ډير وي په محرومې کې هم دومره عذاب ډير او سخت معلوميږي ـ نو دلته به هم د رحمن ذکر هله مناسب شي چې په معنی د حاکم وي چې سزا ورکوي که په معنی د نهايت مهربان سره شي نو بيا د دينه محرومه کول په لفظ د رحمن سره ذکر کول بې مناسبه عبارت ګرځي ـ بيا هم الله تعالی ډير کافران د دغه غټې نعمتونو نه محروم وساتل ،دا ئ په مسلمانانو فضل وکړو ـ ځکه که هغوي ته ئ هرڅه ورکړي وی ،نو دوي هم د هغوي په خوند شونډې ايخودې ـ والعياذبالله من ذلک ـ ولولا فضل الله عليکم ورحمته لاتبعتم الشيطان الاقليلا ـ

او هم له دې کبله چې دا د حاکم سزا ده وروسته آيتونه دی: وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمَنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ ۳۶ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ ۳۷ حَتَّى إِذَا جَاءَنَا قَالَ يَا لَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ (۳۸ الزخرف)ـ يعني کومو خلقو چې د الله تعالی د حاکميت نه مکمل انکار کړی دی لکه مشرکين ـ نو هغوي خو د الله تعالی د سزا لاندې حتمًا دي ـ بلکه کومو خلقو چې د الله تعالی د قانون نه اعراض په څه درجه کې کړی دی ،هغه هم د الله تعالی په عذاب کې مبتلا دي ،او هغه دا چې هندو سترې الله ناراضه ـ لکه اهل کتاب ،که د دې امت شي او که د تير امت چې د الله تعالی د يونيم قانون نه ئ سترګې نيمې اړولې وي ،نو شيطان ورسره مستقل انډيوالي جوړه کړه ، او په دغه ئ

غولوي چي تهٔ ښه ئ ، دا ښه دي ،دا سي ښه دي ـ او د الله تعالی پوره قانون ته ئ نه پريږدي چي حاکم ئ کړي ،او دا سبق ورته په غور کي وايي:

اگر فردوس بر روئ زمين است همين است وهمين است وهمين است

يعني هدايت خو هم دغه دی دا تهٔ چي پرې اخته ئ ـ شيطان په خپله وظيفه ترمرگه پورې ټينگ ولاړ دی ،او دی دلاسه کوي ،او په ملا ئ ټپوي چي الله تعالی کريم او رحيم ذات دی ،د دي امت نه خو هسې هم په سلو کي په لسو خشحاله دی ،حديث دی د پيغمبر آخرالزمان ـ د عمل حديث ورته په عقيده کي تدريسوي او دی په قناعت کوي ـ کله چې الله تعالی ته مخامخ شي ،نو ارمان به کوي ،خو وخت به د لاس نه وتلی وي ـ او د مشر شيطان سره به کشر شيطان هم په عذاب کي مبتلا شي ـ په دې ځائ که به هم د رحمن ذکر هله په خپل محل کي شي چي په معنی د حاکم شي ـ که په معنی د ډير مهربان شي نو بيا د رحمن ذکر بی محله کيږي ،ځکه چي په لږ اعراض دومره غته سزا د نفس مهربانۍ نه خلاف ده ،بيا دغتې مهربانۍ ؟ـ

**۲۵** ـ وَاسْأَلْ مَنْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُسُلِنَا أَجَعَلْنَا مِنْ دُونِ الرَّحْمَٰنِ آلِهَةً يُعْبَدُونَ(۴۵ الزخرف )،دا آيت د سورهٔ يوسف دآيت **۳۷** نه تر**۴۰** په شان دی ـ کله چي حضرت يوسف عليه السلام د جيل دوه انډيوالانو ته د هغوي دوه غلطي عقيدې ښکاره کړلې ،او ورته ئ ووئيل :دا عقيدی دچا نه ثابتی نه دي بلکه د شيطان په لمسه د پلار نيکه د روغې عقيدې نه د بغاوت په نتيجه کي خلقو ته وړاندې شوي دي ـ او دا عقيدې د الله تعالی د دوه حقونو نه عبارت دی :حکومت او عبادت ـ او د پلار نيکه نه راروانه درست عقيده دا ده چي الله تعالی د ټولو انسانانو دهميشه لپاره تشريعي حاکم او مقنن دی ،او دهغه حاکم حکم په باب دعبادت کي دادی ،چي خپل ټول ماوراءالاسباب حاجتونه بغير د شفيع نه د هغهٔ نه غواړئ :إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَٰلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ(۴۰ يوسف )ـ حاکم يو اځې الله تعالی دی ـ دی حاکم الله داامر کړی دی چی تاسو مه غواړئ حاجتونه سيوا د يو الله تعالی نه ـ ـ دا دټولو نيکانو خلق دين او ملت دی ،دابراهيم دا سماعيل دا سحاق او د يعقوب عليهم السلام ـ او زهٔ هم په دغه ملت يم ـ ځوک چي الله تعالی دا سې حاکم نه مني زهٔ دهغوي د دين نه قطعي بيزاره يم ـ د سوره زخرف په دي آيت کي هم دغه خبره ده چي دټولو رسولانو نه تپوس وکړه ،يعني د کل انبياءعلهم السلام نه دا عقيده ثابته او محقق ده چي عبادت د حاکم متصور دی ،دغير حاکم عبادت تصور عقلي وو شرعي نه لري ـ بی د

رحمن نه معبود ؟ دا مفروضه ده، حقيقت نه دی. په سورۀ مؤمنون کې الله تعالی هم دغه خبره په دې الفاظو سره انسانانو ته کوي: أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ (۱۱٦) ـ چې تاسو دا عقيده خپله کړې ده ، چې الله په صفت د خلق متصف دی ،لهذا خالق او قادر دی ،او قدرت موقوف په علم دی ،لهذا عالم دی بس ! نورستاسو لپاره څه ضابطه دژوند يو قانون د حلالو او حرامو ،د امر، د نهي څه دستور، هيڅ نشته؟ـ او نه به ستاسو نه دغه عليم وقدير ذات دخپل امر او قانون څه تپوس وکړي ؟، او بيا دې تصور ته تاسو نوم دالله ورکړی دی ! نو دا سې الله څه وجود نه لري لکه څنګه چې دغه تصور څه حقيقت نه لري ـ الله خو عبارت د حاکم او دبادشاه نه دی ،دا سې حکومت چې دانسان نه تپوس وکړي چې دا دې ولې او نه کړه ؟او دا دې ولې او کړه ؟،يعني تکليف او تشريع ـ نه يو اځې دا سې حکومت چې انسان ته پکې هيڅ قسمه اختيار نه وي يعني تکويني حکومت ـ فتعالی الله الملک الحق، دالله دغه معنی په مسلمات عقليه او بديهياتو سره ثابته ده، چې بغير دهغه نه بل څوک حاکم او بادشاه نشته ، څنګ چې هغه يو اځې دعرش مالک او سرداردی.

۲۲ـ أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ مَا يُمْسِكُهُنَّ إِلَّا الرَّحْمٰنُ إِنَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ بَصِيرٌ ( ۱۸ المُلک) ، حاصل ددي آيت دا دي چې رحمن عبارت دي دقادر او دطاقتور ذات نه ـ أَمَّنْ هٰذَا الَّذِي هُوَ جُنْدٌ لَكُمْ يَنْصُرُكُمْ مِنْ دُونِ الرَّحْمٰنِ إِنِ الْكَافِرُونَ إِلَّا فِي غُرُورٍ ۱۹، دجنګ او جګړې چيلنج ورکوي ـ قُلْ أَرَأَيْتُمْ إِنْ أَهْلَكَنِيَ اللهُ وَمَنْ مَعِيَ أَوْ رَحِمَنَا فَمَنْ يُجِيرُ الْكَافِرِينَ مِنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ ۲۷ قُلْ هُوَ الرَّحْمٰنُ آمَنَّا بِهِ وَعَلَيْهِ تَوَكَّلْنَا فَسَتَعْلَمُونَ مَنْ هُوَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ ۲۸،

"هوالرحمن "کې "هو "ضميرراجع دی دی ټولو امورمذکوره ته چې په ټول سورت کې تيرشو ،يعني واکدار دهرشي، په هرشي قادر، دمرګ او دژوند خالق، دانسانانو ممتحن ،زورآور، ښبونکی، دبی عيبه آسمانونو جوړونکی ،دستورو خالق چې آسمان ئې په ښائسته کړی دی ،شيطانان په زغلوي ـ هغه څوک چې د خپل رب يعني درحمن نه انکارکوي هغوي اوور ته غورزونکی ،جهنم پيدا کونکی ،جهنم له دسختو آوازونو او دغصې صفت ورکونکی ،په ملائکو جهنم ساتونکی، دقانون نازلونکی ،زمکه دژوند قابله کونکی ،رزق ورکونکی ،چې څوک ئې رب نه مني هغوي له په زمکه کې دننه کونکی ،په هغوي زمکه لرزونکی ،په هغوي دآسمان نه کانړي راورونکی ،دهمکې ورکونکی:زۀ به ستاسو خوښ شم ـمخکينو رب رحمن اونه منلو څه ناآشنا عذابونه مې ورکړي دي ،دا سې قدرت لرونکي چې عقل ورته حيران شي ،مارغان په فضاء کې معلق ساتونکی ـ دا ټول شان د رحمن دی ،هم هغه دهرشي ساتونکی دی ،ما چې څوک رحمن نه مني خپل زور او فوج دې رامخکې کړي چې زما نه ئې خلاص کړي

،رحمن نه منونکي په دهوکه کې دي ،چې د رحمن دنوم نه غلطه استفاده کوي: نه به ئ نیسي ،څه به نه وایي،چې رحمن درنه رزق ونیسي څوک شته چي در ئ کړي ،داسې خوڅوک زورآور نه منئ،خو د حاکمیت او درب او رحمن کیدو نه مې سرکشي کوئ اوتختئ،څوک چې ما رحمن نه مني پرمخې ژوند کوي، اومنونکي په سیدها لار دي ،هغه رحمن پیدا کړي یئ، غوږونه ،سترګې او زړۀ هغه درکړي دي خوحاکم ئ نه منئ ،هم دغه ذات په زمکه آباد کړئ،او اوس وایي داکله کیدی شي،ددغه وخت په لیدو به مو مخونه تور شي خووخت به تیروي ،هلاک کونکی ،بچ ساتونکی،عذاب ورکونکی۔اووایه ورته هم دغه رحمن دی مونږ ئ په دغه معنی اوصفت منو ، اوتاسو ئ ددغه صت نه منکر یئ ،اوصرف خالق،مالک،مهربانه ذات،منونکي یئ ،لږصبر وکړئ پته به ولګي چې څوک په واضحه ګمراهۍ کې وو ـحاصل دا چي سورۀ مُلک د رحمن تعارف په مذکوره ټولوصفاتوسره کوي ،چې عبارت دي د زور او د زور او دزور نه۔

## په امورِ متلازمه کې د یو نه انکار دټولو نه انکار وي

مشرکین چې دالله تعالی دحاکمیت نه چټي انکاري دي یعني دالله تعالی حاکمي نوم رحمن ،دالله تعالی قانون وحي ،دالله تعالی دقانون غړي یعني انبیاء علیهم السلام ، دالله تعالی جزا او سزا یعني دقیامت ، هغوي چې کله دالله تعالی دحکومت دیوې پایې نه انکار کوي نو دنورو نه ورسره انکار لازم دی ،ځکه داامورِ متلازمه دي ویود او انکار ئ دیوبل سره تړلی دی ،لهذا مشرکین چي کله دالله تعالی دحکومت یعني دقانون او د رجال قانون نه انکار کوي نوورسره د "رحمن" نه انکارددغې انکار په ضمن کې ذکرکوي :قَالُوا مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ .مطلب دا چې: الله پاک نه "رحمن دی" اونه ئ قانون رالیګلی دی ، دامطلب ئ نه دی چې د "رحمن" اقرارکوي، او دحاکمیت دنورو پایو نه انکار کوي۔بلکه څنګه چې صریح انکار د "رحمن" نه په سورۀ رعد او انبیاء کښي ثابت دی،نودغه شان دانکاریو أسلوب داهم دی لکه : وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَنْ نُؤْمِنَ حَتّى نُؤْتَى مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللهِ اللهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِنْدَ اللهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ (۱۲۴الانعام) ، په دې آیت کریمه کې مشرکینو دالله تعالی دنبي او د هغۀ د مشرۍ منل مشروط کړي دي په دی شرط سره چي دانبي دې د سابقه رسولانو په شان قانون او دستور راوړي وبه ئ منو ۔ ددې نه داسې ظاهریږي چې هغوي انبیاءسابقین او دهغوي راوړی قانون او دهغوي مشري مني ۔حالانکه حقیقت داسې نه دی ۔نه ئ مخکې نبیان منل ،او نه وسني مني ۔ وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّلْ لَنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ

(۱٦ص)، په دې آیت کریمه کې درې امور ذکر دي ،دوه په صراحت سره او یوضمنا ،اول د "ربنا "ذکر دی چې الله تعالی ته ئ خپل رب وئیلي وو ،دویم د "یوم الحساب "ذکر دی ،دریم دد الله تعالی دحاکمیت نوری پایې چې قانون او رسول دي ، ځکه د سورت دابتداء نه دالله تعالی دحکومت دعوت شروع دی ،دهغې په ردکې دهغوي جواب دا دی ـ لهذا داټول امور علی سبیل الفرض ذکرکوي ، یعني که الله تعالی حاکم وي اوبیا ئ هم مونږه نه منو ،اوقیامت وي اوبیائ هم مونږه نه منو ،او داراغلي دالله تعالی نائبان وي اوبیا ئ هم مونږه نه منو نوداګزاو دامیدان ، صبااوبیا ولې نن او په دې ساعت، چې څه وایی اوس ئ اووایه ـ شاعر وایي:

یہ گھڑی محشر کی ہے تو عرصہ محشر میں ہے　　　　پیش کر غافل عمل کوئی اگر دفتر میں ہے

دااسالیب دکلام دبلاغت اودفصاحت او دقوي معنویت سره علاقه لري ،اوقرآن په دی صفاتو موړ کلام دی ـ هم دامطلب دسورۀ یس ددې آیت دی: قَالُوا مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ ۱۵، لهذا په دي سره د "رحمن "اقرار نه ثابتیږي ، دغه شان:وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمنُ وَلَدًا ۸۸مریم ، معنی دا ده چې الله تعالی په خپله حکومت نه کوي ، دائ انسانانو ته حواله کړی دی ـ

لَقَدْ جِئْتُمْ شَيْئًا إِدًّا ـدا تاسو دومره خطرناکه خبره وکړله چې قریب ده چې اسمانونه او زمکې اوشلیږي او غرونه اوچوي ، په دې وجه چې: أن دعوا للرحمن ولدا ـ د رد په وخت کې الله تعالی "ان دعوا "راوړو په ځائ د "قالوا اتخذ الرحمن ولدا " ، چې معلومه شي چې داخلق په خپله عقیده کې دروغژن دي۔ الله تعالی اجازت نه دی ورکړی بلکه دوي ادّعاده چې الله تعالی داحق مخلوق ته ورکړی دی ـ یعني دالله تعالی حکومت په ځان نه مني ،اوځان مستحق دتشریعي حکومت ثابتوي ـ ومایبنغي للرحمن۔ ددې ځائ نه نفي دإتخاذالولد کوي په دی دلیل سره چې: انس وجن ټول دالله تعالی غلامان دي ،او غلام دآقا نائب نه شي کیدی،ځکه ددواړو په مینځ کې نسبت دتباین دی ،یعني یوژوندی دی اوبل مړ دي اوژوندي ځان له مړي نه شي نائب کولی دوجې دعجز دتصرف نه ، او نه مړ نائب کیدی شي دژوندي دوجې دعدم صلاحیت دعقودو او تصرفاتو ـ د "إتخذ الرحمن ولدا "وئیلو نه ئ مقصد نفي دالله تعالی دحکومت ده۔

## ۲ : قانون

د الله تعالى قانون وحي ده ،ددې مختلف نومونه او څه نور وضاحت په شروع کې تيرشوې دی، په دغې نومونو کې يو مشهور نوم "ماانزل الله " دی ،د مشرکينو د شرکيه عقيدې اساس د الله تعالی د حاکميت نه انکار دی، هم په دغه اساس د:ماانزل الله " نه انکار کوي ـ د حضرت نوح عليه السلام نه د نبي عليه السلام پورې دهر وخت کافرانو د "ماانزل الله " نه انکار کړی دی په دی اساس چې الله تعالى تشريعي حاکم نه دی ، نودهغۀ قانون اووحې د کوم خوا نه راغله ـ

الله تعالى انسان پيدا کړی دی دخپل تشريعي حکومت لپاره : وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً الايه (۳۰البقره) ـ او څه وخت چې اووی ستا حاکم ملائکو ته يقينًا زۀ جوړونکی يم په زمکه کې خپل نائب ـ د خليفه معنى ده نائب ،او نيابت به هم هغه کار کې درست وي کوم کار چې اصيل په خپله کولی شي ـ لهذا د انسان نائب جوړول په باب د حاکميت کې دي ـ په باب د عبادت کې نيابت امکان نه لري ځکه الله تعالى د عبادت او د حاجت نه پاک دی ،په دې باب کې هرمخلوق سره د انسان نه اصل دی ، او هم ددې وجې نه يو حاجتمند د بل حاجتمند لپاره حاجت غوښتلی شي يعني نائب کيدلی شي بلکه د ادعاء اسرع الاجابه بللی شي ـ نودا ددۀ امتياز دی دنورو مخلوقاتو نه :

إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّموَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا (۷۲الاحزاب) ،بيشکه مونږه امانت يعني تکليفي قانون شريعت وړاندې کړو اسمانونو ،اوزمکو او غرونو ته (چې د تکويني حکومت سره تشريعي حکومت هم په زان ومني سره د اختيار نه چې په عوض کې ئې دويم جهان دی )نودې ټولو انکار وکړو ددې امانت د اوچتولو نه ځکه چې اوويريدلو ددې د اداء کولو نه ،او انسان دا امانت او ددې اداء ومنله ،بيشکه انسان په توره تياره کې بالکل بی خبره دی ـ چې په يو ائې دا امانت سرته نه شي رسولی ـ

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ (۵۶الذاريات)ـ او نه دي پيدا کړي ما پيری او انسان مګر يو ائې ددې لپاره چې زما حکم ومني ـ

وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ۱۱۸ إِلَّا مَنْ رَحِمَ رَبُّكَ وَلِذٰلِكَ خَلَقَهُمْ وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ (۱۱۹هود)ـ

که خوښه وی ستا د حاکم نو پیدا کړي به ئ وو ټول بندیان په یوه عقیده او دوي به وي اختلاف کونکي یعني جدا کیدونکي دالله د قانون نه ،مګر هغه څوک چي مهربانه شي په هغهٔ ستا حاکم او هم د دغې رحمت لپاره مونږ دوي پیدا کړي دي ۔إِلَّا مَنْ رَحِمَ رَبُّكَ ۔د دې رحمت نه مراد دالله تعالی قانون شرعي دی: اِلَّامَن رَحِمَ رَبِّيٓ الایه (۵۳یوسف ) کې هم دغه رحمت خاصه مراد دی چې انسان په دکفر،دعذاب او دګناه نه بچ کیږي۔ نوح علیه السلام خپل ځوي ته د دغې رحمت د خپلولو دعوت ورکوي ،او یوسف علیه السلام هم دالله تعالی د قانون خبره کوي چې نفس خو انسان په کفر هم اماده کوي خو انبیاء چې الله تعالی ورته خپل قانون ورکړی دی دمطلق ګناه نه هم محفوظ بلکه معصوم دي ۔ او د دغې قانون لپاره ئ انسانان پیدا کړي دي ۔ تفصیل د دې دا دی چې الله تعالی کله انسان دنیا ته رالیګلونو د درې خبرو سره ئ رالیګلی دی:

ا۔عداوت

۲۔ هدایت

۳۔ خلافت

قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى ۱۲۳ وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى ۱۲۴ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا ۱۲۵ قَالَ كَذَلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنْسَى ۱۲۶ وَكَذَلِكَ نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِآيَاتِ رَبِّهِ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَى (۱۲۷طه)۔ او وئیل الله تعالی خکته شئ تاسو دواړه د جنت نه ،تاسو به د یو بل دښمنان یئ ،او یقینًا راځي به تاسو ته زما لخوا نه یو لوی قانون ،پس چا چې تګ وکړو زما په قانون ،نه به بی لارې وي په دنیا کې ،او نه به وي بدبخته په آخرت کې ۔ او چا چې تګ اونکړو زما په قانون د هغهٔ لپاره یو اځې تنګ ژوند دی، او راوچتوو به ئ مونږ په ورځ د قیامت ړوند ، او وایي به دی ای حاکمه زما !ولې دې راپورته کړمه ړوند حالانکه یقینًا زهٔ وومه د سترګو خاوند۔ وایي به ورته الله: څکه چې راغلي وو تاته زما آئین نو تا هغه پریخودو او په دغې وجه نن تهٔ ړوند پریخودی شوی یې۔ او دغه شان مونږه بدله ورکوو هغه چا ته چې د خپل ځان نه قانون جوړکړي او نه مني قوانین د خپل بادشاه ، او ورپسې عذاب د دې نه ډیر سخت او باقي پاتې کیدونکی دی ۔

داعداوت چې په آدم او په حواء او دهغوي په اولاد کې زمکې ته خکته کېدلو په وخت کې ودیعت کړې شوې وو په څلور قسمه دي:

### ۱- عداوت دینیه یعني اعتقادیه

ددې اصل محل انبیاء علیهم السلام او ابلیس علیه لعائن الله دی ـ دآدم په خلقت سره داعداوت په ملائکو ظاهر شوی دی ـ تردی وخته پورې په دې قصه ئ سرخلاص نه وو ـ ملائکو ابلیس په ښه صفت یعني دالله تعالی دعبادت په صفت ئ پیژندلو ، په بدصفت یعني دالله تعالی دحاکمیت نه دانکار کولو په صفت ئ خبر نه وو ـ هم په دې وجه دملائکو په صف کې ددوي په سفارش شامل شوی وو ـ دهٔ دالله تعالی د عبادت نه چرته هم مخ نه وو اړولی ـ همه تن او هروخت دالله تعالی په عبادت ئ ځان سنبهال ساتلو ، یعني حاجت ئ همیشه دالله تعالی نه غوښتلو ، دالله تعالی نه سیوا بل چاته ئ حاجت روا نه وئیل ـ بیا چې الله تعالی اراده وکړه ددنیا دښارونو دآبادولو په خپل خلافت سره نوآدم علیه السلام ئ پیدا کړلو ، او ملائکو ته ئ ځکم وکړو چې آدم ته سجده وکړئ ، ټولو حکم ومنلو ، او یودم او یوشان په سجده کې پریوتل ـ دا حکم دملائکو په شان ابلیس ته هم وو خو هغهٔ دسجود نه انکار وکړو ،الله تعالی ورته پینځه سوه کاله مهلت ورکړو چې دی پکې دالله تعالی حکم راژوندی کړي او په خپل عمل باندي ثابت کړي چې ابلیس دالله تعالی دحاکمیت قائل دی ،مګر دهٔ داسې ونکړه ـ الله تعالی چې حاکم دی دتپوس حق لري ،هغه ترې تپوس کوي: مَامَنَعَکَ الاّتَسجُدَاذ أَمَرتُکَ ، داتپوس چې دحاکم تپوس دی ددې جواب په دغه وخت کې معذرت او بخنه غوښتل وو ، خو ابلیس په ځائ دمعذرت انکار وکړو او دخپلل انکار دلیل ئ ذکر کړو ـ داټول وضعیت یعني د سجود نه انکار دمهلت نه غفلت او دمعذرت په ځائ په خپل انکار علت ذکر کول استکبار یعني دلویې سره انکار دی چې په حدیث شریف کې ورته "غمط الناس وبطر الحق" وئیلې شوي دي ـ دا دالله تعالی دتشریعي حاکمیت نه انکار ګرځي ـلایُسئل عمّایفعل وهم یُسئلون ـ الله تعالی په هرچا حاکم دی دهرچانه دتپوس حق لري ،او څوک دهغهٔ نه دتپوس حق نه لري ځکه چې هرڅوک دهغهٔ محکوم دي ـ دالله تعالی په ځائ ددې شان او صفت بل څوک حقداره ګڼړل عامه ده که داحقدار خپل نفس شي او که بل څوک ـ داهغه شرک او کفر دی چې دالله تعالی افضل ترین او اسبق تر مخلوق ملائک په اوس خبر شول چې ابلیس په دې کې مبتلا دی ـ ددې کفر ظهور نوري مخلوق ته دابلیس آدم علیه السلام ته دسجود نه دانکار په صورت کې وشو ـ داعداوت دینیه دی چې په حقیقت

کې عداوت دالله تعالی سره دی خومظهر ئ انبیاء علیهم السلام دي ـ اوبیا داعداوت درجه په درجه د امت په اافرادو کې کم او زیات وي ـ صحابه کرام چې اولنۍ حصه ددې امت ده په هغوي کې داعداوت بدرجه اتم دی : وَلَكِنَّ اللهَ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ وَكَرَّهَ إِلَيْكُمُ الْكُفْرَ وَالْفُسُوقَ وَالْعِصْيَانَ أُولَئِكَ هُمُ الرَّاشِدُونَ (۷الحجرات)۔

دنوح علیه السلام دعاء ددې عداوت مظهر دی : وَقَالَ نُوحٌ رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ۲۶ إِنَّكَ إِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا (۲۷نوح) ـ الله تعالی دخپل نبي دعاء حرف بحرف قبوله کړې ده حتی چې دخپل رسول ځوی ئ هم غرق کړو ، او دهغه لپار کړې سفارش رد شو ـ داسفارش ردکول هم ددغې عداوت مظهر دی چې الله تعالی ددوي سره عداوت ساتي :ذٰلِكَ جَزَاءُ أَعدَاءِ اللهِ النَّارُ ـ وَاللهُ أَعلَمُ بِأَعدَاءِكُم ـ ددې عداوت مرکز دالله تعالی حق دی ،چې عبارت دی دحکومت مطلقه او عبادت مطلقه نه ـ انبیاء علیهم السلام په دې عقیده خپل امتونو ته راليگلي شوي دي ، اوکفار ددې نه انکار کوي ، دکل یادبعض نه ،یعني داسې وئیل : الله په بندیانو څه حق نه لري ،یاداسې وئیل : دحکومت حق نه لري دعبادت لري یابرعکس ـ دټولوحکم یو دی ـ دالله تعالی حق حکومت ته په اصطلاح دفقهاو کې چې دالله تعالی ترجمانان دي "عقوبات" وئیلي کیږي چې عبارت دی دپینځه جرمونو دپینځه سزاګانو نه په وجودي شرائطو سره ـ ددې عداوت په اساس په هرمؤمن دخپل ایمان او دایمانیاتو حفاظت فرض دی ـ

## ۲- عداوت نفسیه

په هر نفس باندې دخپل نفس او دخپل اهل وعیال او دماتحت دنفس حفاظت فرض دی۔ حدیث شریف کې راځي : من قتل دون نفسه فهو شهید۔ څوک چې دخپل ځان په حفاظت کې قتل شو هغه شهید دی۔ داهل اسلام لپاره ټول مسلمانان په شان دیو نفس دي ـ

داعداوت په اعتبار دمحل سره په دوه قسمه دی :۱ـ نفس،۲ـ، اطراف۔

عداوت نفسیه کې اهل اسلام او اهل ذمه برابر دي یعني یوچامسلمان یااهل ذمه قتل کړونو قصاص واجب دی سره داختیار نه ـ ځکه په دی کې دالله تعالی دحق سره دبنده حق هم شته او هم هغه غالب دی ،لهذا قبل القضاء او بعد القضاء عفو جائز بلکه مندوب ده۔

### ۳- عداوتِ عرضیه

داعبارت دی دحفظ فروج نه چې هغه دالله تعالی حق دی په یوائې ، انسان په دیکې مکلف محض دی ،یعني څه وخت ،دکوم ځیز ،په کومه طریقه الله تعالی اباحت وکړي هم هغه به متعین وي لپاره د استحلال دفروج ،څوک په دې کې خپله مرضي نه شي کولی ـ قبل القضاء په باب دعِرض کې تستّر مستحب دی ، اوبعدالقضاء حد شرعي واجب دی ،بله هیڅ لاره نشته ـ یوڅوک نه دابخلی شي اونه ئ بدلولی شي حتی چې نبي هم دا اختیار نه لري ـاهل کتاب هم په دغه اوصرف په یوه خبره کافرشوي دي ـ اوهم ددغې وجې نه الله تعالی په قرآن کې اونبي علیه السلام په احادیث مبارکه کې ددې نه په ډیر اهتمام سره دا امت ویرولی دی ـ دمانځۀ په هررکعت کې ددغه خلقو دلار اود ژوند دتیرولودطرز او دحکومت دطریقې نه پناه غوښتل دالله او درسول لطرفه تعلیم شوي دي ـ دمفسرین حضراتو په قول سره داوئیل دالله تعالی امر دی چې دفاتحې نه مخکې "قولوا "محذوف دی ـ

### ۴- عداوتِ مالیه

دنفس اود عزت پشان الله تعالی هرچاته مال هم ورکړی دی کوم مال چې په شرعي طریقې سره دچا ملک وي هغه دالله تعالي او درسول په نزد محفوظ اومصون مال دی ـ په دیکې دمالک لپاره تصرف په جواز شرعي سره مشروط دی اودغیر مالک لپاره بنیادي امر دمالک اجازت دی۔که په یو مخصوص مقدار کې په صفت مخصوصه سره محفوظ مال چاسرقه کړونودهغۀ لپاره په شرائط مخصوصه سره مخصوص سزا دالله تعالی حق دی ،قبل القضاء مالک ته اختیار دی چې معاف ئ کړي ،بعدالقضاء دااختیار نشته ـدفاطمه مخزومیه رضي الله عنها قصه په دي باب کې مشهوره ده ـ

ددې عداوات اربعه په بنیاد سره هریو انسان دبل نه جدا او ځانګړی مخلوق دی ـ په اسماني دستورکې په دې باندې دیوبل نیوک کولی شي ـ دیونکاح شوې کډې ترمینځه که د عزت شخړه راشي لکه میړۀ په ښځې تور ولګوي چې بل سړی ددې بستري ته راځي نوهم دادواړه بی اختیاره دي ـ په شرط دایمان اوپه حیثیت دمسلمان دا سماني قانون نه علاوه بله لاره نه شي اختیارولی ـ الله تعالی دغیرت، دشرم، دپښتو ،دقوم ،دنسب په نوم هرڅه لاره تړلې ده ـ محمد عربي صلی الله علیه وسلم هررواج ،دستور، کلتور،آئین ،قانون دهغه خلقولپاره چې محمد ته یوائې دجانان په نظرنه ،دایمان په نظر هم ګوري ،

دخپولاندې کړی دی.که چادخپل پلار،دنیکه،دقوم ،دسپین ګیرو ،داولس،د خیل ،دنسب ،دوطن لاره راژوندې کړې چې محمد دقدمونولاندې کړې ده ،نودهٔ محمد پړمخې چپه راوغورځولو.ځان ، خپل رواج ئې دمحمد لپاسه کړو.محمد ئې دخپولاندې کړو.محمد چې مطاع دی ،حاکم دی ،رسول دی ،ایمان دی ،آخرت دی ،جنت دی ،داهرڅه دهٔ په یوه ناسته په یوآواز ،په یوه فیصله وبیلل.اوس که دی شپه اوورځ روږې وباسي چې محمد منم ،دروغ وايي.الله تعالی قسم خوري چې دادروغژن دی:والله یشهد انهم لکاذبون.الله تعالی دوه ځله قسم خوري: تاته چافیصله ،جګړه ،ماته ګوډه ،قضیه، مقدمه رامخکې نه کړې ،زمادې قسم وي بیادې قسم وي دامؤمن نه دی.داکافردی.سره دمانځهٔ، سره دحج، سره دعمرې ،سره دصد قاتو ،سره دښه اخلاقو ،سره د ډیرونوروخبرو.

هم دغه هدایت دی.صراط مستقیم دی ،ایمان دی ،جنت ګټل دي ،د دوزخ نه ډال دی،دې ته اسلام وایي ،تقوی وایي.

دجنت نه زمکې ته خکته کیدو په وخت کې کوم عداوت چې الله تعالی په آدم زادو کې ودیعت کړی دی دهغهٔ په اساس چې کوم اختلاف په بني آدم کې ښکاره کړي که یواځې دالله تعالی دحق سره تړاو لري اوکه دمخلوق دحق سره اوکه ددواړو سره ،دهغې فیصله په هدایت اسماني سره کیږي چې دالله تعالي لخوانه راغلي وي یعني وحې ،که د وخت نبي موجود وي هغه به ئې کوي ، که نه دالله نازل کړې قانون چې همیشه لپاره هدایت او رحماني آئین او دستور دی یعني قرآن ، په هغې به دافیصله کیږي.دا درې واړه دآدم سره تړلي شوي دي:عداوت، هدایت ،خلافت.ددې نه مخ اړول دالله نه مخ اړول دي.قرآن عظیم الشان دې ته په ښکاره الفاظو کې کفر وئیلي دي : هُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ فَمَنْ كَفَرَ فَعَلَيْهِ كُفْرُهُ وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ إِلَّا مَقْتًا وَلَا يَزِيدُ الْكَافِرِينَ كُفْرُهُمْ إِلَّا خَسَارًا(۳۹ الفاطر).

الله تعالی هغه ذات دی چې تاسو ئې نائبان ګرځولي یئ په زمکه کې،اوس که چاکفر اوانکار وکړو دنیابت اوخلافت نه هغه به رانیسم په دغې کفر ددهٔ.او زیات به نه کړي دکافرانولپاره کفر دهغوي دهغوي دبادشاه په باب کې مګر غټ خفګان، او زیات به نه کړي دکافرانولپاره کفر دهغوي مګر غټ تاوان.

الله تعالی انسان په صفت دخلیفه اونائب یعني خپل پابند ئې پیدا کړی دی ،ملائک ددهٔ په سلام او پیریان ئې ددهٔ اطاعت مکلف کړي دي برخلاف دنورو مخلوقاتو لکه ځناور چې هغه ئې دخپل هیڅ شي

هم نه دي پابند کړي ،مکمل آزاد او دخپلي خوښې ئ په زمکه ښ د ساه خاوندان ګرځولي دي ـ او س که دی دنیابت لاره پریږدي او ځان دالله نه آزاد او مستقل وګرځوي ،دا دالله تعالی دمقصد نه انکار کول دي چې خلا فت دی ـ دالله په تخلیق دالله تعالی سره جنګیدل دي ،په تقدیر دالله معترض کیدل دي ، دالله د ورکړي عزت او شرافت سره ټوقې او استهزاء کول دي ، ددۀ په هره لحظه دالله تعالی خفګان زیاتیږي لکه څنګه چې ددۀ نقصان زیاتږي ـ په دې سره دی هغه انسان نه پاتي کیږي کوم چې الله تعالی پیدا کړی دی ـ دالله تعالی دنیابت نه انکار ،دهغۀ دقانون وحي نه انکار داسې کفر دی چې په دی سره دی داسې نه چې یو اځې مسلمان یامؤمن نه پاتې کیږي ،بلکه په دې سره دایمان او داسلام سره د انسانانو دکنډک نه هم خارج کیږي ،ځکه ددۀ تخلیق دیو مقصد په خاطر وو ،چې هغه مقصد پاتې نه نو دی هم پاتې نه شو ، دی بیا محض یو داسې ضرري حیوان دی چې فائده ئ هیڅ نشته اوضرر ئ ډیر دی ،ځکه ورته الله تعالی د "کالانعام " نه روستو "بل هم أضلّ " وئیلي دي ـ د انعام یعني د کور دڅاروو فائده متحقق او ثابت ده چې هغه دانسان په ژوندکې یو مفید رول لري ، لیکن داځناور د نقصان نه علاوه بل رول په زمکه نه لري ، لهذا ددۀ مصیر متعین دی ،چې زورآور دې بی دریغه قتل کړی شي ، بی وسه دې دکورني څاروو نه په بدحال کې وروزلی شي ، چې ورته وینزې او غلامان وئیلی شي ، دهرقسم مال اوملک نه دې محروم کړی شي ،دهرقسم تصرف نه دې وتړلی شي ـ دا دهغه چا وینا ده چې دهغۀ دپابندۍ نه داستقلال او دځان دآزادۍ په نوم کفر اوبغاوت وکړو ، داجنګ دی ځناور بیللی دی ،هم دلته او هم هلته ـ

سَلْ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَمْ آتَيْنَاهُمْ مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ وَمَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُ فَإِنَّ اللهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ (۲۱۱ البقره)-

شیخ الاسلام علامه شبیر احمد عثماني رحمه الله ددې آیت په تفسیر کې فرمایي:

*یعنی یہ قاعدہ البتہ محقق ہے کہ جو کوئی اللہ کے احکام سراپاہدایت کو بدلے اور اس کے انعامات اور احسانات کا کفران کرے تو پھر اسکا عذاب سخت ہے آیات کے بدلنے والے پر کہ دنیا میں مارا جائے اور لوٹا جائے یا جزیہ دے اور ذلیل ہو۔ اور قیامت کو دوزخ میں جائے ہمیشہ کیلئے۔*

دمشرکینو دشرک اساس هم دغه دی یعني دالله تعالی دحاکمیت او دانسان دنیابت یعني خپلو جګړو کې د ما انزل الله دپابندۍ نه انکار او انسان په قضاء کې خودمختار اوآزاد ګڼل ـددې اساسي عقیدې اعلان الله تعالی دکافرانو د خُلې نه داسې کوي :

سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَيْءٍ كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتّٰى ذَاقُوا بَأْسَنَا قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ ١٤٨ قُلْ فللّه الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَاءَ لَهَدَاكُمْ أَجْمَعِينَ١٤٩ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللهَ حَرَّمَ هذَا فَإِنْ شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَالَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ وَهُمْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُونَ (١٥٠الانعام). قریب ده چۀ اوبه وايي هغه خلق چې شرک کوي ،که نه وی راضي الله تعالی نو نه به کوو مونږ شرک ،او نه زمونږ پلارانو ،او نه به حراmol مونږه هیڅ یو شی.(الله تعالی ددوي دخبرې رد کوي چې دوي دروغ وايي)هم د دوي پشان دوي نه مخکې خلقو دالله دتشريعي حاکمیت ،دقانون ،د رسولانو او دجزاء سزا د ورځې تکذیب کړی وو هم په دی ئ زمونږ عذاب وڅکلو. تۀ ورته اووايه:ستاسو سره په خپله خبره څه دلیل شته ،چې مونږ ته ئ راسرګند کړئ ؟،تاسو چلن کوئ یو اځې په دروغو ،او نه یئ تاسو مګر اندازې کوئ. تۀ ورته اووايه: دالله تعالی سره په خپل حق یعني تشريعي حکومت او ځانګړي عبادت داسې دلیل دی چې هغه سړی دالله تعالی حق ته رسونکی دی. بس که چري هغۀ غوښتلی نو رسولي به ئ وی تاسو ټول په دغې دلیل خپل دواړو حقونو ته.(یعني دلیل په دی صفت دی لیکن یو اځې دلیل دهدایت لپاره پوره نه دی ،دالله تعالی اراده ورسره شرط دی ).تۀ ورته اووایه راولئ تاسو خپل حاکمان ،مشران چې هغوي اقرار وکړي ددې خبرې چې الله تعالی هغوي ته دتحریم او دتحلیل اجازه ورکړې ده ، که چري د دوي حاکمان ددې خبرې اقرار وکړي نو تۀ ئ ورسره بیاهم مه منه. او تۀ دخلقو په عقل جوړ قانون باندې چلن مه کوه چې زمونږ حکمونه او قانون نه مني ، او هغه خلق چې آخرت نه مني او دوي دخپل بادشاه سره چې الله دی نور خلق برابروي.

وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ نَحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ كَذٰلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ (٣٥). وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ فَمِنْهُمْ مَنْ هَدَى اللهُ وَمِنْهُمْ مَنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ(٣٦ النحل).

او وايي مشرکان که نه وی خوښه دالله مونږ به نه غوښتلو حاجت هیڅ قسم دهغه نه سیوا دبل چانه او نه زمونږ پلارانو او نه به مونږ حرامول هیڅ یو شی د هغۀ نه بغیر، (الله تعالی دهغوي تکذیب کوي ) هم د دوي پشان کار کړی وود دوي نه مخکې خلقو (مراد ترې تکذیب دی ). نو نه دی څه مسؤلیت په رسُولانو مګر رسَوَل دي دالله تعالی حق په ښکاره دلیل. او یقینًا مونږه لیګلي دي هر امت ته رسولان چې حکم دالله تعالی و مني او دناحق سردارانو نه ځان وساتي. نو څه خلق په دوي کې وو چې الله تعالی

ورَسَول خپل حق ته ،او څه خلق د دوي نه وو چې ښکاره شو په هغوي باندې کفر۔ نو وګرځه په ښارونو کې او وګوره چې څه انجام شو د تکذيب کونکو۔

وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَقَّ قَدْرِهِ إِذْ قَالُوا مَا أَنْزَلَ اللهُ عَلَى بَشَرٍ مِنْ شَيْءٍ الايه (۹۱الانعام)۔

مشرکين الله تعالى نه مني څنګه چې منل پکار دي ،ځکه چې دوي وايي :نه دی نازل کړی الله تعالى په يو بشر څه قانون ۔

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرى عَلى اللهِ كَذِبًا أَوْ قَالَ أُوحِيَ إِلَيَّ وَلَمْ يُوحَ إِلَيْهِ شَيْءٌ وَمَنْ قَالَ سَأُنْزِلُ مِثْلَ مَا أَنْزَلَ اللهُ وَلَوْ ترى إِذِ الظَّالِمُونَ فِي غَمَرَاتِ الْمَوْتِ وَالْمَلَائِكَةُ بَاسِطُو أَيْدِيهِمْ أَخْرِجُوا أَنْفُسَكُمُ الْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُونِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُولُونَ عَلى اللهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ آيَاتِهِ تَسْتَكْبِرُونَ (۹۳الانعام)۔

او نشته غټ کافر د هغه چانه چې دروغ تړي په الله باندې (چې نه دی نازل کړی الله تعالى څه قانون) ،او يا وايي ماته هم الله وحې راليکلې ده (لکه په آيت ۱۵۰کې دي: فَإِنْ شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ۔ حالانکه هغه ته هيڅ وحې نه ده ليکلې شوې۔ او هغه څوک چې وايي زر ده چې زهٔ به هم نازل کړم پشان د هغې چې نازل کړې دي الله ۔ او که تهٔ وګورې څه وخت چې دا د الله حق بل له ورکونکي په اوور کې ،او حال دا چې ملائکو خوارهٔ کړي وي خپل لاسونه ،راوباسئ ساګانې خپلې ،نن تاسو ته سزا درکولی کيږي د ذليله کونکي عذاب ځکه چې تاسو وئيل په الله باندې هغه څه چې تاسو د هغې حق نه لرلو او وئ تاسو د الله د قانون نه کبر کونکي۔

وَاضْرِبْ لَهُمْ مَثَلًا أَصْحَابَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَاءَهَا الْمُرْسَلُونَ ١٣ إِذْ أَرْسَلْنَا إِلَيْهِمُ اثْنَيْنِ فَكَذَّبُوهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ فَقَالُوا إِنَّا إِلَيْكُمْ مُرْسَلُونَ ١٤ قَالُوا مَا أَنْتُمْ إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُنَا وَمَا أَنْزَلَ الرَّحْمنُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ (۱۵يس)۔

اوبيان کړه تهٔ د مکې خلقو ته حال د يو ښار د واکدارانو ،کله چې راغلل هغوي ته مشران ، کله چې مونږ وليګل هغوي ته دوه نو هغوي د دواړو تکذيب وکړو نو مونږ د هغوي تائيد وکړو په دريم نو درې واړو اووئيل: يقينًا مونږ راغلي يو تاسو ته لپاره د مشرۍ د ښار ، اووئيل هغوي نه يئ تاسو مګر زمونږ پشان بشر۔ (يعني مونږ تاسو خپل حاکمان نه شو منلی : أَبَشَرًا مِنَّا وَاحِدًا نَتَّبِعُهُ إِنَّا إِذًا لَفِي ضَلَالٍ وَسُعُرٍ ٢٤ أَأُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ ٢٥القمر۔ د بشر ذکر په پوره قرآن کې لپاره د نفي د اتباع دی چې تاسو واجب الطاعه او حاکمان نه يئ )۔او نه دي نازل کړي رحمن څه شی،نه هغه رحمن دی ،تاسو دروغ وايئ۔

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَنْ نُؤْمِنَ بِهذَا الْقُرْآنِ وَلَا بِالَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ الايه (۳۱ سبأ).

او وايي کافران: چرته به او نه منو مونږ دا قرآن او نه هغه چې ددې نه مخکې دي.

مَا يَأْتِيهِمْ مِنْ ذِكْرٍ مِنْ رَبِّهِمْ مُحْدَثٍ إِلَّا اسْتَمَعُوهُ وَهُمْ يَلْعَبُونَ ۲ لَاهِيَةً قُلُوبُهُمْ وَأَسَرُّوا النَّجْوَى الَّذِينَ ظَلَمُوا هَلْ هذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ أَفَتَأْتُونَ السِّحْرَ وَأَنْتُمْ تُبْصِرُونَ (۳ الانبياء). نه دی راغلی مشرکينو ته هيڅ يو قانون نوی ددوي دحاکم لخوا مګر دوي اوريدلی دی هغه په داسې حال کې چې دوي ورسره لوبې کولې ، غافله وو دهغې نه زړونه ددوي ، او ديوبل سره ئ پټ وئيل هغه خلقو چې دالله حق حاکميت ئ بل چاته ورکړی وو ، نه دی دا خو يو سړی دی ستاو پشان (يعني نه لري حق دحکومت ) آيا تاسو اوس دا دروغ قبلوئ ؟ او تاسو په ښه پوهه يئ .

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هذَا إِلَّا إِفْكٌ افْتَرَاهُ وَأَعَانَهُ عَلَيْهِ قَوْمٌ آخَرُونَ فَقَدْ جَاءُوا ظُلْمًا وَزُورًا ۴ وَقَالُوا أَسَاطِيرُ الْأَوَّلِينَ اكْتَتَبَهَا فَهِيَ تُمْلَى عَلَيْهِ بُكْرَةً وَأَصِيلًا (۵ الفرقان) .

وَمَا يَأْتِيهِمْ مِنْ ذِكْرٍ مِنَ الرَّحْمنِ مُحْدَثٍ إِلَّا كَانُوا عَنْهُ مُعْرِضِينَ ۵ فَقَدْ كَذَّبُوا فَسَيَأْتِيهِمْ أَنْبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ (۶ الشعراء).

أَأُلْقِيَ الذِّكْرُ عَلَيْهِ مِنْ بَيْنِنَا بَلْ هُوَ كَذَّابٌ أَشِرٌ (۲۶ القمر).

أَأُنْزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنْ بَيْنِنَا بَلْ هُمْ فِي شَكٍّ مِنْ ذِكْرِي بَلْ لَمَّا يَذُوقُوا عَذَابِ (۸ ص).

وَلِلَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ عَذَابُ جَهَنَّمَ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ۶ إِذَا أُلْقُوا فِيهَا سَمِعُوا لَهَا شَهِيقًا وَهِيَ تَفُورُ ۷ تَكَادُ تَمَيَّزُ مِنَ الْغَيْظِ كُلَّمَا أُلْقِيَ فِيهَا فَوْجٌ سَأَلَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَذِيرٌ ۸ قَالُوا بَلَى قَدْ جَاءَنَا نَذِيرٌ فَكَذَّبْنَا وَقُلْنَا مَا نَزَّلَ اللَّهُ مِنْ شَيْءٍ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ كَبِيرٍ ۹ وَقَالُوا لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِي أَصْحَابِ السَّعِيرِ ۱۰ فَاعْتَرَفُوا بِذَنْبِهِمْ فَسُحْقًا لِأَصْحَابِ السَّعِيرِ (۱۱ الملک).

او دهغه خلقو لپاره چې انکار ئ کړی وو دالله دحاکم کيدلو په خپل ځان ، ددوزخ عذاب دی او ډير بد ځائ دی . کله چې دوي وغورځولی شي دوزخ ته اوري به دهغې خنړا او هغه به خوټکيږي . نزدی ده چې وشليږي د ډيرې غصې نه ، هرکله چې وغرځولی شي په هغې کې يو عسکر ،تپوس به کوي دهغوي نه ددوزخ سارنوالان: آيا تاسو ته نه وو راغلي څوک ويرونکي ، هغوي به وايي :يقينًا راغلي وو مونږ ته

ويرونكي، مونږ هغوي ته دروغژن اووې او مونږ ورته وئيل الله هيڅ شی هم نه دی نازل کړي ، تاسو په غټ کفر کې اخته يئ ، او وايي به دغه عسکر: که چرې مونږ ددوي خبره اوريدلې وی بلکه تسليم کړی مو وی ،نو نه به وومونږه د اوور په اوسيدونکو کې ، اوس ئ اقرار وکړو په ځان خپل گناه ، ورک دې شي د اوور اوسيدونکي.

په دې آيتونو کې مشرکين د ماانزل الله نه انکار کوي ، او ددې سره دنبيانو نه هم انکار کوي ،ځکه دا دواړه دحکومت متلازم گڼې دي يوه په بلې ايخودې شوې ده ، او هم دغه ئ دجهنم د تلو سبب گرځيدلی دی ، په دی آيت د سورۀ ملک کې دالله تعالی د رب کيدلو نه هم انکار مذکور دی چې داټوله يوه خبره ده يعني دالله تعالی تشريعي حکومت .

فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ٢٧ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَا أَسْخَطَ اللهَ وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ (٢٨ محمد).

په سورۀ انعام کې مذکو رعذاب چې په وخت د زنکدن کې دی دهغې وضاحت چې ملائک به ئ په مخ او په شا وهي ،او روح به تري وباسي . ددې عذاب سبب دا دی چې دوي چلن کوو په هغه دستور چې الله ئ ناراضه کولو او نه خوښوو ئ دالله قانون ، نو هغۀ ورله ټول اعمال خاورې کړل.

سورۀ کهف ددې وضاحت داسي کړی دی : قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا ١٠٣ الَّذِينَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ يُحْسِنُونَ صُنْعًا ١٠٤ أُولَئِكَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَلِقَائِهِ فَحَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فَلَا نُقِيمُ لَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَزْنًا (١٠٥الكهف).

په دی آيتونو کې دکافرانو کفر او دهغوي دنيک اعمالو دضائع کيدو وجه دالله تعالی دحاکميت نه انکار ښودلی دی ، چي تعبير ئ په "کفروا بآيات الله " سره کړی دی.

## ٣ - رجالِ قانون

رجال قانون دحکومت هغه پايه ده چي په هغې سره قانون تعليم کيږي،تشريح کيږي ، تطبيق کيږي.

هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِنْ كَانُوا مِنْ قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ.

دا شان دی دانبیاء علیهم السلام ـ دالله تعالی دحکومت او د هغهٔ دقانون غړي انبیاءکرام دي، مشرکین چې دالله تعالی دحاکمیت نه منکر وو نو په دغه عقیده ئ دالله تعالی دمقرر شوي او رالیګلي شوي رسولانو نه انکار کولو ،یعني رجال قانون ئ نه منل۔

### دمشرکینو دانبیاء علیهم السلام دذات سره هیڅ عداوت نه وو

مشرکینو د رسول د ذات اود هغه د اخلاقو نه هیڅ کله هم انکار نه دی کړی. خو دهغې درسالت نه ئ انکار کړی دی:

قَدْ نَعْلَمُ إِنَّهُ لَيَحْزُنُكَ الَّذِي يَقُولُونَ فَإِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُونَكَ وَلَكِنَّ الظَّالِمِينَ بِآيَاتِ اللهِ يَجْحَدُونَ ٣٣ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوا عَلَى مَا كُذِّبُوا وَأُوذُوا حَتَّى أَتَاهُمْ نَصْرُنَا وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمَاتِ اللهِ وَلَقَدْ جَاءَكَ مِنْ نَبَإِ الْمُرْسَلِينَ (٣٤ الانعام) ۔
مونږ ښه پوهه یو په دې خبره . چې تا غمژن کوي ددوي خبرې ،خو دوي ستا تکذیب (یعني ستا د ذات او د شرافت نه انکار نه نوي )بلکه دا ظالمان چې د الله تعالی حق ئ مخلوق ته ورکړی دی دالله د قوانینو نه انکار کوي. او یقینًا(دغه شان )انکار کړی شوی دی ستا نه د مخکې رسولانو ، نو رسولانو صبر وکړو د هغوي په نه منلو ، او اذیتونه ورته ورکړی شو ي دي تر دی چې راغی ورته زما نصرت ، او نشته څوک بدلونکی دالله قوانینو لره او یقینًا راغی تاته حال دتیرشوي پیغمبرانو۔ "لایکذبونک "، "ولقدکذبت "، "علی ماکذبوا " داصیغې دباب تفعیل دي ، په مبالغه دلالت کوي ، دلته مبالغه په اعتبار د "کم " سره زیاته غوره ده ،یعني ډیر ځله دوي دنبیانو خبره نه ده منلې ۔او دابه هلي درست وي چې نبیانو ورته هم په تکرار سره دعوت ورکړی وي، لکه څنګه چې قرآن وایي مونږه دوي ته په مختلفو اسالیبو دکلام ، په مختلفو دلائلو ، په مختلفو طریقو دالله تعالی حق رسولی دی :

وَلَقَدْ صَرَّفْنَا لِلنَّاسِ فِي هذَا الْقُرْآنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ فَأَبَى أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا (٨٩ الاسراء) ۔

په سورهٔ نوح کې ددې وضاحت داسې دي: قَالَ رَبِّ إِنِّي دَعَوْتُ قَوْمِي لَيْلًا وَنَهَارًا ٥ فَلَمْ يَزِدْهُمْ دُعَائِي إِلَّا فِرَارًا ٦ وَإِنِّي كُلَّمَا دَعَوْتُهُمْ لِتَغْفِرَ لَهُمْ جَعَلُوا أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِمْ وَاسْتَغْشَوْا ثِيَابَهُمْ وَأَصَرُّوا وَاسْتَكْبَرُوا اسْتِكْبَارًا ٧ ثُمَّ إِنِّي دَعَوْتُهُمْ جِهَارًا ٨ ثُمَّ إِنِّي أَعْلَنْتُ لَهُمْ وَأَسْرَرْتُ لَهُمْ إِسْرَارًا ٩ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ١٠ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ١١ وَيُمْدِدْكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَيَجْعَلْ لَكُمْ جَنَّاتٍ وَيَجْعَلْ لَكُمْ أَنْهَارًا ١٢ مَا لَكُمْ لَا تَرْجُونَ لله وَقَارًا ١٣ وَقَدْ خَلَقَكُمْ أَطْوَارًا ١٤ أَلَمْ

تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللهُ سَبْعَ سَمواتٍ طِبَاقًا ١٥ وَجَعَلَ الْقَمَرَ فِيهِنَّ نُورًا وَجَعَلَ الشَّمْسَ سِرَاجًا ١٦ وَاللهُ أَنْبَتَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ نَبَاتًا ١٧ ثُمَّ يُعِيدُكُمْ فِيهَا وَيُخْرِجُكُمْ إِخْرَاجًا ١٨ وَاللهُ جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ بِسَاطًا ١٩ لِتَسْلُكُوا مِنْهَا سُبُلًا فِجَاجًا (٢٠ نوح) .

وَإِنْ كَادُوا لَيَفْتِنُونَكَ عَنِ الَّذِي أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ لِتَفْتَرِيَ عَلَيْنَا غَيْرَهُ وَإِذًا لَاتَّخَذُوكَ خَلِيلًا (٧٣ الاسراء).

او قريب ده چې تهٔ ئې اړولې وې دهغي قانون نه چې مونږ تاته راليګلي دي لپاره ددې چې تهٔ دروغ او واى په مونږ باندې دهغې په ځائ بل څه، او که داسې شوي وى نو هغوي به خپل رازدار دوست ګرځولى وى.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ١٢ وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ أُولَئِكَ الْأَحْزَابُ ١٣ إِنْ كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ (٢٤ ص).نه دي منلي ددوي نه مخکې دنوح قوم ،او عاد ،اوفرعون دميخونو خاوند ،او ثمود ،اوقوم لوط ،او دأيكه واكدارانو ، داټول واكداران اوحاكمان وو. نه دي دوي مګر نه منونکي د رسولانو ، پس راغی په زما عذاب.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَأَصْحَابُ الرَّسِّ وَثَمُودُ ١٢ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ وَإِخْوَانُ لُوطٍ ١٣ وَأَصْحَابُ الْأَيْكَةِ وَقَوْمُ تُبَّعٍ كُلٌّ كَذَّبَ الرُّسُلَ فَحَقَّ وَعِيدِ (١٤ ق).

وَجَاءَ فِرْعَوْنُ وَمَنْ قَبْلَهُ وَالْمُؤْتَفِكَاتُ بِالْخَاطِئَةِ (9) فَعَصَوْا رَسُولَ رَبِّهِمْ فَأَخَذَهُمْ أَخْذَةً رَابِيَةً (١٠ الحاقه).ترجمه: او کړی دی فرعون او هغه واكدارانو چې ددهٔ نه مخکې وو او دنسكوره ښارونو حاکمانو يوګناه، هغه دادی چې ټولو دانسانانو دحاكم مقرر کړي حاكمان اونه منل نو هغه ونيول په ډير سخت ډول.

ددې ټولو آيتونو حاصل دادی دې چې د هر وخت كافرانو درسول نه انكار کړی دی . اوس پکار ده چې د رسول معنی د قرآن نه معلومه کری شي يو اځي په لغت اكتفاء اونه کړی شي ، ځکه په لغت کې د رسول معنی ده :خبررسونکی. او دتيرشوي آيتونو په رڼاکې ددې نه دانکار څه مطلب نه جوړيږي.

## د رسول معنی د قرآن نه

١. وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ الايه (٦٤ النساء) ، او نه دی ليګلی مونږه هيڅ يو رسول مګر لپاره ددې چې دهغهٔ اطاعت وشي دالله په امر.

په دې آيت کې الله تعالی د رسول معنی په طور د قاعدې کليې بيان کړې ده، يعني د وحې او د قرآن په اصطلاح کې نبي يا رسول هغه څوک وي چې د الله تعالی لخوا نه په انسانانو واجب الطاعه حاکم مقرر شوې وي - په دې معنی سره رسول او نبي دواړه رابر دي-

د رسول په دي تعريف قرآني کې د طاعت حيثيت د رکن دی ،ځکه قرآن کريم د ارسال رسل حصر په طاعت کې کړی دی ،او دا شان د رکن وي ،لهذا د طاعت نه بغير د رسول تصور په وحې کې نشته -

۲ - وَتِلْكَ حُجَّتُنَا آتَيْنَاهَا إِبْرَاهِيمَ عَلَى قَوْمِهِ نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَنْ نَشَاءُ إِنَّ رَبَّكَ حَكِيمٌ عَلِيمٌ ۸۳ وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ كُلًّا هَدَيْنَا وَنُوحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِ دَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ وَأَيُّوبَ وَيُوسُفَ وَمُوسَى وَهَارُونَ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۸۴ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيَى وَعِيسَى وَإِلْيَاسَ كُلٌّ مِنَ الصَّالِحِينَ ۸۵ وَإِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَيُونُسَ وَلُوطًا وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعَالَمِينَ ۸۶ وَمِنْ آبَائِهِمْ وَذُرِّيَّاتِهِمْ وَإِخْوَانِهِمْ وَاجْتَبَيْنَاهُمْ وَهَدَيْنَاهُمْ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ۸۷ ذَلِكَ هُدَى اللَّهِ يَهْدِي بِهِ مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَلَوْ أَشْرَكُوا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (۱۸۸الانعام) -

د سوره انعام په دې آيتونو کې د ټولو نبيانو ذکر دی ،اتلس په نامونو سره او باقي په نسبت سره - او د ټولو تعريف ئې په دی الفاظو سره کړی دی :

أُولَئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ فَإِنْ يَكْفُرْ بِهَا هَؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ (۱۸۹الانعام) -
دا ټول هغه خلق دي چې مونږ ورته خپل قانون ،حکومت يعني د فيصلې کولو اختيار او نبوت يعني په انسانانو مشري ورکړې وه ، پس که د مکې خلق د محمد په حق کې د دې درې خبرو نه انکار وکړې (يعني راوړی قانون ،د هغهٔ فيصله ،او د هغهٔ سرداري نه مني ) ، نو دا درې واړه خبرې مونږ سپارو هغه خلقو ته چې هغوي د دې نه انکار نه کوي -

په دی آيت کې د رسول په تعريف کې درې امور ذکر دي: الکتاب ،الحکم ،النبوة - په دې سره د يهودو د هغې دروغو ردهم وشو کوم چې هغوي په اسلامي نړۍ کې خوارهٔ کړي دي -

**د يهودو دروغ** - يهودو دا خبره مشهوره کړې ده چې الله تعالی حکومت او نبوت په بني اسرائيلو کې ايخودي دي ،په دې ترتيب سره چې نبي به د لاوي د اولاد نه وي ،او حاکم به د يهودا د اولاد نه- نتيجه ئې دا شوې چې نبي به جدا سړی وي، او حاکم وقت به بيل سړی وي - دا دروغ ئې دومره عام کړي دي چې عام او خاص خلقو هم د غه ربنتيا ګنړلي دي اِلّامَارَحِمَ رَبِّي" - د دغې دروغو مقصد د نبي هغه معنی

ورکول دي کومه چې الله تعالی او اسماني کتابونو بیان کړې ده یعني دالله لخوا نه دانسانانو لپاره واجب الطاعه حاکم ، ددغې دروغو دختمولو په خاطر الله تعالی په دې مذکوره آیتونو کې د نوح علیه السلام نه تر آخرپورې ټول نبیان ذکر کړل ،او دنبي په معنی او په تعریف کې ئ درې خبرې جمع کړې ـ چې رسول او نبي عبارت دی ددې درې خبرو نه ، دا درې خبرې نه تقسیمیږي او نه کمیږي ـ که په دی درې خبروکې یوه خبره هم کمه کړی شي یادا خبرې تقسیم کړی شي نو دا دنبوت او درسالت نه انکار دی ، لکه چې الله تعالی د مکې خلقو ته دنبي علیه السلام دمنلو امر کوي نو ددرې خبرو سره دمنلو ورته وایي ـ

اول ئ درې خبرې په تفصیل سره ذکر کړې دي اوبیا ئ ټولې په یو ضمیر کې راجمع کړې دي ، چې خبرې درې دي ،او درې واړه د یو نه عبارت دي چې رسول یا نبي ورته وئیلی کیږي ـ هم دغه شان خبره الله تعالی خصوصًا د انبیاءبني اسرائیل په حق کې کړې ده:

وَلَقَدْ آتَيْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ وَرَزَقْنَاهُمْ مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَفَضَّلْنَاهُمْ عَلَى الْعَالَمِينَ ١٦ وَآتَيْنَاهُمْ بَيِّنَاتٍ مِنَ الْأَمْرِ فَمَا اخْتَلَفُوا إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِي بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ (١٧ الجاثیه)،ددې دتخصیص وجه داده چې دادروغ دیهودولخوانه جوړشوي دي ـ او دائ دهغه وخت نه عام کړي دي چې دوي دالله تعالی دحکم او دقانون نه بغاوت وکړواو ډیر نبیان اوصحابه ئ په دی خبره قتل کړل : إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ (٢١ال عمران )ـ

قُلْ يَاأَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي رَسُولُ اللهِ إِلَيْكُمْ جَمِيعًا الَّذِي لَهُ مُلْكُ السَّموتِ وَالْأَرْضِ لَا إِلهَ إِلَّا هُوَ يُحْيِي وَيُمِيتُ فَآمِنُوا بِاللهِ وَرَسُولِهِ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ الَّذِي يُؤْمِنُ بِاللهِ وَكَلِمَاتِهِ وَاتَّبِعُوهُ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ (١٥٨الاعراف)ـ

تهٔ اعلان وکړه: ای خلقو !یقینًا زهٔ دالله رسول یم ستاسود ټولو لپاره، هغه الله چې یو اځې دهغهٔ حکومت دی په اسمانونو او په زمکه ،نشته دی بل څوک بادشاه مګریو اځې هغه دی ،ژوندي کوي او مړهٔ کوي ،لهذا تاسو ایمان راوړي په دغې الله باندې ،او دهغهٔ په رسول باندې چې نبي امّي دی ،هغه چې ایمان ئ دی په دغې الله باندې او دهغهٔ په قوانینو باندې او ددهٔ اتباع وکړئ چې تاسو الله تعالی ته ورسیږئ ـ

ددې نه يو آيت مخکې د مؤمنينو صفت بيان شوی دی د رسول اتباع کول ـ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ الَّذِي يَجِدُونَهُ مَكْتُوبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ فَالَّذِينَ آمَنُوا بِهِ وَعَزَّرُوهُ وَنَصَرُوهُ وَاتَّبَعُوا النُّورَ الَّذِي أُنْزِلَ مَعَهُ أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (۱۵۷الاعراف)ـ

مؤمنين هغه څوک دي چې اتباع کوي د رسول چې نبي امّي دی هغه چې دوي ئ مومي ليکلی شوی په تورات کې او په انجيل کې چې د دوي سره دی ، هغه امر کوي دوي ته د الله تعالی د خوښې ،او منع کوي دوي د الله تعالی د ناخوښۍ نه، او حلالوي دهغوي لپاره پاکيزه څيزونه او حراموي په هغوي خبيث څيزونه او لري کوي ددوي نه هغه بوجونه او طوقونه چه دوي قانون ګرځولی وو په ځان باندې ـ پس چاچې اومنلو په دغې صفت نبي، او هغه ئ زو آور کړو ،او دهغه ئ مدد وکړو لکه چې د حاکم مدد دی او اتباع ئ وکړ دهغې قانون چي نازل شوی دی په هغه، يو اځې هم دغه خلق کامياب دي ـ

ددې او دنورډيرو داسې آيتونو واضحه يو اځې مطلب هم دا دی چې رسول هغه څوک دی چې دهغه اطاعت او اتباع اوکړی شي ـ

**درسول معنی داحاديث مبارکه نه** ـ په احاديث مبارکه کې هم د رسول مطلب مطاع بيان شوی دی چې رسول عبارت دی دطاعت نه

۱ ـ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كُلُّ أُمَّتِي يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَنْ أَبَى. قِيلَ: وَمَنْ أَبى؟ قَالَ: مَنْ أَطَاعَنِي دَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَنْ عَصَانِي فقد أَبى ـ (رَوَاهُ البُخَارِيّ) ـ د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دی: نبي عليه السلام فرمائيلي دي: زما هر امتي به جنت ته ځي مګر هغه به نه ځي چې انکار ئ وکړو ـ چا تپوس وکړو: انکار کونکي څوک دي ؟، نبي عليه السلام وفرمائيل: چاچې زما اطاعت وکړو هغه به جنت ته ځي او چاچې زما اطاعت اونه کړو هغه انکار وکړو ـ

۲ ـ عَن جَابر بن عبد الله يَقُول جَاءَتْ مَلَائِكَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ نَائِم فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَة وَالْقلب يقظان فَقَالُوا إِنَّ لِصَاحِبِكُمْ هَذَا مَثَلًا فَاضْرِبُوا لَهُ مثلا فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانُ فَقَالُوا مَثَلُهُ كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنَى دَارًا وَجَعَلَ فِيهَا مَأْدُبَةً وَبَعَثَ دَاعِيًا فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ فَقَالُوا أَوِّلُوهَا لَهُ يفقهها فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ

وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقلب يقظان فَقَالُوا فالدار الْجنَّة والداعي مُحَمَّد صلى الله عَلَيْهِ وَسلم فَمن أَطَاع مُحَمَّدًا صلى الله عَلَيْهِ وَسلم فقد أَطَاع الله وَمن عصى مُحَمَّدًا صلى الله عَلَيْهِ وَسلم فقد عصى الله وَمُحَمّد صلى الله عَلَيْهِ وَسلم فرق بَين النَّاس. (رَوَاهُ البُخَارِيّ)۔ د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دی: څه ملائک راغلل نبي عليه السلام ته او هغه اوده وو ، پس بعض د هغوي نه ووئيل: دی اوده دی۔ او بعض ووئيل: دده سترګې اوده دي او زړه يې ويخ دی ، پس هغوي ووئيل: يقينًا ستاسو دده مشر يو شان دی ، هغه شان دده ذکر ووايئ ، نو ووئيل بعض د هغوي نه ؛ دی اوده دی ، او ووئيل بعض: يقينًا سترګي يې اوده دي خو زړه يې بيدار دی ، پس ووئيل هغوي: دده مثال پشان د هغه سړي دی چې ساختمان جوړ کړي او په هغې کې دسترخوان ولګوي او وليګي څوک رابلونکی۔ پس چاچي دده رابلونکي دعوت قبول کړو ، بنګلې ته به داخل شي او دد سترخوان نه به خوري او چاچي دده رابلونکي دعوت قبول نه کړو بنګلې ته به نه داخليږي او دد سترخوان نه به هم نه خوري۔ بيا هغوي ووئيل: دده مثال مطلب بيان کړئ ده ته چې پوهه شي۔ پس ووئيل بعض د هغوي نه: دی اوده دی ، او بعض ووئيل: دده سترګې اوده دي او زړه يې بيدار دی ، نو هغوي ووئيل: داکور جنت دی او ديته رابلونکی محمد صلی الله عليه وسلم دی۔ پس چاچې اطاعت وکړو د محمد صلی الله عليه وسلم نو هغهٔ اطاعت وکړو د الله تعالی۔ او چاچې اطاعت ونکړو د محمد صلی الله عليه وسلم نو هغهٔ د الله تعالی اطاعت ونکړو ، او محمد صلی الله عليه وسلم د خلقو په منځ کې جدا والی راوستونکی دی۔

۳۔ وَعَنْ أَبِي مُوسَى رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّمَا مَثَلِي وَمَثَلُ مَا بَعَثَنِي اللهُ بِهِ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَتَى قَوْمًا فَقَالَ يَا قَوْمِ إِنِّي رَأَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنِي وَإِنِّي أَنَا النَّذِيرُ الْعُرْيَانُ فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ فَأَطَاعَهُ طَائِفَةٌ مِنْ قَوْمِهِ فَأَدْلَجُوا فَانْطَلَقُوا عَلَى مَهْلِهِمْ فَنَجَوْا وَكَذَّبَتْ طَائِفَةٌ مِنْهُمْ فَأَصْبَحُوا مَكَانَهُمْ فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَأَهْلَكَهُمْ وَاجْتَاحَهُمْ فَذَلِكَ مَثَلُ مَنْ أَطَاعَنِي فَاتَّبَعَ مَا جِئْتُ بِهِ وَمثل من عَصَانِي وَكذب بِمَا جِئْتُ بِهِ مِنَ الْحَقِّ ۔ د حضرت ابو موسی رضي الله عنه نه روايت دی: نبي عليه السلام فرمايي: يقينًا زما او هغه قانون چې الله تعالی ما ته راليګلی دی ، زمونږ مثال د هغه سړي دی چې راشي يو قوم ته پس ورته وايي: ای زما قومه ! زما دې قسم وي ما وليدو يو لښکر په خپلو سترګو او زهٔ بربنډ يدونکی يم ، پس ځان وساتئ ځان وساتئ۔ پس څه خلقو د هغهٔ اطاعت وکړو او روان شو نو بچ شو ، او څه خلقو هغه ته دروغژن ووئيل نو پاتې شول په خپل ځائ ، نو لښکر پرې سهار راغی او هغوي

يې مړۀ کړل او خراب کړل۔ نو دا مثال دی دهغه چاچې زما اطاعت وکړي او تګ وکړي په هغه قانون چې ما را اوړی دی ، او دهغه چا مثال دی چې زما اطاعت نه کوي او زما را اوړی قانون دروغ بولي۔

۴ ۔ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَا من نَبِي بَعثه الله فِي أمة قبلي إِلَّا كَانَ لَهُ من أُمَّتِهِ حَوَارِيُّونَ وَأَصْحَابٌ يَأْخُذُونَ بِسُنَّتِهِ وَيَقْتَدُونَ بِأَمْرِهِ ثُمَّ إِنَّهَا تَخْلُفُ مِنْ بَعْدِهِمْ خُلُوفٌ يَقُولُونَ مَا لَا يَفْعَلُونَ وَيَفْعَلُونَ مَا لَا يُؤْمَرُونَ فَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِيَدِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِلِسَانِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِقَلْبِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَيْسَ وَرَاءَ ذٰلِكَ مِنَ الْإِيمَانِ حَبَّةُ خَرْدَلٍ . (رَوَاهُ مُسلم) ۔د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه نه روایت دی: نبي علیه السلام فرمایي: زما نه مخکې چې څو مره نبیان تیرشوي دي دهغوي په امت کې به څه خاص ملګري وو چي دهغۀ په ژوند به ئ ژوند کولو او دهغه دامر به ئ اطاعت کولو ، بیا دهغوي ن روسته دا سې خلق راغلل چې څه به ئ وئیل هغه به ئ نه کول او هغه څه به ئ کول چې دهغې ورته امر نه وو شوی (نوزما په امت کې به هم دا سې خلق پیدا کیږي ) پس چاچې جهاد وکړ ودهغوي سره په لاس سره نو هغه مؤمن دی ، او چاچې جهاد وکړو دهغوي سره په ژبه نو هغه مؤمن دی ، او چاچې جهاد وکړو دهغوي سره په زړۀ سره نو هغه مؤمن دی ، او ددې نه روسته د ووري ددانئ ومره هم ایمان نشته۔

۵ ۔ عَن ربيعَة الجرشِي رضي الله عنه يَقُول أُتِي النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيلَ لَهُ لِتَنَمْ عَيْنُكَ وَلِتَسْمَعْ أُذُنُكَ وَلِيَعْقِلْ قَلْبُكَ قَالَ فَنَامَتْ عَيْنَايَ وَسَمِعَتْ أُذُنَايَ وَعَقَلَ قَلْبِي قَالَ فَقِيلَ لِي سيد بنى دَارا فَصنعَ مَأْدُبَةً وَأَرْسَلَ دَاعِيًا فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَرَضِيَ عَنْهُ السَّيِّدُ وَمَنْ لَمْ يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَلم يطعم مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَسَخِطَ عَلَيْهِ السَّيِّدُ قَالَ فَاللهُ السَّيِّدُ وَمُحَمَّدٌ الدَّاعِي وَالدَّارُ الْإِسْلَامُ وَالْمَأْدُبَةُ الْجَنَّةُ. (رَوَاهُ الدَّارِمِيّ)۔حضرت ربیعه الجرشي رضي الله عنه وایي: نبي علیه السلام ته څوک راغی او ورته وایي: ستا سترګې دې اوده شي او ستا غوږونه دې واوري او ستا زړۀ دې هوښ شي۔ نبي علیه السلام فرمایي: پس زما سترګې اوده شوې او زما غوږونو اوریدل او زما زړه پوهیدو۔ نبي علیه السلام فرمایي: پس ماته ووئیلی شو : یو سردار دی ، کور ئ جوړ کړو او دسترخوان ئ ولګولو او یو رابلونکی ئ ولیګلو ، پس چاچې درابلونکي دعوت قبول کړو کورته به داخل شي او دسترخوان به وخوري او دهغه نه به دهغۀ دا سردار راضي شي ، او چا چې درابلونکي خبره اونه منله هغه به دی کورته نه داخلیږي او د دسترخوان نه به اونه خوري او دهغۀ نه به دهغۀ سردار حاکم خفه وي۔ نبي علیه السلام وفرمائیل: حاکم الله تعالی دی او دعوت ورکونکی محمد دی او دا کور اسلام دی او دا دسترخوان جنت دی۔

۶ ـ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّى يَكُونَ هَوَاهُ تَبَعًا لِمَا جِئْتُ بِهِ. رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ وَقَالَ النَّوَوِيُّ فِي أَرْبَعِينِهِ: هذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ رَوَيْنَاهُ فِي كتاب الْحجَّة بِإِسْنَاد صَحِيح ـ عبد الله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي: نبي عليه السلام فرمايي: نه شي ايمان راوړونکی يوڅوک ستاسو نه چې ترکومي نه شي دهغهٔ رائ پابند دهغې قانون چې ماراوړی دی ـ

۷ ـ وَعَن مَالك بن أنس رحمه الله مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا: كِتَابَ اللهِ وَسُنَّةَ رَسُولِهِ. (رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّأ) ـ دامام مالک بن انس نه مرسل روايت دي: نبي عليه السلام فرمايي: ماپه تاسو کې دوه قانونه پريخودي دي، تاسو به دهغه وخته پورې نه کافران کيږئ ترکومې پورې چې تاسو دا دواړه مضبوط نيولي دي ـ

۸ ـ عَن جَابِرٍ رضي الله عنه: أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَتَى رَسُولَ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنُسْخَةٍ مِنَ التَّوْرَاةِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ هَذِهِ نُسْخَةٌ مِنَ التَّوْرَاةِ فَسَكَتَ فَجَعَلَ يقْرَأ وَوجه رَسُول الله يَتَغَيَّرُ فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ مَا تَرَى مَا بِوَجْهِ رَسُولِ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ عُمَرُ إِلَى وَجْهِ رَسُولِ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَعُوذُ بِا من غضب الله وَغَضب رَسُوله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم رَضِينَا بِاللهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ بَدَا لَكُمْ مُوسَى فَاتَّبَعْتُمُوهُ وَتَرَكْتُمُونِي لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ وَلَوْ كَانَ حَيًّا وَأَدْرَكَ نُبُوَّتِي لَاتَّبَعَنِي ـ (رَوَاهُ الدَّارِمِيّ) ـ

۹ ـ عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ يَهُودِيٌّ لصَاحبه اذْهَبْ بِنَا إِلَى هذَا النَّبِي فَقَالَ صَاحِبُهُ لَا تَقُلْ نَبِيٌّ إِنَّهُ لَوْ سَمِعَكَ كَانَ لَهُ أَرْبَعَة أَعْيُنٍ فَأَتَيَا رَسُولَ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَاهُ عَنْ تِسْعِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ فَقَالَ لَهُم: لَا تُشْرِكُوا بِاللهِ شَيْئًا وَلَا تَسْرِقُوا وَلَا تَزْنُوا وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا تَمْشُوا بِبَرِيءٍ إِلى ذِي سُلْطَانٍ لِيَقْتُلَهُ وَلَا تَسْحَرُوا وَلَا تَأْكُلُوا الرِّبَا وَلَا تَقْذِفُوا مُحصنَة وَلَا توَلّوا الْفِرَار يَوْمَ الزَّحْفِ وَعَلَيْكُمْ خَاصَّةً الْيَهُودَ أَنْ لَا تَعْتَدوا فِي السبت. قَالَ فقبلوا يَده وَرجله فَقَالَا نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ قَالَ فَمَا يَمْنَعُكُمْ أَنْ تتبعوني قَالُوا إِن دَاوُد دَعَا ربه أَن لَا يزَال فِي ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ وَإِنَّا نَخَافُ إِنْ تَبِعْنَاكَ أَنْ تَقْتُلَنَا الْيَهُودُ. (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ) ـ

## درسول تعريف

د رسول تعريف ددی تير شوي آيات کريمه او احاديث مبارکه نه دا حاصليږي:

الرسول هوا لانسان المبعوث الی النأس بدستور الرحمن المطاع بإذنه المتحاکم الیه فی کل مختلف فیه وجوبًا علیهم۔
رسول هغه انسان دی چې لیگلی شوی دی انسانانو ته دالله دطرف نه دهغه په قانون سره چې واجب کړي وي دهغه سرداري لپاره ددی چې خلق هغهٔ ته خپلې جگړې ویسي لپاره دفیصلې۔

**درسول معنی دمسلمانانو نه**

دهجرت نه مخکې دمدینې د خلقو سره چې په مکه مکرمه کې په مختلفو ناستو کې کوم لوظ شوی وو۔ ددغې ښار ورو ماشومانو دنبي علیه السلام په راتگ هغه لوظ دښار دمشرانو د طرفه په دی الفاظو کې وستایلو:

طلع البّدر علیناَ　　من ثنیاَت الوداع

وجب الشکر علیناَ　　ما دعا للہ داع

ایهاَالمبعوث فیناَ　　جئت باَلامر المطاَع

## دطاعت معنی

څنگه چې درسول معنی الله تعالی په خپله بیان کړې ده ،لغت یامخلوق ته ئ نه سپارلې ،دغه شان درسول دطاعت اودهغهٔ داتباع معني هم الله تعالی پخپله بیان کري ده

داخبره مخکې تیره شوه چې درسول په تعریف کې دطاعت حیثیت د رکن دی۔ داطاعت قرآن پاک خاص کړی دی چې مراد ترې خپل منځي اختلاف اوجگړه پیغمبر ته وړل دي لپاره دفیصلې ،نه لپاره دشوری ،اوکه نبي موجود نه وي نوپه هغهٔ نازل شوي قانون وحٔي ته به ئ وړي ، داتخصیص دې حد ته رسیدلی دی چې اسماني قانون اودستور گرځیدلی دی۔ لهذا کله چې په کتاب الله کې طاعت مطلق ذکر شي مراد به ترې هم دغه خاص طاعت وي چې دایمان نه عبارت دی ،حتی که څوک دلفظ طاعت نه بله څه معنی اخستل غواړي،یاپه بل څه عمل خپل ځان دعمل کونکو نه شماري نوقرآن کریم داټول تاویلات اودطاعت نورې معنې اوبل مصداق ددې لفظ نه په ډیره کلکه پریکوي او ددې لفظ مصداق اومعنی یواځې دغه مخصوص طاعت گرځي چې قرآن ئ تفسیر په طاعت سره کړی دی۔ ددې طاعت تفسیر قرآن پاک په "انما "کلمه حصر سره په تحاکم سره کړی دی : إِنَّمَا كَانَ قَوْلَ الْمُؤْمِنِينَ إِذَا دُعُوا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ أَنْ يَقُولُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (۵۱ النور)۔

د مؤمنينو دا خبره چې مونږ واوريدو ، او مونږ اطاعت وکړو ،دديې بس يو مطلب دی او هغه دا چې کله دفيصلې وخت راشي نو دوي خپله فيصله الله او رسول ته ويسپي ، بس يو اځې دا خلق کامياب دي ۔

وَمَنْ يُطِعِ اللهَ وَرَسُولَهُ وَيَخْشَ اللهَ وَيَتَّقْهِ فَأُولئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ (۵۲)، دا جمله اګرچه شرطيه ده مګر په معنی کې خبر دی ،يعني هم دغه خلق دالله او درسول اطاعت کونکي دي او هم دغه خلق دالله نه ويريدونکي دي په ظاهره او په زړۀ کې يعني دايمان او دا اسلام جمع کونکي دي او هم يو اځې دغه خلق جنت ته تلونکي دي۔

وَأَقْسَمُوا بِاللهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِنْ أَمَرْتَهُمْ لَيَخْرُجُنَّ قُلْ لَا تُقْسِمُوا طَاعَةٌ مَعْرُوفَةٌ إِنَّ اللهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ( ۵۳)۔

ډير خلق به پاځۀ پاځۀ قسمونه خوري چې مونږ امر منونکي يو۔ تۀ ورته اووايه:قسمونه مۀ خورئ ، په غټو دعوو او په ډيرو قسمونو څوک نه مسلمانيږي۔ ايمان خو دپيژندلي شوي طاعت نوم دی ، چې هغه قضاء او فيصله ده۔

قُلْ أَطِيعُوا اللهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْهِ مَا حُمِّلَ وَعَلَيْكُمْ مَا حُمِّلْتُمْ وَإِنْ تُطِيعُوهُ تَهْتَدُوا وَمَا عَلَى الرَّسُولِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ (۵۴)۔

تۀ ورته اووايه:قسمونه مۀ خورئ خو الله ته او رسول ته فيصله وړئ ، که نه ئ وړئ نو د رسول خپل مسؤليت دی چې فيصلې وکړي "واُمِرتُ لاعدل بينکم"او په تاسو يعني په امت خپل مسؤليت دی چې فيصلې محمد ته وړاندې کړي۔ اوکه تاسو محمد ته خپلې فيصلې وړاندې کړي نو تاسو جنت او الله تعالی وموندلو۔ او درسول اولنۍ مسؤليت هم دغه ده چې خبره ئ ښه واضحه او مدلّله وکړله۔

او بيا ئ دی ته "طاعة معروفة " يعني طاعتِ مصطلحه نوم ورکړی دی۔ د " معروفة "په قيد سره ئ د طاعتِ لغويه نه جدا کړو۔ ځکه په هغې کې عموم دی۔ اودغه عموم مضر دی دطاعت مخصوصه لپاره۔ ځکه:۱۔ طاعتِ لغويه دحکم په اعتبار سره مختلف الدرجات دی۔۲۔ دطاعتِ لغويه مصداق عمل دی چې محل ئ جوارح دي اودايمان نه خارج دي د ماتريديه اود امامِ اعظم په نزد باندې رأسًا يعني صورة او حقيقتًا ،او د اشاعره او دمحدثينو په نزد باندې حقيقتًا نه صورةً ،او دطاعتِ مصطلحه مصداق

ایمان دی چې محل ئ قلب دی ، او حکم ئ په فعل سره او په ترک سره کفردی او په منځ ددي کې کومه درجه نشته لکه چې معتزله ئ قائل دي په نوم د "منزلة بين المنزلتين".

دا معنی دطاعت منصوص محکم ده ، تاویل پکې نه شي کیدي ،په وجه دتنصیص دتکفیر په ترکِ تحاکم په قسم سره :فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا(٦٥النساء ) . دعربیت په اعتبار سره کله چې کلام دتاکید آخري درجې ته ورسي یعني کلام مؤکد بالحلف شي نو دتاویل محل نه پاتې کیږي . لهذا د " وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ"معنی ده : وماارسلنا من رسول الا ليتحاكم اليه بأذن الله. پس طاعتِ معروفه یعني تحاکم او رسالت مترادف دي په اصطلاح دکتاب الله کې.

قرآن چې څومره ددي مخصوص معني سره طاعت خاص کوي ،دا په زوره مسلمانئ دومره ددې مخصوص معنې نه اړوي ،او عموم ته ئ بیائي. ځکه عموم دتخفیف نه عبارت دی او خصوص دثقل نه. ددۀ دا زور او جبر دالله تعالی سره دی ،چې الله تعالی په قسم سره دطاعت نه خاص معنی اخلي ،او ځان ته په زور مسلمان وئیونکی دطاعت نه عام معنی اخلي . هم دغه وجه ده چې داسې خلقو ته دا اوونیلی شي ،چې ایمان دطاعت نوم دی ،او بغیر دطاعت نه ایمان او اسلام هیڅ معنی نه لري ،نو دی به زر عبادات اوعادات دطاعت په معنی کې رامخکې کړي ،ښه په زور شوربه اووایي :الحمد لله مونځ کوو ، په کور کې سهار وختي تلاوت کیږي ،ماشومان چې کورته راځي،یاچامخې ته کیږي د رسول سلام په وايي ،هرنیک کار په بسم الله سره شروع کوي ،، په کورکې د زنانه سرتور سر بدګڼرلی کیږي ،کوشش کوو دوشنبه ،پیجشنبه روژه ونیسو ، د وس مطابق یو سنت نه پرېږدو او د وس نه پورته څوک مکلف نه دی.دا او ددې په رقم یو لوې تقریر دخپل طاعت دثابتولو لپاره د هر داسې مسلمان په ژبه او په داخل کې لیکلی پروت دی. او عجیب خبره داده چې په دی خپل تشریح کړي طاعت داله دکتاب نه هم زیات مطمئن او قانع دی . په سلو کې دوه نیم سوه فیصده یقین لري چې زۀ دطاعت ژوند تیرومه ،نو ولې به بیا نه وایي چې دجنت طمع لرم ،دشفاعت امیدوار یم . د لویئ ،دکِبر دې خوله ماته شي ښه ایماندار یم .لويي نه کوم ،لويي خوشيطان کړې وه ،او نه ئ په چا زباتم خو دګڼړو شیخانواو دعلم د دعویدارو نه په ډیر څه سنبهال او ډیر ښه یو . اوبۀ په خې لاس څکل او پیزار په چپه خپه ویستل بلاشبهه دخوږ پیغمبر سنت دي . پنج وخته مونځ په وخت کول حتمًا فرض دي ، په دی تفصیل سره دا داسلام احکام دي ، اعتقاد به ئ دسنت او دفرض ساتي ، دعمل به ئ همه وقت کوشش کوي . که درنه پاتې شو په فرق

ددرجاتو سره به ځان مجرم بولي ، د استهزاء او دناقدرئ نه به ئ هروخت ځان ساتي ـ په ژبه او په اشاره ددې ټوقې او رشخن دایمان دمحروم کیدو عقیده به لري ـ لیکن کوم طاعت چې دنبي او دالله لخوانه په بل ډول لازم دی چې عمل ئ اعتقاد دی ، که شخړه برداشت کولی شي او په بی شرمۍ پرده اچولی شي نوخبره بله ده ـ اوکه جګړه سرته رسول یقیني شو ، نوکه دمال وي اوکه د نفس ،یا دناموس او دعزت بی ددغې معروف لارې نه په بله لاره ددې تصور دالله او درسول او داسلام په نظر کې نشته ، په بله لاره ،په بله طریقه ددې حل راویستل دالله په کتاب کې په صراحت او وضاحت سره یوحکم لري: بی دڅه تاویل نه په غبرګ قسم سره کافر دی سره دایمان ددعوې نه ،سره د "لااله الاالله محمد رسول الله" د وئیلو نه ، سره دپینځه کلمو ، د پینځه وخته مونځونو نه ـ داټول اعمال د ستړیا نه علاوه بل څه فائده نه رسوي ـ د سورۀ نساء آیت **۲۵** دالله تعالی دا حکم او فتوی دداسې خلقوپه حق کې داسې بی غباره بیانوي: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ـ

زما دې قسم وي او بیا دې قسم وي ستا په رب حاکم باندې دا خلق هیڅ کله هم نه شي دایمان خاوندان کیدلی ترکومې چې تاخپل قاضي جوړ نه کړي دهغې ټولو شخړو چې ددوي په خپلو کې راوچتیږي ، بیا چې اونه مومي په خپلو زړونو کې هیڅ تنګي دهغې فیصلې د وجې نه چې تاکړې ده او امني ستا کړي فیصله پوره ـ

او که دچا په نیت کې دومره قدرې وي چې دفیصلې ځائ بل هم شته ،نو دټولو ایمانیاتو باوجود ددې ستړي مسلمان حکم په پنځه آیتونو کې په ډیرو نورو القابو د کفر سره هم دادی چې بیان شو ـ هغه دعوی دایمان په دې شکلونو کې کیدی شي : أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ٦٠ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا ٦١ فَكَيْفَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَاءُوكَ يَحْلِفُونَ بِاللهِ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا ٦٢ أُولَئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَهُمْ فِي أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ٦٣ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَحِيمًا (٣٦ النساء)ـ

یقینًا تاته ښه معلومدي هغه خلق چې دعوې کوي: مونږه ایمان راوړی دی په هغه قانون دالله چې راالیګلی شوی دی تاته او ستانه مخکې ، لري دا نیت چې فیصله بل قانون ته وروړی شي ، حالانکه

دوي ته دا امر شوی دی چې بل قانون ته فیصله وړلو ته دې کفر اوواي ـ او غواړي شیطان چې کافران کړي دا خلق په لرې کفر سره ـ او کله چې دوي ته اووئیلی شي راشئ دا الله قانون او د رسول فیصلې ته نو تهٔ به ګورې ،دا منافقان ساتي ځان، او منع کوي بل ستا دقانون او دفیصلې نه په کلکه ـ بیا په دغه کې چې دوي راونیولی شي نو راشي تا ته او قسمونه خوري په الله باندې !زمونږ مقصد دا سلام خیرخواهي او د مسلمانانو دنورو سره اتفاق راوستل وو ـ الله ددوي د زړهٔ پټې خبرې ښکاره کړی ،نو تهٔ ددي قسمونو او دنورو عذرونو نه اعراض وکړه او دا الله حکم ورته اووایه او ددوي په باره کې دا الله فیصله په وضاحت سره ورته او وایه ـ چې نه دی لیګلی مونږ هیڅ څوک د رسولانو نه مګر لپاره ددې چې په هغهٔ باندې دې فیصلې وکړي دغه خلق چې ورته لیګلي شوي دي په وجه ددې چې دا دا الله حکم دی ـ او که چاکفر وکړو ،او بیا دکفر نه توبه وکړي ،او رسول دهغوي د توبې نه مطمئن شي ،نو الله به ئې توبه قبوله کړي او ګناه به ئې معاف کړي ـ

حاصل ددې تفصیل دا دی چې "رسول" دقرآن کریم او د وحې اصطلاح ده ،لهذا هغه معنی به د رسول معتبر وي چې کومه معنی الله تعالی په خپله بیان کړې وي ـ ددې معنی د لغت نه په دی ډول اخستل چې یوائې په لغت قناعت وکړی شي ،قطعي جهالت او دا سلام نه بی خبري ده ـاو دلغت امامان چې کوم اهل کفر دي او هم هغه اولني خلق دي په باب دعربي لغت کې دهغوي نه ددی معنی اخستل ډیره په اسانه باندې کفر له غاړه ورکول دي ـ ځکه هغوي خو دا الله رسول نه منلو ـ لهذا درسول دمعنی او د تعریف لپاره د وحي او دقرآن نه علاوه بل څه ته مخ کول په حقیقت کې قرآن ته شاکول دي ـ

**لا إله الاالله محمد رسول الله**

د اسلام په کلمهٔ توحید کې محمد صلي الله علیه وسلم ته رسول په اصطلاح دقرآن کریم ویلي شوي دي ـ هم په دغه قرآني اصطلاح دایمان دا کلمهٔ توحید صحابه کرامو ویلې ده او په دغې مسلمانان شوي دي ـ نور افرادد امت به هم په دغې قرآني اصطلاح جوړه کلمه مسلمانیږي ،ځکه صحابه کرام په ایمان او په عمل دواړو کې د روستنو لپاره تر ابده معیار او تله ګرځولی شوی دی: فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنْتُمْ بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوْا وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ (۱۳۷البقره)ـ ـ په دی پیمانه چې پوره وي مسلمان به وي ، که نه هرګز نه شي مسلمان کیدلی،دا دا الله تعالی حتمي فیصله ده ـ اګرکه دعوی تر اسمانونو پورې کوي ـ

كلّ يدّعي وصلًا بليلى          وليلى لاتقرّ لهم بذاک

## د رسول معنی د کافرانو نه

۱ ـ وَأَنْذِرِ النَّاسَ يَوْمَ يَأْتِيهِمُ الْعَذَابُ فَيَقُولُ الَّذِينَ ظَلَمُوا رَبَّنَا أَخِّرْنَا إِلَى أَجَلٍ قَرِيبٍ نُجِبْ دَعْوَتَكَ وَنَتَّبِعِ الرُّسُلَ أَوَلَمْ تَكُونُوا أَقْسَمْتُمْ مِنْ قَبْلُ مَا لَكُمْ مِنْ زَوَالٍ (۴۴ابراهیم) ـ او ویروه انسانان دهغې ورځې نه چې راشي ورته عذاب نو وا یي به هغه کسان چې د حاکمیت حقاریٔ بل ځوک ګرځولی وو ،ای حاکمه زمونږ ! وخت راکړه مونږ ته لږ چې ومنو مونږ ستا دعوت او اتباع وکړو د رسولانو ـ ولی تاسو مخکې قسمونه نه خوړل په دې خبره چې نشته ستاسو لپاره زوال ـ

۲ ـ وَلَوْ أَنَّا أَهْلَكْنَاهُمْ بِعَذَابٍ مِنْ قَبْلِهِ لَقَالُوا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَذِلَّ وَنَخْزَى (۱۳۴طه) ـ او که چرې مونږ هلاک کړي وی دا خلق په څه عذاب باندې مخکې د رسول رالیګلو نه نو دوي به حتمًا داوئیل چې ای حاکمه زمونږ ! ولی نه رالیګلو مونږته تاځوک رسول چې مونږ ستا د حکمونو اتباع کړې وې زمونږ درانیول کیدو او درسوا کیدو نه مخکې.

۳ ـ وَلَوْلَا أَنْ تُصِيبَهُمْ مُصِيبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ فَيَقُولُوا رَبَّنَا لَوْلَا أَرْسَلْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا فَنَتَّبِعَ آيَاتِكَ وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ (۴۷القصص) ـ او که چرې راغلی وی په دوي باندې عذاب د دو ي د کړو په سبب ،نو وئیل به ئ ای حاکمه زمونږ !ولی نه رالیګلو تا مونږ ته ځوک رسول چې مونږ اتباع کړې وی ستاد قانون،او وی مونږه ایمان راوړونکي ستا په قانون ـ

په دې مذکوره آیتونو کې کافران د رسول هغه معنی بیانوي کومه چې په تیرشوي آیتونو کې الله تعالی بیان کړې ده یعني طاعت او اتباع ـ او د دغې نه انکار واحد سبب بیان کړی دی د اخروي ذلّت او دناکامئ ـ محض یو پیغام رسان او خبررسونکی او پیغمبر ته داوئیل چې تهٔ د الله په خبر رسولو کې رښتنی یې یا دروغژن،دامراد نه دي چې تعبیر ئ په تصدیق قلبي سره وشي ،او د اتباع یا د اطاعت تاویل دې په عمل سره وکړی شي ـ څنګه چې د داسې مأوّلینو واضحه حال دی ـ په حدیث شریف کې راځي چې د داسې تاویل به علماء ربانیین نفي کوي ـ

د رسول داذکر شوي معنی تیرشوي ټولو کافرانو ته منسوب ده ،ځکه چې په دې سره د ټولو کفرانو بهانه او عذر ختمول مقصد دی ـ چې مونږ ورته رسولان رالیګلي دي چې صبا دا اونه وایي: که رسول وی

نو مونږ به دهغهٔ او دالله دقانون اتباع کړې وه ، اوهم دغه مطلب او معنی د رسول صحیح جوړيږي یعني بغیر د اتباع نه چي قرآن ورته "طاعت معروفه" وئیلي دي محض تصدیق قلبي په باب دحاکمیت کې څه حقیقت نه لري. بلکه الله تعالی داسې دعوې ته په قسم سره وئیلي دي چې دادروغ دي: والله یشهد ان المنافقین لکذبون.

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوْمِهِ فَقَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ (۲۳المؤمنون). حضرت نوح علیه السلام اولنی نبي دی چې الله تعالی مبعوث کړی دی. هغه خپل قوم ته وایي: الله تعالی ستاسو حاکم مطلق او معبود مطلق دی، ددې به درنه تپوس کیږي. د نوح علیه السلام دخبرې مقصد دقوم حاکمانو او واکدارانو خپل ماتحت رعایا ته داسې وایي: فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ مَا هَٰذَا إِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُرِيدُ أَن يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَنزَلَ مَلَائِكَةً مَّا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ۲۴ إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ بِهِ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوا بِهِ حَتَّىٰ حِينٍ (۲۵). دنوح دخبرې مقصد یو دی او ښه واضح دی: دی په دنیا حکومت کول غواړي، په دی اساس چې حکومت دالله تعالی حق دی او هغهٔ ددې لپاره خپل نائب او خلیفه په زمکه کې نوح ګرځولی دی. لیکن داخبرې ځائ نه نیسي ځکه که داخبره رښتیاوی چې په انسانانو حکومت دالله تعالی حق دی، نو الله تعالی ب ملائک رالیګلي وو. ولی چې حکومت د زور شیئ دی، او دزورنه ثوک مخ نه شي اړولی. داخبره چې څومره په عقل باندې پوره ده، دغه شان په نقل هم سنبهال ده. ځکه مخکښینو خلقو حکومتونه په خپل جوړکړي قانون او آئین کړي دي او سرته ئ رسولي دي، دالله تعالی دقانون یاد حکومت خبرې مونږ دچانه نه دي اوریدلي. په دې آیتونو کې دنوح علیه السلام دعوت ښه واضحه دی خپل قوم ته وایي: اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ، او قوم دهغې معنی او مطلب په حکومت او په طاعت سره بیانوي. نوح علیه السلام الله تعالی دخپل قوم هم دغه ګیله کوي چې دوي ماحاکم نه مني او هغه خلق خپل حاکمان مني کومو چې ددوي په مال او پک اولاد لوبې وکړې: قَالَ نُوحٌ رَّبِّ إِنَّهُمْ عَصَوْنِي وَاتَّبَعُوا مَن لَّمْ يَزِدْهُ مَالُهُ وَوَلَدُهُ إِلَّا خَسَارًا (۲۱) وَمَكَرُوا مَكْرًا كُبَّارًا (۲۲) وَقَالُوا لَا تَذَرُنَّ آلِهَتَكُمْ وَلَا تَذَرُنَّ وَدًّا وَلَا سُوَاعًا وَلَا يَغُوثَ وَيَعُوقَ وَنَسْرًا (۲۳) وَقَدْ أَضَلُّوا كَثِيرًا وَلَا تَزِدِ الظَّالِمِينَ إِلَّا ضَلَالًا (۲۴ نوح). دنوح علیه السلام په قصه پسي دنورو ټولو نبیانو دعوت او دهغوي دامت جواب هم دنوح علیه السلام او دهغهٔ دامت په شان دی، یعني ځنګ چې دټولو نبیانو دعوت یو دي، هم دغه شان دامتونو جواب په دغې باب کې دی.

## ۴ - جزاء اوسزا

دالله تعالی دحکومت دوه مرحلې دي:

اوله مرحله دنیا ده، چي په دنیا کې دالله تعالی حق داسې ومنلی شي چې دفیصلې په وخت کې دالله تعالی قانون یعني وحي ته تحاکم وشي اوهرحاجت دالله تعالی نه بغیر دشفیع نه وغوښتلې شي ، که چا داسې وکړل نو مؤمن اوجنتي دی ،اوکه داسې ئ ونکړل نو کافراوجهنمي دی.

دالله تعالی دقانون دویمه مرحله آخرت دی ،په هغې کې به الله تعالی جزاء اوسزا عملي کوي،کومو خلقو چې دالله تعالی دحکومت په اولنې مرحله کې یعني په دنیا کې دالله تعالی قانون نه دی حاکم کړی یائ په حاجت کې شفیع ګرځولی دی ،دمشرکینو یا داهل کتابو په شان ، نودغه خلقو ته به الله تعالی عذاب ورکوي دجهنم، اوچاچې په دنیاکې دالله تعالی قانون حاکم کړې وو اوهرحاجت ئ بغیر دشفیع نه یواځې دالله تعالی نه غوښتلی وو په شان دصحابه کرامو ،نوالله تعالی به ورته جزاء ورکوي دجنت.

### دمشرکینو دقیامت نه دانکار معنی

مشرکینو دالله تعالی دحکومت ددویمې مرحلې یعني دآخرت نه هم انکار کولو.

داخبره دقرآن پاک نه پیژندل غواړي چې د مشرکینو دقیامت نه انکارپه څه معنی وو؟،آیا دوي دقیامت نه انکار په دی وجه کولوچې دوي دالله تعالی دقدرت نه منکروو ،چې الله تعالی قادر نه دی په بل ځل ژوندي کولو یابل څه ؟.

په باب د قدرت دالله تعالی کې دهغوي عقیده قرآن بیان کړی ده:

۱- قُلْ مَنْ يَرْزُقُكُمْ مِنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَمَّنْ يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ وَمَنْ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَمَنْ يُدَبِّرُ الْأَمْرَ فَسَيَقُولُونَ اللهُ فَقُلْ أَفَلَا تَتَّقُونَ (یونس ۳۱).

۲- وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ نَزَّلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهَا لَيَقُولُنَّ اللهُ قُلِ الْحَمْدُ لله بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ (۶۳ العنکبوت)، مشرکین په قسم سره وایي چې إحیاء بعد الإماتة الله تعالی کوي،اودا دالله تعالی صفت دی.

نوبیاددوي د "انکار من الآخرة "مطلب څه دی ؟.

قرآن کريم ددوي دآخرت نه انکار وضاحت داسې کړی دي :

١ ـ وَأَقْسَمُوا بِاللّٰهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللّٰهُ مَنْ يَمُوتُ بَلٰى وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ(٣٨ النحل)،
او مشرکين پاخه قسمونه کوي دالله په ذات او په صفاتو باندې چې نه به راپاڅوي الله تعالی هغه څوک چې مري ، ولی نه قسم کړی دی الله تعالی پوخ ،ليکن ډير خلق دا نه مني - قسم ذکر کول په کلام کې د دلائلو دقبيل نه دي ،چې په دې سره دخپلې دعوی اثبات مقصود وي ،الله تعالی هم په دې باندې قسم خوري او دبعث اثبات پرې کوي- لهذا دجانبينو نه په دې باندې قسم په طور د دليل وي- مشرکين په خپله دعوی کې دقدرت علی الاحياء نفي ني کوي دالله تعالی نه بلکه دفعل احياء نفي کوي کومه چې دهغوي عقيده ده -

٢ـ وَإِذَا قِيلَ إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَالسَّاعَةُ لَا رَيْبَ فِيهَا قُلْتُمْ مَا نَدْرِي مَا السَّاعَةُ إِنْ نَظُنُّ إِلَّا ظَنًّا وَمَا نَحْنُ بِمُسْتَيْقِنِينَ (٣٢ الجاثيه)، کله چې به اووئيلي شو چې دالله تعالی لوظ ثابت دی په دليل سره،او قيامت به حتمًا راځي، تاسو به وئيل:مونږ نه پيژنو قيامت څه څيز دی ،نه ګنړو مونږ داخبره مګر بی دليله او نه يو مونږ په دې يقين کونکي-

٣ـ وَأَنَّهُمْ ظَنُّوا كَمَا ظَنَنْتُمْ أَنْ لَنْ يَبْعَثَ اللّٰهُ أَحَدًا٧ الجن ، جِنات خپله دشرک عقيده بيانوي ،چې زمونږ دمشرکانو هم دانسانانو د مشرکانو په شان عقيده وه چې الله تعالی به چري هم يو تن نه ژوندی کوي-

٤ ـ زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنْ لَنْ يُبْعَثُوا قُلْ بَلٰى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ ثُمَّ لَتُنَبَّؤُنَّ بِمَا عَمِلْتُمْ وَذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيرٌ ٧ التغابن، کافران قسم کوي په دې خبره چې مونږ به نه راپورته کولی کيږو ،تۀ ورته اووايه: ولی نه ! زما دي قسم وي په رب زما !تاسو به ضرور راپاسولې کيږئ ،بيا به ستاسو نه تپوس کيږي دهغه څه چې تاسو کړي دي ، اد دا الله تعالی ته ډير آسان دي-

دی آيتونو داخبره واضحه کړه چې مشرکين دالله تعالی نه دقدرت علی الإحياء نفی نه کوي ،بلکه د فعل احياءنفی کوي-

په راروانو آيتونو کې ددې وضاحت دی چې دآخرت نه انکار دالله تعالی دحاکميت نه دانکار په سبب دي چې هغه حاکم نه دی لهذا هغه چاته په دې خبري سزا نه ورکوي-

١ ـ إِلَّا أَصْحَابَ الْيَمِينِ ٣٩، فِي جَنَّاتٍ يَتَسَاءَلُونَ ٤٠، عَنِ الْمُجْرِمِينَ ٤١، مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ ٤٢، قَالُوا لَمْ نَكُ مِنَ الْمُصَلِّينَ ٤٣، وَلَمْ نَكُ نُطْعِمُ الْمِسْكِينَ ٤٤، وَكُنَّا نَخُوضُ مَعَ الْخَائِضِينَ ٤٥، وَكُنَّا نُكَذِّبُ بِيَوْمِ الدِّينِ ٤٦ حَتَّى أَتَانَا الْيَقِينُ(٤٧ المدثر) ، جنتیان به د دوزخیانو نه تپوس کوي :تاسو جهنم ته ولی لاړئ؟ ،هغوي به وايي: مونږ دالله تعالی قانون په خپل بدن کې نه منلو ، په خپل مال کې مو نه منلو ، دالله تعالی حاکمیت مو کټ کنړلو ، مونږ د حساب کتاب او دبدلی دورځ تکذیب کولو تردي چې ښکاره شو مونږ ته دالله تعالی حاکم کیدل په سترګو۔ دقیامت نه انکار ئ د یوم الدین په لفظ سره وکړو ،مطلب دا چی الله تعالی حاکم نه دی چي سزا ورکړي۔

٢۔ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَأْتِينَا السَّاعَةُ قُلْ بَلَى وَرَبِّي لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَلَا أَصْغَرُ مِنْ ذَلِكَ وَلَا أَكْبَرُ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُبِينٍ ٣ لِيَجْزِيَ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَئِكَ لَهُمْ مَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ ٤ وَالَّذِينَ سَعَوْا فِي آيَاتِنَا مُعَاجِزِينَ أُولَئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مِنْ رِجْزٍ أَلِيمٌ ٥ وَيَرَى الَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ الَّذِي أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ هُوَ الْحَقَّ وَيَهْدِي إِلَى صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ٦ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَى رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ٧ أَفْتَرَى عَلَى اللهِ كَذِبًا أَمْ بِهِ جِنَّةٌ بَلِ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ فِي الْعَذَابِ وَالضَّلَالِ الْبَعِيدِ(٨ سبا ) ، کافران وايي :قیامت به نه راځي په مونږه( په جواب کې ئ دقسم لپاره صفت د رب راوړو ) یعني زما دې په خپل حاکم یعني دالله تعالی په حاکمیت قسم وي: قیامت به راځي ،ځکه الله تعالی حاکم دی، د خپل حق تپوس به کوي ۔ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا هَلْ نَدُلُّكُمْ عَلَى رَجُلٍ يُنَبِّئُكُمْ إِذَا مُزِّقْتُمْ كُلَّ مُمَزَّقٍ إِنَّكُمْ لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ ، اووئیل کافرانو: اوښایو تاسو ته داسې یو سړی چې هغه وايي تاسو ته: چې کله تاسو ټکړې ټکړې شئ ،تاسو به بیا پیدا کیږئ ، داخبره چی کوي نو په دی وجه نه چی دالله تعالی د قدرت نه منکر دي، ځکه ورپسی وايي: أَفْتَرَى عَلَى اللهِ كَذِبًا، دهٔ په الله تعالی باندی دروغ تړلي دي، یا سودائي دی۔ نه دروغ دي او نه لیونی دی خو هغه خلق چې په جزاء او سزا یعني دالله په حاکمیت ایمان نه لري ،په عذاب کې به وئ په آخرت کې،او په لرې کفر کې دي په دنیا کې ۔

ددې آیتونا نه داظاهره شوه مشرکین چې دقیامت نه انکار کوي نو دا په دی وجه چی دالله تعالی حاکمیت نه مني ،نه په دې وجه چې الله تعالی قادر نه دی۔

٣ ـ وَقَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِهِ الَّذِينَ كَفَرُوا وَكَذَّبُوا بِلِقَاءِ الْآخِرَةِ وَأَتْرَفْنَاهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا مَا هَذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يَأْكُلُ مِمَّا تَأْكُلُونَ مِنْهُ وَيَشْرَبُ مِمَّا تَشْرَبُونَ ٣٣ وَلَئِنْ أَطَعْتُمْ بَشَرًا مِثْلَكُمْ إِنَّكُمْ إِذًا لَخَاسِرُونَ ٣٤ أَيَعِدُكُمْ أَنَّكُمْ إِذَا مِتُّمْ وَكُنْتُمْ تُرَابًا

وَعِظَامًا أَنَّكُمْ مُخْرَجُونَ ٣٥ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ ٣٦ إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ (٣٧ المؤمنون) ـ

دلنه هم تصريح ده چې د قيامت نه د کافرانو انکار په دې وجه نه دی چې د الله تعالي د قدرت نه منکر دي ،ځکه وروسته وايي: إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ افْتَرَى عَلَى اللهِ كَذِبًا وَمَا نَحْنُ لَهُ بِمُؤْمِنِينَ (٣٨)، نه دي مګر يو سړي چې دروغ تړي په الله تعالی باندې، او مونږ دی خپل مشر او دا دروغ نه منو ـ

۴ ـ په سورة قيامه کې د مشرکينو د قيامت نه د انکار وجه دا ذکر ده:

أَيَحْسَبُ الْإِنْسَانُ أَلَّنْ نَجْمَعَ عِظَامَهُ ٣ بَلَى قَادِرِينَ عَلَى أَنْ نُسَوِّيَ بَنَانَهُ ۴، آيا دا کافر انسان دا ګمان کوي چې مونږ به ددهٔ هډوکي جمع نه کړو ـ ولې نه مونږ قادر يو ددهٔ په بندونو برابرولو باندې ـ بَلْ يُرِيدُ الْإِنْسَانُ لِيَفْجُرَ أَمَامَهُ ۵، "بل" د إضراب لپاره دی يعني دا انسان د الله تعالی د "قدرت جمع العظام" او "تسوية البنان" نه انکار نه کوي ،بلکه په دې اساس دی د قيامت نه انکار کوي، چې په دنيا کې د الله تعالی د قانون نه آزاد د خپلې مرضۍ ژوند تير کړي ـ

فجور د کفر په معنی دی لکه: اولئک هم الکفرة الفجرة ـ

۹ ـ وَقَالُوا أَإِذَا ضَلَلْنَا فِي الْأَرْضِ أَإِنَّا لَفِي خَلْقٍ جَدِيدٍ بَلْ هُمْ بِلِقَاءِ رَبِّهِمْ كَافِرُونَ (١٠ الم السجده).

د اولنۍ جملې نه دا معلوميږي چې دی د الله تعالی د قدرت نه انکار کوي ،خو وروستې جمله کې ددې نفي ده ،ځکه "بل" د إضراب لپاره دی معنی يې داده :چې د الله تعالی د قدرت نه انکار نه کوي ،بلکه حاکم ته د وړاندې کيدو نه انکار کوي يعني الله تعالی حاکم نه مني۔

د مشرکينو د قيامت نه د انکار وجه که دا اوګڼلی شي ي چې دوي د الله تعالی د قدرت يعني احياء بعد الموت نه انکار کوي نو پکار وه چې په قيامت کې ئ بيا د الله تعالی د دغې قدرت اقرار کړی وی ، حالانکه قرآن به وايي:

وَلَوْ تَرَى إِذِ الْمُجْرِمُونَ نَاكِسُو رُءُوسِهِمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ رَبَّنَا أَبْصَرْنَا وَسَمِعْنَا فَارْجِعْنَا نَعْمَلْ صَالِحًا إِنَّا مُوقِنُونَ، يعني په قيامت کې به کافران الله تعالی ته "ربنا" وايي ،او "ابصرنا وسمعنا" وايي چې مراد ترې اطاعت کول دي او اطاعت د حاکم وي ،حالانکه په دنيا کې ئ ترې انکار کولو ،چې مونږ ستا حکومت او بادشاهي

ولیدله ،او ومنله، لهذا دنیا ته مو واپس کړه چی نیک عمل وکړو یعني خپل حاکم دې ومنو ،ځکه بغیر دحاکمیت دعقیدې نه هیڅ عمل صالح نه شي کیدی ـ زمونږ دا یقین راغی چی تۀ حاکم ئ تپوس کونکی یی۔ وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ (١٦٥البقره) ، او که اوویني هغه خلق چې دالله تعالی حق یې نورو ته ورکړی دی په دنیا کې هغه عذاب چې ویني به یې په آخرت کې نو منلي به یې وو چې بیشکه حکومت یوا ځې دالله حق دی او بیشکه الله تعالی سخت عذاب ورکونکی دی.

١٠ـ أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا ذَلِكَ رَجْعٌ بَعِيدٌ (٣ق).

ددې آیت دظاهر نه هم دامعلومیږي چې مشرکین دالله تعالی دقدرت علي الاحیاء نه انکار کوي ،لیکن روستو ددې نفي ده : بَلْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ فَهُمْ فِي أَمْرٍ مَرِيجٍ، یعني دالله تعالی دقدرتِ احیاء نه انکار نه کوي بلکه أصل انکار دالله تعالی دحق حاکمیت نه دی۔

١١ـ فَلَوْلَا إِنْ كُنْتُمْ غَيْرَ مَدِينِينَ تَرْجِعُونَهَا إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ(٨٦الواقعه)، که تاسو ته سزا نه درکولی کیږي ،او دالله تعالی حساب کتاب ته نه وړاندی کولی شئ نو واپس کړئ مړ کیدونکي نفس که رښتوني یئ۔

١٢ـ أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَدِينُونَ(٥٣الصافات) ،بنه په تصریح سره وایي چی که مونږ مړۀ شو او ریزه ریزه شونو آیا الله تعالی به بیا هم مونږ ته دخپل حق حاکمیت دنه منلو سزا راکوي ؟ ،داسې نه وایي چی آیا الله تعالی مونږ دوباره ژوندي کولی شي کنه؟، نو عقیده دانکار من الآخرة ئ په باب دجزاء اوسزا کې ده ،چی الله تعالی حاکم نه دی، جزاء اوسزا نه ورکوي۔

دقرآن کریم دځه آیتونو نه دا اشتباه کیږي چې مشرکین قرآن دالله تعالی د قدرت احیاء بعد الموت نه منکر دي لکه: ذَلِكَ جَزَاؤُهُمْ بِأَنَّهُمْ كَفَرُوا بِآيَاتِنَا وَقَالُوا أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا وَرُفَاتًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا (٩٨) أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللَّهَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ قَادِرٌ عَلَى أَنْ يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ وَجَعَلَ لَهُمْ أَجَلًا لَا رَيْبَ فِيهِ فَأَبَى الظَّالِمُونَ إِلَّا كُفُورًا(٩٩الاسراء).

او : أَوَلَيْسَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ بِقَادِرٍ عَلَى أَنْ يَخْلُقَ مِثْلَهُمْ بَلَى وَهُوَ الْخَلَّاقُ الْعَلِيمُ (81) إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ (٨٢يس).

دداسې آیتونو په باره کې دا ضابطه یاد ساتل پکار دي:چې د قرآن کریم دا اسلوب دی چې مسلمات په ځائ د دلیل کې ذکر کوي چې دا مختلف فیه فیصله پرې وشي ،او دغه ذکرشوي مسلمات په شان دعلت دي یعني رواړه خصمین پرې متفق دي. ددې اتفاقي دلیل باوجود چې نتیجه اونه منلی شي نو دا په حقیقت کې یواځې دمختلف فیه او مدعی نه انکار نه دی بلکه ددی نه دانکار په وجه دمتفق علیه یعني د دلیل مسلم نه هم انکار دی چې په شان دعلت دی ځکه په علت او په معلول کې عقلًا تخلف ممنوع دی. لهذا دواړه امور به تسلیمولی کیږي چې دلیل او مدعی یعني علت او معلول دي، یا ددواړو نه به انکار کیږي. داسې نه شي کیدی چې یو تسلیم وي یعني علت او دلیل، او بل تسلیم نه وي یعني معلول او مختلف فیه. ددې وجې نه په قرآن پاک کې دکفارو دالله تعالی دحاکمیت نه انکار کله په صورت دقدرت نه د انکار کې وي او کله په صورت د نتیجې نه. په دې آیتونو کې اولنی صورت دی.

۱۳۔ وَقَالُوا أَإِذَا كُنَّا عِظَامًا وَرُفَاتًا أَإِنَّا لَمَبْعُوثُونَ خَلْقًا جَدِيدًا ۴۹ قُلْ كُونُوا حِجَارَةً أَوْ حَدِيدًا ۵۰ أَوْ خَلْقًا مِمَّا يَكْبُرُ فِي صُدُورِكُمْ فَسَيَقُولُونَ مَنْ يُعِيدُنَا قُلِ الَّذِي فَطَرَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ فَسَيُنْغِضُونَ إِلَيْكَ رُءُوسَهُمْ وَيَقُولُونَ مَتَى هُوَ قُلْ عَسَى أَنْ يَكُونَ قَرِيبًا ۵۱ يَوْمَ يَدْعُوكُمْ فَتَسْتَجِيبُونَ بِحَمْدِهِ وَتَظُنُّونَ إِنْ لَبِثْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا (۵۲ الاسراء).

په دې آیتونو کې تفصیل دی۔ کافرانو دبعث نه انکار وکړو چې دهډوکي کیدو اوخاورې کیدو نه روسته به څنګه ژوندي کیږو۔ په جواب کې ورته اووئیلی شو که تاسو ددې نه هم زیات متغیرشئ ، تر دې چې اجزاءحیواني یوهم باقي پاتی نه شي ،بلکه اصلِ انساني هم درنه ورک شي یعني خاوره پاتی نه شي ،بلکه ګټه یا وسپنه شي یاددې نه هم یوبل سخت څیز شي ،چې ستاسو عقل ورته رسي۔ نودوي به وایي: څوک به مونږ ژوندي کوي په دویم ځل ؟۔ تهٔ اووایه: هغه څوک چې اول ئ پیدا کړي وئ۔ نوتاته به سرونه ټیټ کړي ، یعني کله چې ته داحیاء بعد الموت نسبت الله تعالی ته وکړی نو دهغې نه به انکار اونه کړي ځکه چې ددې تعلق دقدرت سره دی او دکفارو په عقیده کې اله تعالی په هرڅه قادر دی.
لیکن بیائ هم نه مني نو وایي به : دا به کله وي ؟، استفهام انکاري دی چې دانه منو ۔ تهٔ اووایه: کیدی شي چې زر اوشي۔ څه وخت چې تاسو راوبلي ،نوتاسو به جواب ورکوئ دهغه د بلدې په حمد سره. دلته دحمدنه مراد علت مع المعلول دي ، یواځې قدرت یعني علت نه دی ، ځکه علت هغوي په دنیا کې هم منلو خو معلول یعني خکومت یي نه منلو .او په یقین سره به وایئ : نه یو پاتې شوي په دنیا کې مګرډیر کم۔

حاصل د څلور واړو خبرو دا دی چي مشرکین د الله تعالی د تشریعي حاکمیت نه منکر دي، لهذا د تشریعي حکومت څلور واړه پاي نه مني، د الله تعالی حاکمي نوم "رحمن " نه مني، قانون ئ "وحې "نه مني، رجال قانون "انبیاءکرام "نه مني ، دجزاءاوسزا ورځ قیامت نه مني۔

## دقرآن پاک دموضوع خلاصه

قرآن پاک فیصله کوي په مینځ د دری ډلو کې: مؤمنین ،مشرکین ، اهل کتاب۔

ددوي اختلاف دی په دی خبره کې ،چی دانسانانو درب جوړیدو حقدار څوک دی ؟

سورۂ حج دا اختلاف په دی الفاظو سره ذکر کړی دی : هٰذَانِ خَصۡمَانِ اخۡتَصَمُوا فِي رَبِّهِمۡ الایه(۱۹) ، او سورۂ صافات کې د "رب " په ځائ " إله " دی:إِنَّهُمۡ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمۡ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ يَسۡتَكۡبِرُونَ (۳۳)۔ پس "إله " او "رب " مترادف دي۔معنی ئ ده حاکم، او حاکم هغه څوک وي چې حکومت کوي ۔

حکومت عبارت دی د څلوررو څیزونو نه:

۱. حاکمي نوم

۲. قانون

۳. رجال قانون

۴. جزاءاوسزا

په دې خاطر چې مشرکین الله تعالی تشریعي حاکم نه مني نو د الله تعالی حاکمي نوم " رحمن " نه مني، قانون "وحی " نه مني، رجال قانون "انبیاء کرام " نه مني، جزاء او سزا "قیامت "نه مني۔

د انبیاء علیهم السلام په دعوت کې که د دې څلورو خبرو نه د یوی خبرې ذکر وشي او که د ډیرو ، په هرصورت کې د غه دعوت د الله تعالی د حاکمیت دی چې عبارت دی د څلورو امورو نه ، لهذا په هرډول به دا څلوروا ړه خبرې مراد اخستل کیږي. انبیاء علیهم السلام ورته د دې د منلو دعوت ورکوي او کومه چی اتفاقي عقیده ده یعني د الله تعالی ذات،ذاتي نوم ،صفات، او افعال مني نود دی ورته انبیاء علیهم السلام دعوت نه ورکوي.

دالله تعالی دصفاتو حاصل دوه خبری دي:۱. علم کامل ،۲. قدرت کامل،د قدرت کامله دوه جانبه دي : ۱. جانب ایجاب ،۲. جانب سلب. په دنیا کې دالله تعالی حکومت دقدرت په جانب ایجاب سره دی چی هغه رحمت دی ،یعنی په دنیا کې الله تعالی په ځان باندی رحمت لازم کړي دي ،اوددی لزوم رحمت په وجه الله تعالی خپل حاکمي نوم "رحمن "کیخودی دی. او د دغه لزوم رحمت د وجې نه دهغهٔ قانون یعني قرآن کریم او ټوله وحي هم رحمت دی : وَإِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِنَا فَقُلْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ (۵۴ الانعام). هم دغه شان د هغهٔ د قانون رجال هم په رحمة للعالمين سره ملقب دي: وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ(۱۰۷ الانبياء).

په قیامت کې به د الله تعالی حکومت په جانب سلب او په جانب ایجاب دواړو سره وي خو سلب به غالب وي.

# د عبادت بیان

اوس مونږ دمشرکینو دویمه غلطه عقیده بیانوو ،چی هغه په باب دعبادت کې ده.

مشرکینو چی څنګه دالله تعالی په حاکمیت کې شرک کولو نو همدغه شان ئ دالله تعالی په عبادت کې هم شرک کولو ،فرق دومره وو چی دالله تعالی دتشریعي حاکمیت نه ئ کلّی انکار کولو ، په دی ئ تعجب کولو :أجعل الآلهة إلها واحدا إنّ هذا الشيئ عجاب (ص ۵) ، یعني دا دعقل نه لری خبره ده چی دټولو انسانانو به یو حاکم وي .مَا سَمِعْنَا بِهَذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هَذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ (ص ۷) ، دا خبره دنقل نه هم خلاف ده

، دائ دځان نه په الله دروغ جوړ کړي دي ـ دا به ئ بد ګڼل چې الله تعالی ته دحکومت تشریعي نسبت وکړی شي ، په دې به ئ انبیاءعلیهم السلام ته ضالّ، سفیه، ساحر، مفتری ، کذّاب او مجنون وئیل- او په دې انداز به ئ دهغۀ تکذیب کولو

لهذا دټولو مشرکینو دا یوه عقیده وه چې الله تعالی د تشریعي حاکمیت حقدار ه نه دی، بلکه د تقنین او د تشریعي حکومت حق انسان ته حاصل دی ـ

او په باب د عبادت کې ئ عقیده دا سې وه: عبادت دالله تعالی حق دي ،یعني مشکل او حاجت پوره کونکی الله تعالی دی، لهذا حاجت به د الله تعالی نه غوښتلی کیږي ـ

## دعبادت تقسیم

خو په دیکې ئ د شیطان په لمسه سره تقسیم کړی دی، تفصیل ئ دادی: مافوق الاسباب مشکل یاحاجت په دوه قسمه دي: ۱ـغټ حاجت ، ۲ـ وړوکی حاجت ـ

## د وړوکي حاجت تعریف

وړوکی حاجت هغه دي کوم چې انسان ته پیښیږي ددۀ په عادي ژوند کې، یا په آباد وطن کې، لکه اولاد ، رزق،صحت ، عزت ، باران ـ ددې تعبیر قرآن په بأساء او ضرّاء سره کوي ،نور تعبیرونه ئ هم شته ـ

## دغټ حاجت تعریف

غټ مشکل یاغټ حاجت هغه دي چې انسان ته دعادي ژوند نه علاوه پیښیږي، لکه په ځنګل کې ،یا په سمندر کې په جهاز کې طوفان راګیر کړو ـ قرآن ددی تعبیر په "ظلمات البر والبحر" سره کوي، نور تعبیرات ئ هم شته ـ او بعض تعبیرات ددی دواړو حاجتونو مشترک هم دي ،په سیاق وسباق یا په قرائنو سره به ئ تعیین کیږي ـ

مشرکینو به غټ حاجتونه دالله تعالی نه بغیر د شفیع نه براه راست غوښتل، په دی عقیده چی حاجت پوره کونکی الله تعالی دی ،ځکه هغه قدیر اوعلیم دی۔ او واړه حاجتونه یعني عادي ژوند کې مافوق الاسباب حاجتونه به ئ هم دخپلی عقیدی مطابق دالله تعالی نه غوښتل خو په واسطه د شفیع سره ۔

په بأساء ضراء کې شیطان دهوکه کړي وو ، هغه داسې :چی ګوره !حاجت روا اومشکل کشا یوائی الله تعالی دی ،لیکن دا حاجت چی الله تعالی ته مخی ته کوئ نو د شفیع په واسطه سره ئ کوئ۔ او په دی ئ ورته دوه دلیلونه وئیلي وو :

۱۔ په دنیا کې رواج دی چې هرسړی بادشاه ته نه شي رسیدی ،بلکه دهغهٔ څه مقرّب خلق وي ،دهغوي په واسطې سره هغهٔ ته رسي۔ چی یو عام بادشاه ته څوک خپل حاجت براه راست نه شئ وړاندی کولی ،د هغه دعظمت په وجه، نو الله تعالی چې په تکویني امورو کې احکم الحاکمین دی ،هغهٔ ته څنګه خپل حاجتونه بغیر د شفیع نه وړاندی کوئ؟، آیا الله تعالی تاسو دعام بادشاهانو نه هم کم وګنړلو ؟۔

۲۔ یو مجرم په جرم کېی ونیولی شو ، اوس دا مجرم به ځان له پخپله دخلاصی سفارش کوي ؟،اوکه یو داسی څوک چی مجرم نه وي ،اودحاکم مقرّب وي؟ نو یقینًا دامقرّب به ورله سفارش کوي، نو مونږ ټول مجرمان اوګنهګاریو ، سره ددی نه خپل حاجت الله تعالی ته براه راست وړاندي کول دا بی ادبي ده، لهذا د نیکانو خلقو په واسطه باندي الله تعالی ته خپل حاجت پیش کول غواړي ،چی الله تعالی دهغوي نه راضي وي.

دا دوه دلیلونه ورته شیطان دوړوکي حاجت دغوښتلو په باب کې ښودلي وو ،اوهغوي ته ئ په قناعت ورکړی وو۔

دیته دتقریب عقیده ، دولایت عقیده، دشفاعت عقیده وایي۔ قرآن ددوي دا عقیده په دې الفاظو سره بیان کړی ده:

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ مَا لَا يَضُرُّهُم وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللهِ قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّمٰوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالٰى عَمَّا يُشْرِكُونَ (۱۸یونس).

او حاجت غواړي مخکې دالله نه دهغه چا نه چې ددوي په عقيده کې هم نافع او ضار نه دي ـ وَيَقُولُونَ هؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللهِ، دا په خپله دغير الله نه دخپل حاجت غوښتلو مطلب بيانوي، چې دا نيکان خلق چې مونږ ترې حاجت غواړو ، زمونږ سفارشيان دي الله تعالى ته ـ

اوس آيا دا سفارشيان څه اختيار او استطاعت لري دحاجت پوره کولو ؟ :

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِنَ السَّموَاتِ وَالْأَرْضِ شَيْئًا وَلَا يَسْتَطِيعُونَ (٨٣النحل) .

ددوي هم دا عقيده ده چې زمونږ دا شفعاء نه پخپله دڅه مالکان دي ،او نه ئ دا وس شته چې دالله تعالى نه ئ راواخلي او مونږ ته ئ راکړي ـ يعني دا يوائې شفعاء دي ،دڅه مالکان نه دي ـ نو ددوي څه کار دی ؟ :

وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِنْ دُونِهِ أَوْلِيَاءَ مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلى اللهِ زُلْفى الايه (٣ زمر) ، او هغه خلق چې را نيوي مخکې دالله تعالى نه کارجوړونکی، وايي: مونږ دوي ته خپل حاجتونه نه وړاندي کوو ، مګر ددی لپاره چې دوي زمونږ حاجتونه الله تعالى ته مخکې کړي ـ

"زلفى " مفعول مطلق من غير لفظه دی دتقريب دتاکيد لپاره چې زمونږ مقصد دشفيع نه يوائې الله تعالى ته نزدی والی دی ،بل څه نه ـ

حاصل دا چې مشرکين دعادی ژوند او واړۀ حاجتونه يعني په بأساء او ضرّاء کې دالله تعالى نه مدد غواړي دشفاعت ،او دتقريب ،او د ولايت په عقيده سره ، اوکوم چې غټ حاجتونه دي يعني ظلمات البروالبحر ، نو په هغی کې دوي هيڅ قسم شفيع يا ولی الله تعالى ته نه مخی ته کوي، بلکه براه راست ئ دالله تعالى نه غواړي :

هُوَ الَّذِي يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ حَتّى إِذَا كُنْتُمْ فِي الْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِمْ بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ وَفَرِحُوا بِهَا جَاءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ وَجَاءَهُمُ الْمَوْجُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ دَعَوُا اللهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ لَئِنْ أَنْجَيْتَنَا مِنْ هذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ (٢٢يونس) ، کله چې دا مشرکين سمندری سفر کوي، او طوفان راشي ،دسمندر چپې شروع شي ، او ددوي دا يقين شي چې اوس راګيرشو ،غرقيږو ،نو چغې وهي الله تعالى ته، حاجت غواړي دالله تعالى نه په داسی حال کې چې خالص کونکي وي الله تعالى ته چغه او حاجت، دإخلاص مطلب دا چې په مينځ

کې شفيع نه نيوي، د الله تعالى سره لوظ کوي په قسم سره ،که ددې مصيبت نه تامونږ اوويستلو ،نو مونږ به ستا حق منو حاکميت اوعبادت. مشرکينو باندې چې داحالات راځي نوداتکويني دلائل دي دالله تعالى دطرفه. دامستقل قسم دی د دلائلو دتوحيد نه ،دلته دوي پخپله خله چغه وباسي چې مونږ منو دالله تعالى حق. بعينه داسي واقعه دنبي عليه السلام په وخت کې راغلي وه دعکرمه بن ابی جهل سره، دهغهٔ د ايمان راوړو په واقعه کې ذکر دي، څنګ چې عکرمه رضی الله عنه لوظ کړی وو دالله تعالى سره، دغه شان مشرکين هم لوظ کوي: **لنکونن من الشاکرين**، مونږ به دالله تعالى حق پوره ومنو. فَلَمَّا أَنْجَاهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ، کله چې ورته الله تعالى ددغې غټې مشکل نه نجات ورکړي ،او وطن ته په خير ورسي، نودوي بيا په ملک او په ښارکې بغاوت شروع کړي په ناحقه يعني په آباد ژوند کې په مافوق الاسباب حاجتونو کې حاجت په واسطه دشفيع سره دالله نه غواړي او دوحې عقوبات نه حاکم کوي.

## عناوينِ مختلفه براۓ حاجاتِ مختلفه

**دغټ حاجت په قرآن کې مختلف عنوانات دي.**

۱. "**ظلمات البر والبحر**" : قُلْ مَنْ يُنَجِّيكُمْ مِنْ ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُونَهُ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً لَئِنْ أَنْجَانَا مِنْ هَٰذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ(٦٣ الانعام)، دلته تعبير په "ظلمات البر والبحر" سره دی. قُلِ اللَّهُ يُنَجِّيكُمْ مِنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ أَنْتُمْ تُشْرِكُونَ(٦٤)، "منها "کې ضمير "ظلمات البر و البحر" ته راجع دی ، او "کلّ کرب " نه واړهٔ حاجتونه مراد دي، يعنی الله تعالى خو هرقسمه حاجتونه پوره کوي نوتاسو ولې په وړو حاجتونو کې واسطې لټوئ؟، الله تعالى ورته ددوي د "ظلمات البروالبحر" عقيده په دليل کې پيش کوي ، چې دلته تاسو واسطه نه جوړوئ نو په نوروحاجتونو(بأساءضرّاء)کې هم واسطه مه جوړوئ ،ځکه الله تعالى ته خو ټول حاجتونه برابر دي. چې کله يو حاجت دانساني وس نه باهر شو ، نو دا مافوق الاسباب وګرځيدو ،نوبيا پکې فرق کول څه معنى ؟. قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلَىٰ أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِنْ فَوْقِكُمْ أَوْ مِنْ تَحْتِ أَرْجُلِكُمْ أَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَيُذِيقَ بَعْضَكُمْ بَأْسَ بَعْضٍ انْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْآيَاتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُونَ (٦٥الانعام).

تهٔ ورته اووايه: په دی عادي ژوند کې هم الله تعالى قادر دی چې په تاسو عذاب راولي.

۲. "ضرّ" وَإِذَا مَسَّ النَّاسَ ضُرٌّ دَعَوْا رَبَّهُمْ مُنِيبِينَ إِلَيْهِ(٣٣الروم) ، دلته ئ غټ تکليف ته "ضُرّ" اووی.

۳ ـ "الضر " وَإِذَا مَسَّ الْإِنْسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنْبِهِ أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهُ مَرَّ كَأَنْ لَمْ يَدْعُنَا إِلَى ضُرٍّ مَسَّهُ كَذَلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلون (۱۲یونس) ، دلته ئ ورته " الضرّ "معرف باللام اووی ـ

۴ ـ "عذاب شدید" حَتَّى إِذَا فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ بَابًا ذَا عَذَابٍ شَدِيدٍ إِذَا هُمْ فِيهِ مُبْلِسُونَ (۷۷المؤمنون) ، دلته ئ ورته "عذاب شدید " اووی ـ

۵ ـ لَا يَسْأَمُ الْإِنْسَانُ مِنْ دُعَاءِ الْخَيْرِ وَإِنْ مَسَّهُ الشَّرُّ فَيَئُوسٌ قَنُوطٌ (۴۹حم السجده) ، دعاءالخیر په حالت دظلمات البروالبحر کې غواړي ـ "الشرّ " ددې نه وړوکی تکلیف مراد دی، په دیکې دوي بیا دالله تعالی نه ناامیده شي او واسطی لټوي ـ

۲ ـ "ضراء " وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ رَحْمَةً مِنَّا مِنْ بَعْدِ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ هَذَا لِي وَمَا أَظُنُّ السَّاعَةَ قَائِمَةً الایه(۵۰ حم السجده)، دلته ئ غټ تکلیف تي "ضراء " وئیلي دي ـنولفظ د "ضراء " مشترک شو په مابین د غټ او وړوکي کې ، فرق به په قرائنو سره کیږي ـ

۷ ـ " الشر " وَإِذَا أَنْعَمْنَا عَلَى الْإِنْسَانِ أَعْرَضَ وَنَأَى بِجَانِبِهِ وَإِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُو دُعَاءٍ عَرِيضٍ (۵۱حم السجده)، اوکله چې مونږ انعام وکړو په دی انسان باندې یعني دغټ تکلیف نه ورته نجات ورکړو نو دی دخپل لوظ نه اعراض کوي، اوپه بأساء او ضرّاء کې د الله تعالی نه په ډډه شي ،براه راست نه غواړي، اوکله چې ورته غټ تکلیف ورسي نو الله تعالی ته غټې غټې چغې وباسي،دلته ئ غټ تکلیف ته "الشر " وئیلي دي ـ

۹ ـ" عذاب الله ،الساعه" قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللَّهِ أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللَّهِ تَدْعُونَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ (۴۰الانعام) ، دلته ئ ورته "عذاب الله "او "الساعة " اووی، په دیکې بیا د دوي نه خپل شفعاء هیر وي ـ خازن لیکي: دغه شفعاء به ئ سمندر ته ارتاؤ کړل ،چی په اخلاص کې څه فرق رانشي ـ

**د وړوکي حاجت لپاره عنوان**

۱ . وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلَى أُمَمٍ مِنْ قَبْلِكَ فَأَخَذْنَاهُمْ بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ ۴۲ .فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُمْ بَأْسُنَا تَضَرَّعُوا وَلَكِنْ قَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ( ۴۳الانعام) ، الله تعالی فرمایي مونږ په دوي باندي بأساء

ضراء مشکلات راوستل ، چی دالله تعالی نه براه راست مدد اوغواړي، څنګه ئ چې لوظ کړی وو ، لیکن ددوي زړونه سخت شول، اودشفیع نه یې حاجتونه غوښتل د شیطان په لمسه سره ـ

وَمَا أَرْسَلْنَا فِي قَرْيَةٍ مِنْ نَبِيٍّ إِلَّا أَخَذْنَا أَهْلَهَا بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَضَّرَّعُونَ ٩٤ ثُمَّ بَدَّلْنَا مَكَانَ السَّيِّئَةِ الْحَسَنَةَ حَتَّى عَفَوْا وَقَالُوا قَدْ مَسَّ آبَاءَنَا الضَّرَّاءُ وَالسَّرَّاءُ فَأَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ (٩٥ الاعراف)،او نه دی لیږلی مونږ په هیڅ ښار کې یو نبي مګر رانیولي دي مونږ دهغې ښار واکداران په بأساء او ضراء کې لپاره ددی چې دوي الله تعالی ته عاجزي وکړي. بیا مونږه بدل کړو بد حال په ښه حال ، تردی چې ډیر شول او وايي یقینًا دا حالات زمونږ په پلارانو هم راغلي وو ، نو ونیول مونږ یودم ، او دوي ته نه وو څه خبر.

یعني وخت په وخت الله تعالی په خلقو ښه اوبد حالات راولي، هر پیغمبر خپل امت ته دعوت ورکړی دی ،چی په ښاري ژوند کې په بأساءضراء کې هم دالله تعالی نه داسې وغواړئ لکه په ظلمات البر والبحر کې ،نودوي به دنبیانو دعوت رد کړلو لپاره دخپل پلار نیکه عقیده په طور د دلیل بیانوله چې هغوي څنګ کول مونږ به هم هغه شان کوو۔ لکه په نورو ځایونو کې په "وجدنا آباءنا " سره دا جواب مذکور دی۔

"بأساء " خارجي مشکل ،لکه: ددښمن ویره ـ "ضرّاء "بدني یاداخلي مشکل،لکه: مرضونه آفتونه۔

وَإِذَا مَسَّكُمُ الضُّرُّ فِي الْبَحْرِ ضَلَّ مَنْ تَدْعُونَ إِلَّا إِيَّاهُ فَلَمَّا نَجَّاكُمْ إِلَى الْبَرِّ أَعْرَضْتُمْ وَكَانَ الْإِنْسَانُ كَفُورًا(٦٧ الاسراء).

کله چې په سمندر کې په تاسو مشکل راشي نوبیا درنه شفعاء هیر شي،یوائې یو الله تعالی ته چغه وباسي، خوکله چی الله تعالی درته ددی نه نجات درکړي ،او ښاري اوعادي ژوند ته مو په عافیت سره واپس کړي نوبیا اعراض وکړئ د هغه لوظ نه کوم چی دالله تعالی سره تاسو کړی وو دغې مشکل په وخت کې چی تئ مونږ ددې نه اوباسه مونږ به ستا پوره حق ومنو۔

### دمشرکینو ددلیل جواب

مشرکینو چې دالله تعالی دطرف نه په راغلي تکلیف کې کوم تقسیم دشیطان قبول کړی دی ،په هغې ورته الله تعالی سخته زورنه ورکوي ،اوددغه تقسیم اودلیل ئ په مسلم دلیل سره ابطال کړی دی ، دمشرکینو دهغې صحیح عقیدې په اساس چې دهغوي او دانبیاءعلیهم السلام په مینځ کې شریکه ده۔

**داولني دليل ابطال**: فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ (۷۴)، مه تطبيق کوئ په الله تعالی باندی خپل جوړکړي مثالونه ځکه چې الله تعالی علم لري او تاسو علم نه لرئ. دشفيع داثبات لپاره چې په دليل کې ددنيا دبادشاهانو کوم مثال ذکر کيږي ،غلطه دی، ځکه په دی سره ئ الله تعالی ددنيا په بادشاهانو قياس کړی دی او دا قياس غلط دی ،ځکه ستاسو هم داعقيده ده چه الله تعالی په هرڅه عليم دی ، او دهغه علم کامل دی يعني الله تعالی بی اسبابو علم لري ،او انسان نه دهرشي علم لري او نه دانسان علم کامل دی، نود رعايابادشاه ته واسطه لټول په دی خاطر دي چې بادشاه دهر شي علم نه لري، او دادنقص علامت دی ،چی د رعايادحاجتونو بادشاه ته علم نشته ،نودبادشاه دبی علمی دوجې رعايا مجبوره وي چې واسطه اختيار کړي. او الله تعالی خو ستاسو په نزد هم علم کامل او قدرت کامله لري: وَلَئِنْ سَأَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ لَيَقُولُنَّ خَلَقَهُنَّ الْعَزِيزُ الْعَلِيمُ (۹الزخرف)،نوتاسو څنګ کامل علم والا په ناقص علم والا باندی قياس کوئ؟.

**دعلم کامل او علم ناقص تعريف**

علم کامل هغه علم دی چی مافوق الاسباب وي ،اودخطأ احتمال نه لري.

علم ناقص هغه علم دی جې ماتحت الاسباب وي، او احتمال دخطأ لري.

دمشرکينو ددليل دابطال نه روستو الله تعالی دوه مثالونه ذکر کړي دي ، اولنی مثال دقدرت او دويم مثال دعلم دی.

**مثالِ اول لپاره دقدرت** : ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا عَبْدًا مَمْلُوكًا لَا يَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ وَمَنْ رَزَقْنَاهُ مِنَّا رِزْقًا حَسَنًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ سِرًّا وَجَهْرًا هَلْ يَسْتَوُونَ الْحَمْدُ لِلَّهِ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُونَ (۷۵النحل).

دامثال دقدرت دی، حاصل ئ دادی: چی دوه انسانان دي، يو غلام دی مملوک دی ، يعني په شان دڅاروی اخستلی کيږي او خرڅولی کيږي ، په هيڅ شي قدرت هم نه لري ، نه د خه دی او نه د بدي. اوبل هغه انسان دی جې مونږه ورته ډير رزق ورکړی دی او هغه دهغې نه خرڅ کوي هم په پټه هم په ښکاره. آيا دی دواړه برابر دي ؟، ټول تعريفونه خاص دي دالله سره ،خواکثر ددوي نه نه مني. دا دواړه انسانان په صفت دمخلوق کې برابر دي، مالداري اوغريبي يو عارضي صفت دی، زائل کيدی هم شي،بدليدی هم شي، خو بيا هم دادواړه برابر نه شي کيدی. اوداخبره مسلم ده چې دالله تعالی قدرت کامله دی ، بل څوک ددی خاوند نشته ،نو بيا څنګ تاسو الله تعالی قياس کوئ په مخلوق باندی؟، "بل " دإضراب

لپاره دی، یعني د الله تعالی سره دغه صفت خاص مني، خو بیا هم د الله تعالی حق نه مني ،یعني علت منئ او معلول نه منئ دې ته ضدا و عناد وئیلي کیږي-

وَضَرَبَ اللهُ مَثَلًا رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا أَبْكَمُ لَا يَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ وَهُوَ كَلٌّ عَلَى مَوْلَاهُ أَيْنَمَا يُوَجِّهْهُ لَا يَأْتِ بِخَيْرٍ هَلْ يَسْتَوِي هُوَ وَمَنْ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَهُوَ عَلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (٧٦ النحل).

دامثال دعلم لپاره دی چې دوه سړي دي ،یو دهغوي نه چاړا دی ، او کوڼ هم دی ، دانفي ده دعلم داسبابو ،په دی سره په نفي کې مبالغه مقصودده ،ځکه چې د سبب په نفي سره مسبب هم نفي کیږي ، معنی داشوه: د سره علم ورسره نشته ،او نه امکان لري دعلم- ددي سره سره په څه قادر هم نه دي، ځکه قدرت موقوف وي په علم باندی، نوچی علم منتفی شو نو قدرت هم منتفی شو- آیابرابر دي داسړی او بل هغه څوک چی قدرت او علم ورسره دي- أمر چی کوي نو قدرت به ئ وي، عدل چه کوي نو علم به ورسره وي، او پخپله به په صراط مستقیم باندی وي،داجمله دماقبل لپاره علت دی ،یعني فیصله په عدل ځکه کوي چې دالله تعالی په قانون ئ کوي-

وَلِلَّهِ غَيْبُ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ، دا دالله تعالی دعلم بیان دی،چی دالله تعالی علم کامل دی ،یعني مافوق الاسباب دی- حاصل د مثال داشو چی په انسانانو کې یو بی علم او بی قدرت وي، اوبل علم لري دا دواړه نشي برابرکیدی، نو الله تعالی خو علم کامل او قدرت کامله لري، هغه څنګ دناقص علم والا په شان شو؟ او څنګ ئ تاسو په بی علم مخلوق قیاس کوئ؟ -وَمَا أَمْرُ السَّاعَةِ إِلَّا كَلَمْحِ الْبَصَرِ، دا د الله تعالی دقدرت بیان دی-

**ددويم دلیل ابطال** :دویم دلیل ورته شیطان دا وئیلی وو چی مجرم خپله خبره پخپله نه شي کولی، خوامخوا به ځان له څوک غیر مجرم ګوري.ددی دلیل جواب هم الله تعالی په مختلف طریقو سره کړی دی : قُلْ يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللهِ إِنَّ اللهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ (۵۳زمر)، په توبه سره الله تعالي ټول ګناهونه معاف کوي- وأنيبوا الى ربكم وأسلموا، دقیامت نه مخکې دځان اصلاح وکړئ ، لکه یو شاعر وايي :

بازآ بازآ هر آن چه کردی بازآ | گر کافر و گبر وبت پرستی بازآ

این درگهی مادر گهی نو اُمیدي نیست | صد بار اگر توبه شکستی بازآ

-------------

## ترادف په مینځ د "دعاء" او د "عبادت" کې

دعبادت مترادف الفاظ دعاء، نداء، او تضرّع استعمال شوي دي په قرآن پاک کې :

۱ ـ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُو مِنْ دُونِ اللهِ مَنْ لَا يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَنْ دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ ٥ وَإِذَا حُشِرَ النَّاسُ كَانُوا لَهُمْ أَعْدَاءً وَكَانُوا بِعِبَادَتِهِمْ كَافِرِينَ(٦ الاحقاف).

دهغه نه بل لوي کافر نشته څوک چې حاجت غواړي مخکې دالله تعالی نه ،دهغه چانه چې نه شي پوره کولی حاجت دغوښتونکي دقیامت دورځې پورې اوهغوي ددوي دغوښتلو نه بې خبره دي -او کله چې راجمع کړی شي انسانان ،وي به شفعاء ددی مشرکانو دښمنان او شفعاء ددوي دعبادت نه انکار کوي

دمشرکانو هم داعقیده ده چې شفعاء علم او قدرت دحاجت پوره کولو نه لري- په اولنې آیت کې دوه ځله لفظ ددعاء استعمال شوی دی-او په دویم آیت کې دي چې دقیامت په ورځ به شفعاء ددی نه انکار کوي.

که عبادت او دعاء مترادف ن شي نو د بې معنی کیدلو په وجه کلام فاسد یږي-

۲ ـ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ (٦٠المؤمن).

په دی آیت کې اول أمر د دعاء دی-اوورپسې وعید ذکر دی په انکار د عبادت باندی ، که عبادت اودعاء په یو معنی نه شي نو پوره آیت دفساد معنی په وجه فاسد یږي-

۳ ـ قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ لَمَّا جَاءَنِيَ الْبَيِّنَاتُ مِنْ رَبِّي وَأُمِرْتُ أَنْ أُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ(٦٦ المؤمن).

دلته هم که عبادت اودعاء مترادف نه شي، نو دمشرکینو یو اعتراض جوړیدی شي چی تهٔ دعبادت نه منع کړی ئ، اومونږ خو ئ عبادت نه کوو بلکه دعاء یعنی حاجت تری غواړو ،اوددی نه خو ئ تهٔ منع کړی نه ئ ، نو داآیت لغو کیږي-

۴ ـ وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ وَأَدْعُو رَبِّي عَسى أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّا۴۸ فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ وَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا(۴۹ مريم).

په اولني آيت کې لفظ ددعاء استعمال دی ،او په وپسې آيت کې لفظ دعبادت استعمال دی ،نودلته هم که دعاء او عبادت په يوه معنی نه شيي نو دمخکې آيتونو په شان فساد دمعنی راځي - ددی نه هم معلومه شوه چی عبادت اودعاء په يو معنی دي.

**۵** : عن النعمان بن بشير رضی الله عنهم قال قال النبی صلی الله عليه وسلم : ان الدعاء هو العبادة ،ثم قرء : ادعونی استجب لكم ،( رواه احمد واصحب السنن ) ـ

داحديث شريف هم تفسير دقرآن دی ، اوهم مستقل دی په بيان د "ترادف بين الدعاءوالعبادة "کې ـ او داترادف په جمله اسميه مؤکده په "إنّ" سره بيا شوی دی ـ دتاويل څه ګنجائش په کې نه پاتې کيږي ـ مزيد داچې دا قاعده ئ مؤيده ګرځولی ده په قرآن سره ـ نو داحديث په درې امورو مشتمل دی:

۱ـ بيان مستقل يا قاعده کليه ، ۲ـ تفسير الکتاب بالسنة ،۳ـ تأييد القاعدة البينة بالکتاب ـ

فماذا بعد الحق الا الضلال ـ فبأی حديث بعد الله وآياته يؤمنون ـ

## ترادف په مينځ د "عبادة" او د "نداء" کې

د "عبادت " اود "دعاء "په ځائ لفظ د "نداء " هم استعمال شوی دی :

۱ ـ وَنُوحًا إِذْ نَادى مِنْ قَبْلُ فَاسْتَجَبْنَا لَهُ فَنَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيمِ (۷۶ الانبياء) ـ

۲ ـ وَأَيُّوبَ إِذْ نَادى رَبَّهُ أَنِّي مَسَّنِيَ الضُّرُّ وَأَنْتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ (۸۳الانبياء).

۳ ـ وَذَا النُّونِ إِذْ ذَهَبَ مُغَاضِبًا فَظَنَّ أَنْ لَنْ نَقْدِرَ عَلَيْهِ فَنَادى فِي الظُّلُمَاتِ أَنْ لَا إِلهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِينَ (۸۷الانبياء).

۴ ـ وَزَكَرِيَّا إِذْ نَادى رَبَّهُ رَبِّ لَا تَذَرْنِي فَرْدًا وَأَنْتَ خَيْرُ الْوَارِثِينَ (۸۹ الانبياء).

په دې څلورو واړو ځايونو کې دالله تعالى نه دحاجت غوښتلو لپاره لفظ د "نداء" راغلى دي ـ او په آيت ۹۰ کې الله تعالى دټولو پيغمبرانو په باره کې فرمايي : إِنَّهُمْ كَانُوا يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَيَدْعُونَنَا رَغَبًا وَرَهَبًا وَكَانُوا لَنَا خَاشِعِينَ ،دلته لفظ د "يدعون "دى ،چې دوي ټولو حاجت زما نه غوښتلو ـ معلومه شوه چې "دعاء" او "نداء" په يو معنى دي ،مترادف دي ـ

## ترادف په مينځ د"دعاء" او د "تضرع" کې

"تضرّع" هم استعمال شوى دى په معنى د "دعاء":

قُلْ أَرَأَيْتَكُمْ إِنْ أَتَاكُمْ عَذَابُ اللهِ أَوْ أَتَتْكُمُ السَّاعَةُ أَغَيْرَ اللهِ تَدْعُونَ إِنْ كُنْتُمْ صَادِقِينَ ۴۰ بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُونَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ إِنْ شَاءَ وَتَنْسَوْنَ مَا تُشْرِكُونَ (۴۱ الانعام).

په دى دواړو آيتونو کې لفظ د "دعاء" درې ځله دى. او په وروسته دوه آيتونو کې لفظ د "تضرع" استعمال شوى دى: وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا إِلى أُمَمٍ مِنْ قَبْلِكَ فَأَخَذْنَاهُمْ بِالْبَأْسَاءِ وَالضَّرَّاءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُونَ ۴۲فَلَوْلَا إِذْ جَاءَهُمْ بَأْسُنَا تَضَرَّعُوا وَلكِنْ قَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطَانُ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ(۴۳)، اويقينًا مونږ ليګلي دي ستانه مخکې امتونو ته ،چې مونږ راولو په دوي باندې غم اوضرر چې دوي مونږ ته فرياد وکړي ، يعني زمونږ نه حاجت وغواړي بغير د شفيع نه ـ کله چې راشي په دوي باندى غم،نو دوي ولى مونږ ته عاجزي نه کوي، يعني ولې براه راست حاجت نه غواړي ؟ـ نو اول دوه آيتونو کې لفظ د "دعاء "دى او وروسى په دوه آيتونو کې لفظ د "تضرّع "نو ددى معلومه شوه چى د ادواړه هم متراف د دي اوپه يو معنى دي ـ

دامذکور ترادف بين الكلمات الاربعه په اعتبار د اصطلاح دقرآن سره دى ـ مزيد داچې په دې کلمات اربعه کې د ترادف سره بعض د بعض نه څه امتياز لري ـ مثلًا "عبادت" او "دعاء" دواړه په معنى دحاجت غوښتلو دي مګر "عبادت" دقلب سره او "دعاء "او "نداء" د ژبې سره تعلق لري ـ او "تضرّع "د ژبې سره سره د مخ او د نورو اعضاو سره هم تعلق لري ـ

فائده: د "تضرّع" نه علماؤ تعبير په "تذلل "سره هم کړى دى، چى دعبادت معنى "تذلل" ده،بعض وايي: "غاية التذلل" ده، بعض وايي: "أقصى غاية التذلل "ده، بعض ورسره "قصدًاوارادةً" هم اضافه کوي يعنى بالاختيار تذلل ته عبادت وئيلي کيږي، دازائد الفاظ ټول صفات کاشفه دي دتذلل دمعنى

لپاره ، ځکه تذلل باب تفعّل دی، مبالغه ده پکې، نو دمبالغی معنی ده "غاية التذلل"، اوقصد واراده هم شته په باب تفعّل کې۔

حاصل دا چی عبادت،دعاء،نداء،تضرّع الفاظ مترادفه دي ،اوپه یو معنی دي ،یعني حاجت غوښتل۔

**انتباه!**

شیخ الاسلام إمام ابن قیم رحمه الله تعالی په "مدارج السالکین "کې دعبادت معنی کړی ده :

العبادة عبارة عن الاعتقاد والشعور بأن للمعبود سلطة غيبية يقدر بها على النفع والضرر فكل دعاء وثناء ينشأ من هذا الاعتقاد فهي العبادة۔

حاصل ئ دادی چی د داعی دا اعتقاد وي چی زۀ دچا نه غواړم هغۀ ته قدرت حاصل دی دحاجت پوره کولو ،نوپه دی عقیده چی کومه غوښتنه،ثناء وي نودا به ددغه مدعو عبادت وي۔لیکن دقرآن نه دا خبره ظاهره معلومه ده چی دمشرکینِ قرآن په عقیده کې دا خبره نه وه، لهذا د ابن قیم رحمه الله دبیان کړي تعریف صحیح مصداق اومحمل به داشي چی دا تعریف ئ دخپل دور دمشرکینو په اعتبار سره کړی دی چی دهغوي داعقیده وه چی دامدعو قادرعلی النفع والضرردی،دنن دور دمشرکینوهم دا سي عقیده ده ، پخواني مشرکین چې د انزال وحي په وخت کې وو چې مشرکینِ قرآن ورته وايو ،هغوي مؤحدين في الاسم والذات والصفات والافعال وو ، اود دی وخت مشرکین شرک في الصفات والافعال هم کوي۔

دا خبره هم یاد ساتل پکار دي ،چی دمشرکین قرآن په وخت کې بعض دا سې عقیدې والا ملاویږي چی دهغه عقیده به دنن دور دمشرکینو په شان وي، اوتاریخ هم دغه خلق ذکر کړي دي، لیکن کوم چی مشرکین قرآن دي، اود انبیاؤ مخاطب خلق دي نو دهغوي عقیده دغه ده کومه چی مونږ په تفصیل سره بیان کړه، هم په باب دعبادت کې اوهم په باب دحاکمیت کې۔

## دعبادت معنی

**دعبادت دوه معنې دي:**

۱۔ په قرآن پاک کې دعبادت يوه معنی ده: مافوق الاسباب حاجت غوښتل، ددې مترادف دعاء، نداء او تضرع دي۔ که دا حاجت دا الله تعالی نه وغوښتلی شي نو دا الله تعالی عبادت شو ،او داعين توحيد دی. اوکه دغېرالله نه وغوښتلی شي نو دغېرالله عبادت شو او داشرک دی۔

۲۔ قرآن کريم دعبادت يو ه بله معنی هم ذکر کړې ده ، نبی عليه السلام دغه معنی په داسی انداز سره ذکرکړی ده چی دانبياء عليهم السلام ، اوداهل کتابو ،اودمشرکينو اتفاق ئ په ثابت کړی دی ، هغه داسې چې حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه داهل کتابو نه دی ،هغه اول نصرانی وو ، دغه شان نور صحابه کرام هم ناست دي، چی اول مشرکين وو ،نبی عليه السلام هم موجوددی ، نودا دری ډلې په دي معنی دعبادت باندی متفق دي ـوضاحت د هغې معنی دا دی:

اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ(۳۱ التوبة)، ددې نه مخکې آيت کې ديهود ، نصاری اومشرکينو ددرې واړوذکر دی ،سره د دوي ديوې عقيدې نه ،هغه داچي: يهوديان عزيرعليه السلام ته "ابن الله" وايي۔ نصرانيان عيسی عليه السلام ته "ابن الله" وايي، په دی عقيده کې دوي ديوبل نه جدادي۔ اوپه دی آيت کې د اهل کتابو دبلې عقيدې ذکر دی چې په هغې کې دوي يودي ـنوددې آيت معنی داشوه: نيولي دي يهوديانو ، او نصرانيانو خپل عالمان اومليان حاکمان دا الله تعالی په مقابل کې ،او نصرانيانو په دی صفت عيسی عليه السلام هم نيولی دی (چی په هغهٔ ئ دروغ جوړ کړي وو ،ددې دروغو تفصيل په سورهٔ مائده آيت ۱۱۲ نه تر آيت ۱۱۹ پورې دی ) ۔

ددی آيت په تفسيرکې درې روايتونه منقول دي ،دوه روايتونه دعدی رضی الله عنه نه منقول دی ،اويو روايت دحذيفه رضي الله عنه نه:

۱۔ عن عدی بن حاتم رضی الله عنه قال أتيت النبی صلی الله عليه وسلم وفی عنقی صليب من ذهب فقال ياعدی!إطرح عنک هذا الوثن وسمعته يقرء سورة البراءة وقال :إتخذوا أحبارهم ورهبانهم أربابا من دون الله الايه ،اماإنهم لم يکونوا يعبدونهم ولکنهم کانوا اذا أحلوا لهم شيئا إستحلوه واذا حرموا شيئا حرموه ـ(رواه الترمذی)۔

عدی رضی الله عنه فرمايي : زۀ راغلم دنبی علیه السلام خواته ،اوزما په غاړه کې د سرو زرو صلیبي غاړکۍ وه، نبی علیه السلام ماته وفرمائیل: ای عدی !لرې کړه دا بُت دځان نه ـ اوما واوریدل چی سورۀ توبه ئ تلاوت کولو ، نودا آیت ئ ولوستو:اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ(۳۱ التوبه)ـ نیولي دي دی خلقو ملیان او عالمان خپل حاکمان، دالله په مقابل کې، نونبی علیه السلام وفرمائیل :ځان پوهه کړئ !دی خلقو ددوي نه حاجت نه غوښتلو ، لیکن داکار به ئ کولو چی مشرانو به ورله څه قانون جوړ کړولپاره دکولونود هغی پابندي به ئ کوله ،او که دیوڅیز دمنعی قانون به ئ ورته جوړ کړو ،نو دهغی پابندي به ئ کوله، یعنی داهل کتابو په وخت کې احبار اورهبان عبارت وو د اولس مشر او دپارلمان نه ځکه چې واکداران وو ،چه دوي دمحصن زاني دآسماني سزا په مقابل کې چې رجم وو ،قانون سازي وکړه ،اوعام اهل کتابو ورسره ومنله،دا ددوي هغه شرک دی چې په دی ئ مداومت کړی دی ، او داشرک په تحکیم کې دی چې مترادف ئ طاعت دی ـ نودحدیث په تصریح سره د عبادت معنی طاعت اوحکمبرداري شوه ـ اود حاجت غوښتلو په باب کې دوي دائمي شرک نه دی کړی ـ لږ وخت ئ د خسي عبادت کړی وو ، بیا ئ توبه وباسلې وه او الله تعالی معاف کړي دي۔ نو په باب دعبادت کې په اهل کتابو کې خصوصًا په یهودو کې څوک مشرک نه دي پاتی۔ او قصه د خسي په وخت دیهودو کې پیښه شوې وه۔

۲: وعنه قال أتیت النبی صلی الله علیه وسلم وفی عنقی صلیب من ذهب فقال :یاعدی! اطرح هذاالوثن من عنقک فطرحته فأنتهیت الیه وهو یقرأ سورة البراءة فقرء هذه الایة : اتخذوا الایه حتی فرغ منهافقلت :إنالسنانعبدهم قال: ألیس یحرمون ماأحل الله فتحرمونه ویحلون ماحرم الله فتستحلونه ،قلت :بلی قال :فتلک عبادتهم ـ (المعجم الکبیر للطبراني)۔

حضرت عدی رضی الله عنه فرمايي: نبی علیه السلام صحابه کرامو ته سوره برآءت لوستلو ،دا آیت ئ اووی: اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ،تردي چې ددې نه فارغ شو ـ ماورته اووی: چرته هم مونږ دهغوي عبادت نه دی کړی ـ دعدی رضی الله عنه ذهن ته چی دعبادت دلفظ نه کوم مطلب راغی یعني مافوق الاسباب حاجت غوښتل ،دهغې په اساس ئ اووی چی مونږ خو دهغوي عبادت نه دی کړی۔ نبی علیه السلام وفرمائیل:

دهغوي تقنين يعني تحليل او تحريم تاسو منلى ووكه نه؟،ما وئيل اؤ ، داكار مونږ کړی وو ـ نبي عليه السلام وفرمائيل:هم داعبادت دی دهغوي ـ

۳ـ عن حذيفة رضى الله عنه فى قول الله عزوجل :اتخذوا احبارهم ورهبانهم الايه قال :اماإنهم لم يكونوا يعبدونهم ولكنهم أطاعوهم فى المعاصى ،( شعب كبير للبيهقي)ـ

دعبادت دامعنى دعدى رضى الله عنه په علم کې نه وه ځکه چې دډير وخت نه دعلم خاوندانو ددې نه ډډه کړې وه بلکه پټه کړې ئ وه ،لکه چې په دې حاضر وخت کې څنګه حال دی ، دنبى عليه السلام يعني دوحې په تعليم سره دصحابه رضي الله عنهم ته معلومه شوه ـ هم دغه قصه ددې امت سره شوې ده،چې دعبادت معنى فقط حاجت غوښتل کوي ـ دعبادت معنى حکم اوطاعت ئ زړۀ ته نه پريوځي ـ دا دابليس تلبيس او تزيين دی ـ اوهغه په دې کې پوره کامياب شوی دی ـ فألى الله المشتكى ـ

دسورۀ توبه ددی آيت په تفسيرکې د نبي عليه السلام نه په دوه حديثونو کې دعبادت معنى تحريم وتحليل يعني دقانون اطاعت نقل شوه ـ دغه شان دصحابي نه هم دامعنى منقول ده ـ نو دعبادت معنى طاعت اوتحاکم په قرآن او حديث او په قول دصحابي سره ثابته ده ـ

کله چې داخبره په نصوصِ قرآنيه او په احاديثِ نبويه او په اقوالِ صحابه سره ثابته شوه چې عبادت په قرآني اصطلاح کې په دوه معنو دی: ۱. حکم منل ،۲. حاجت غوښتل ـ نو دلفظِ عبادت معنى به په قرآني آيتونو کې دسياق وسباق او دقرائنو مطابق حکم منل اوحاجت غوښتل دواړه اخستى کيږي ـ لکه مثلًاکه انبياءعليهم السلام دعوت ورکوي قوم ته :يقوم اعبدوا الله ـ نومعنى به ئ داوي: ای زماقومه !الله تعالى خپل حاکم ومنئ ـ ځکه انبياء عليهم السلام خپل قومونو ته دالله تعالى دحق دعوت ورکوي او دالله تعالى حق عبارت دی دحکومت او عبادت نه، چې اصل اومقدّم په کې حکومت دی ـ

دحديث عدي بن حاتم نه بله خبره داهم معلومه شوه چې نبى عليه السلام په دې آيت ۳۰ د سوره توبه کې د "رب "او د "إله" اود "عبادت" دهغې معنى نفي وکړله کومه چې دلغت نه معلومه ده ،او دعام اوخاص په ذهن کې راسخه ده ،او ژبې په هغې اموخته دي ـ حاصل داچې دسورت توبه د آيت ۳۰ ،او ددرې احاديث مبارکه په رڼاکې دعبادت معنى به په اعتبار دسياق وسباق سره کله په طاعت سره کيږي اوکله په حاجت غوښتلو سره ـنوکله چې سياق وسباق کې ذکردمشرکينو ووپه شفيع نيولو سره

نو "حاجت غوښتل" معنی به ئ وي ، کنه د عبادت معنی به حکم وي او د إله او د رب معنی به حاکم وي
-

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ (۵۶الذريات) کې د سياق و سباق په اعتبار سره معنی د حکم مناسب ده ، ځکه مخکې ترينه مضمون د حاکميت دی: فَفِرُّوا إِلَى اللهِ إِنِّي لَكُمْ مِنْهُ نَذِيرٌ مُبِينٌ ، وَلَا تَجْعَلُوا مَعَ اللهِ إِلَهًا آخَرَ إِنِّي لَكُمْ مِنْهُ نَذِيرٌ مُبِينٌ كَذَلِكَ مَا أَتَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا قَالُوا سَاحِرٌ أَوْ مَجْنُونٌ ، أَتَوَاصَوْا بِهِ بَلْ هُمْ قَوْمٌ طَاغُونَ ، فَتَوَلَّ عَنْهُمْ فَمَا أَنْتَ بِمَلُومٍ ، وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَى تَنْفَعُ الْمُؤْمِنِينَ -

**دشفاعتِ قهري عقيده -** مشرکين په باب د عبادت کې د خپلی عقيدی د شفاعت اظهار دا سی کوي:

وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ وَيَقُولُونَ هَؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِنْدَ اللهِ قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ فِي السَّموَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى عَمَّا يُشْرِكُونَ (۱۸يونس)- وَيَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَهُمْ رِزْقًا مِنَ السَّموَاتِ وَالْأَرْضِ شَيْئًا وَلَا يَسْتَطِيعُونَ (۷۳النحل)- مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللهِ زُلْفَى (۳ زمر) ، مونږ حاجت نه غواړو ددوي نه مګر په دی خاطر چې دوي مونږ الله ته نزدې کوي ، باقي حاجت زمونږ الله پوره کوي، ددی شفعاؤ په لاس کې هيڅ اختيار نشته، او نه په زوره د الله تعالی نه زمونږ حاجت پوره کولی شي ، يعنی د شفاعت قهري نه وو قائل -

انبياء کرام چې دوي ته دعوت ورکوي نو ورته وايي: حاکميت تشريعي د الله تعالی حق دی، او هرقسمه حاجت د الله تعالی نه براه راست غوښتل د الله تعالی حق دی، که وړوکی حاجت وي او که غټ، په دليل کې ورته ددوي د غه صحيح عقيده وړاندی کوي چې تاسو د الله تعالی ذاتي نوم الله ،ذات،صفات او افعال منئ نو د الله تعالی حق هم ومنئ يعنی تکويني حکومت د الله تعالی منئ ، نو تشريعي حکومت هم د الله تعالی و منئ يعني الله تعالی على الاطلاق حاکم و منئ، که تشريعي حکومت د الله تعالی نه منئ او دي: أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ (۱۱۵المؤمنون) ، الله .تکويني منئ نو دا نه منل د تعالی فرمايي آيا تاسو دا عقيده لرئ چې زۀ خالق يم او د تپوس حق نه لرم، يعنی تاسو زما حاکميت تکويني منئ او تشريعي نه منئ - فَتَعَالَى اللهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ ۱۱۶، تاسو چې الله تعالی په کوم صفت منئ نو الله تعالی ددی نه اوچت دی - وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَقَّ قَدْرِهِ - دوي د الله تعالی عزت نه کوي څنګ چې پکار دی ، ځکه چې دوي وايي الله نه دي نازل کړي هيڅ قانون په يو انسان باندې - که الله تعالی خالق منئ او تشريعي حاکم ئ نه منئ نو دا دعوی د منلو ددوي باطله ده.

## دالله تعالی حق

ټول کائنات چې عبارت دي دمکين او دمکان نه ،الله تعالی پيدا کړي دي لپاره دخپل حق۔ دمکان تعلق دحق دا ثبات او داظهار سره دی ،يعني دانسان نه علاوه څومره مخلوق په نظر راځي ،دا دالله تعالی دحق پيژندلو او دمنلو لپار په حيثيت د دليل پيدا دي۔ قرآن پاک ددې دلائل عقليه نه ډک دی۔ او انسان چې ددې کائنات مکين دی ،ددهٔ تعلق دالله تعالی دحق منلو سره دی۔يعني الله تعالی انسان پيدا کړی دی ددې لپاره چې دالله تعالی حق وپيژني ،ومني او عملي کړي۔ او ددې لپاره چې څنګه الله تعالی داکائنات دليل ګرځولی دی چې ورته عقلي او تکويني دليل وايي ، همدغه شان الله تعالی دخپل حق دمنلو لپاره انسان ته دانسان د جنس نه په معجزو سنبهال رسولان راليګلي دي۔ يعني څنګه چې داکائنات او ددې هرڅيز په دې خبره باندې دلالت کوي چې الله تعالی په خپلو بندګانو باندې حق لري۔ دغه شان انبياء عليهم السلام هم دالله تعالی ددغې حق راوړونکی او مستقل دليل دی۔ اول قسم دلائل لپاره داثبا ت دالله تعالی دحق دي ،او دويم قسم داثبات سره دابلاغ دحق لپاره دي۔هم ددې وجې نه د "الحق" ذکر په "با " سره کيږي ، که د دلائل تکوينيه سره ذکر شي او که د رسولانو سره۔ داول لپاره لفظ دخلق استعمال شوی دی او د دويم لپاره مجيئ يا د اتيان نه صيغې استعمال شوي دي :

۱۔ وَمَا خَلَقْنَا السَّموٰاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَإِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ فَاصْفَحِ الصَّفْحَ الْجَمِيلَ(۸۵ الحجر).

۲۔ وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ ۱۶ لَوْ أَرَدْنَا أَنْ نَتَّخِذَ لَهْوًا لَاتَّخَذْنَاهُ مِنْ لَدُنَّا إِنْ كُنَّا فَاعِلِينَ ۱۷ بَلْ نَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَى الْبَاطِلِ فَيَدْمَغُهُ فَإِذَا هُوَ زَاهِقٌ وَلَكُمُ الْوَيْلُ مِمَّا تَصِفُونَ (۱۸ الانبياء).

۳۔ وَمَا خَلَقْنَا السَّموٰاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لَاعِبِينَ ۳۸ مَا خَلَقْنَاهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ(۳۹ الدخان).

۴۔ وَخَلَقَ اللهُ السَّموٰاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ وَلِتُجْزَى كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ (۲۲ الجاثية).

۵۔ مَا خَلَقْنَا السَّموٰاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَجَلٍ مُسَمًّى وَالَّذِينَ كَفَرُوا عَمَّا أُنْذِرُوا مُعْرِضُونَ (۳ الاحقاف).

۶۔ أَمْ لَمْ يَعْرِفُوا رَسُولَهُمْ فَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ ۶۹ أَمْ يَقُولُونَ بِهِ جِنَّةٌ بَلْ جَاءَهُمْ بِالْحَقِّ وَأَكْثَرُهُمْ لِلْحَقِّ كَارِهُونَ (۷۰ المؤمنون).

۷۔ بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِالْحَقِّ وَإِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ (۹۰ المؤمنون).

۸۔ بَلْ جَاءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِينَ(۳۷ الصافات)۔

## دالله تعالی دحق تفصیل اوترتیب

دالله تعالی په انسان باندې دوه حقه دي:۱۔ حکومت یعني عقوبات ،تحلیل ،تحریم، ۲۔ عبادت، په دې دواړو کې اصل حاکمیت دی۔

## دالله تعالی دوه حقونه په قرآن کې

۱۔ أَبْصِرْ بِهِ وَأَسْمِعْ مَا لَهُمْ مِنْ دُونِهِ مِنْ وَلِيٍّ وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا(۲۶ الکهف).

داصحاب کهف دواقعی نه روسته دنتیجې په طور الله تعالی دې امت ته داخبره کوي چې دانسانانو لپاره دالله تعالی نه علاوه بل څوک حاکم او واکدار نشته،اونه الله تعالی په خپل حاکمیت کې بل څوک شریک کوي۔ په دې آیت کې ددې دواړو خبرو صراحت دی چې په انسانانو حکومت کول خاص دالله تعالی حق دی ، اوپه دې کې دځان سره څوک نه شریک کوي ۔

دې ته په اصطلاح کې "نفي الشرک فی الحکم "وایي۔

قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ فَمَنْ كَانَ يَرْجُو لِقَاءَ رَبِّهِ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَالِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِ أَحَدًا (۱۱۰)، اووایه ته ای محمد ! بیشکه زهٔ انسان یم ستاسو په شان ماته وحي شوي ده چې ستاسو حاکم یو حاکم دی، څوک چې دالله تعالی دحاکمیت عقیده ساتي نوهغه به دخپل حاکم په عبادت کې څوک شریک نه جوړوي ۔

دې ته په اصطلاح کې "نفي الشرک فی العبادة "وایي۔ ورسره ئ ددې خبرې تصریح وکړله چې دحاکمیت عقیده أصل ده دعبادت لپاره۔

۲ : قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَكُمَا ذَلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ۳۷ وَاتَّبَعْتُ مِلَّةَ آبَائِي إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ مَا كَانَ لَنَا أَنْ نُشْرِكَ بِاللَّهِ مِنْ شَيْءٍ ذَلِكَ مِنْ فَضْلِ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ۳۸ يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۳۹ مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ(۴۰ یوسف)۔

په دې آيتونو کې الله تعالی د يوسف عليه السلام په ذريعه سره په حواله د تمام انبياء عليهم السلام خپل دوه حقونه بيانوي، سره د ترتيب نه ،او په هريو حق کې د شرک نفي کوي.

د اولني آيت حاصل دا دی : ما دهغوي دين پريخودی دی کوم خلق چې الله تعالی حاکم نه مني . دويم آيت: او تقليد مې کړي دي د خپل پلارانو د دين چې ابراهيم او اسحاق او يعقوب عليهم السلام دي ، مونږ انسانانو ته هيڅ گنجائش نشته چې مونږ د الله تعالی سره څه شريک کړو .د الله تعالی سره څوک نه شريک کول د الله تعالی حق دی په مونږ باندې او په ټولو انسانانو باندې ،ليکن اکثر انسانان د الله تعالی دا حق نه مني . دريم آيت: ای زما د جيل ملگرو !آيا ډير حاکمان چې جدا کيدونکي دي د الله تعالی د قانون نه ،دوي حقدار ه دي د حکومت، او که الله تعالی ؟، چې يو اځې دی ،غلبه لرونکی دی . په دې آيت کې ئې د مصر د خلقو اولنئ عقيده ذکر کړله ،چې د الله تعالی په مقابل کې ئې انسانان په صفت د حاکم او مقنن نيولي دي ،حالانکه په مسلم دليل او په علت سره دا خبره ثابته ده چې دا حق د الله تعالی دی .څلورم آيت: نه غواړئ تاسو د مصر خلق حاجتونه خپل په بأساء او ضراء کې مگر په واسطه د شفعاو چې گرځولي دي تاسو او ستاسو پلارانو ، نه دی ورکړی الله تعالی د دې اجازت ، تاسو دواړه حقونه د الله تعالی غصب کړي دي ، صحيح عقيده دا ده چې حکومت علی الاطلاق د الله تعالی حق دی ، دغه حاکم دا حکم کړی دی چې تاسو حاجت يو اځې د دغه حاکم نه غواړئ ، بس هم دغه مجموعه صحيح دين دی ،ليکن ډير خلق د دې نه بی خبره يعني منکر دي .

۳: د دی سورت په آخر کې الله تعالی نبی عليه السلام ته أمر کوي : قُلْ هٰذِهٖ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللهِ عَلَى بَصِيرَةٍ أَنَا وَمَنِ اتَّبَعَنِي وَسُبْحَانَ اللهِ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُشْرِكِينَ (۱۰۸ يوسف). تهٔ اعلان وکړه: زما هم دغه عقيده ده کومه چې د يوسف عليه السلام او دهغهٔ د پلار ابراهيم ،اسحاق او يعقوب عليهم السلام ده ،او هم دغه زما د صحابؤ عقيده ده،او هم دغه عقيدې ته خلق رابلم په حجت او په دليل سره.

وروستې آيت کې الله تعالی فرمايي: وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ إِلَّا رِجَالًا نُوحِي إِلَيْهِمْ مِنْ أَهْلِ الْقُرَى (الايه ۱۰۹) .

يعني د هر نبی د وحې موضوع هم دا عقيده ده چې الله تعالی علی الاطلاق حاکم او علی الاطلاق معبود دی.

۴۔ سوره النحل هم دا الله تعالی دوه حقه بیان کړي دي :وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ فَمِنْهُمْ مَنْ هَدَى اللهُ وَمِنْهُمْ مَنْ حَقَّتْ عَلَيْهِ الضَّلَالَةُ فَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ فَانْظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ (٣٦ النحل)۔

او یقینًا په هر امت کې مونږ رسول لیګلی دی چې دا الله تعالی حکم ومني او دطاغوت نه ځان وساتي ، پس څه خلقو ته الله تعالی ددی دمنلو توفیق ورکړو ،او څه خلق هغه شو چې کفر پرې ثابت شو ، پس وګرځئ په دې ښارونو کې او وګورئ څه انجام شوی دی دهغوي چې نه دی منلی دا الله تعالی حق.

دطاغوت معنی حضرت عثماني رحمه الله دحضرت عبد القادر رحمه الله په حواله سره کوي:

*"الطاغوت" ۔ "ہڑ دنگا"۔ حضرت شاہ صاحب فرماتے ہیں ہڑ دنگا وہ جو ناحق سرداری کا دعوی کرے اور کچھ سند نہ رکھے۔ ایسے کو طاغوت کہتے ہیں بت، شیطان اوزبردست ظالم سب اسمیں داخل ہیں۔ (تفسیر عثمانی)۔*

۵ : سورة الانعام هم دا الله تعالی دوه حقه ذکرکړي دي ؛ ۱ ۔ حق دحکومت:قُلْ أَغَيْرَ اللهِ أَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ أَوَّلَ مَنْ أَسْلَمَ وَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ١٣ قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ (١٤) ۔۲۔حق دعبادت : وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (١٧)۔

۶: سورة النمل هم دا الله تعالی دوه حقه ذکرکړي دي :إِنَّمَا أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ رَبَّ هٰذِهِ الْبَلْدَةِ الَّذِي حَرَّمَهَا وَلَهُ كُلُّ شَيْءٍ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ( ٩١ ) ، نبي علیه السلام په حصر سره وايي چې ماته دوه امرونه شوي دي،اول امر دمکې دمالک دعبادت او دويم دهغه دحکمبرداری ۔وَأَنْ أَتْلُوَ الْقُرْآنَ، اوهم دغه دواړو حقونو ته په دعوت مکلف کړی شوی یم۔

۷ : سورۂ زمرهم دوه حقه بیانوي : قُلْ إِنِّي أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ اللهَ مُخْلِصًا لَهُ الدِّينَ وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُونَ أَوَّلَ الْمُسْلِمِينَ ١١ قُلْ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ (١٢)۔

۸۔ سوره المؤمن هم دا الله تعالی دوه حقونه بیان کړي دي : قُلْ إِنِّي نُهِيتُ أَنْ أَعْبُدَ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ لَمَّا جَاءَنِيَ الْبَيِّنَاتُ مِنْ رَبِّي وَأُمِرْتُ أَنْ أُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ (٦٦).

**۹ . مشرکین هم دالله تعالی دوه حقه ذکر کوي :چې مونږ ته الله تعالی په دواړو حقونو کې اجازت راکړی دی** :سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا أَشْرَكْنَا وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَيْءٍ كَذَلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتَّى ذَاقُوا بَأْسَنَا قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوهُ لَنَا إِنْ تَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ أَنْتُمْ إِلَّا تَخْرُصُونَ(۱۴۸ الانعام) .

۱۰. وَقَالَ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ مَا عَبَدْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ نَحْنُ وَلَا آبَاؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ دُونِهِ مِنْ شَيْءٍ كَذَلِكَ فَعَلَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَهَلْ عَلَى الرُّسُلِ إِلَّا الْبَلَاغُ الْمُبِينُ(۳۵ النحل) .او مشرکین وایي :که الله تعالی راضي نه وی نو مونږ به نه غوښتل خپل حاجتونه دهغهٔ نه مخکې د څه نه مونږه او نه زمونږه پلارانو ، اونه به مونږه تقنین کړي وو د څه شیي دهغهٔ نه سیوا ،همدغه عقیده ده ددوي نه د مخکینو خلقو ، نو نه دی کار درسولانو مګر رسوَل دالله تعالی دحقونو په دلیل سره .

**۱۱.اهل کتابو ته هم ددوه خبرو دعوت ورکړی شوی دی** : قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ٦(۴ال عمران)،اووایه ای پیغمبر !ای اهل کتابو !راشئ هغه خبرې ته چې مونږ اوتاسو په هغې کې یَو یو ،چې نه به غواړو حاجت مګر دالله نه ، اونه به شریک کوود هغهٔ سره څه شیئ ، اونه به جوړوو مونږه دانسانانونه حاکمان دالله په مقابل کې . که نه مني درسره داخبره نو اوایه ورته تاسوواورئ دا خبره چې مونږ الله حاکم منو .

**۱۲: مومنان هم دالله تعالی دوه حقه ذکرکوي:**

۱. حکومت :جنت ته دتلو نه روسته جنتیان دخپل جنتي کیدو سبب هم دغه دوه خبرې ذکر کوي :قَالُوا إِنَّا كُنَّا قَبْلُ فِي أَهْلِنَا مُشْفِقِينَ ۲٦. فَمَنَّ اللَّهُ عَلَيْنَا وَوَقَانَا عَذَابَ السَّمُومِ(۲۸ الطور). وئیل جنتیانو : مونږ په دنیا کې ویریدونکي وو ، یعني مونږ دالله تعالی حکومت په دنیا کې منلې وو ،نوپه دې عقیده باندې الله تعالی جنت ته راکړو ، او دجهنم نه ئ وساتلو.

۲. عبادت: إِنَّا كُنَّا مِنْ قَبْلُ نَدْعُوهُ إِنَّهُ هُوَ الْبَرُّ الرَّحِيمُ(۲۸ الطور)، یقینًا مونږ په دنیا کې هر حاجت دالله تعالی نه غوښتلو ، دا دعبادت عقیده ده چې مونږ به همیشه حاجت دالله نه غوښتلو ، په دی خاطر چې د

حاکمیت عقیده أصل ده نو نعمتونه دآخرت ئ په هغې مرتب کړل ،بیا ئ ورپسې دعبادت عقیده ذکر کړه۔

۱۳۔ **په احادیث مبارکه کې هم دالله تعالی دوه حقه ذکردي:** عن أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيّ رضي الله عنه عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَتُنْقَضَنَّ عُرَى الْإِسْلَامِ عُرْوَةً عُرْوَةً. فَكُلَّمَا انْتَقَضَتْ عُرْوَةٌ تَشَبَّثَ النَّاسُ بِالَّتِي تَلِيهَا. فَأَوَّلُهُنَّ نَقْضًا الْحُكْمُ، وَآخِرُهُنَّ الصَّلَاةُ ۔(رواه الإمام أحمد في مسنده، وابنه عبد الله في كتاب السنة، والطبراني بأسانيد صحيحة، وابن حبان في صحيحه، والحاكم في مستدركه، وقال: صحيح ولم يخرجاه) .

حضرت ابو امامه رضي الله عنه دنبي علیه السلام نه نقل کوي:ما تولې کیږي به د اسلام کړی یوه یوه ،کله چې یوه کړی ماته کړې شي ،خلق به ورپسې کړی را ونیسي ، پس دټولو نه مخکې کومه کړی چې ماتولې کیږي به ،هغه قانون دی، او آخرنی کړی مونځ دی۔

د اسلام اولنی کړی هغه دالله تعالی دحاکمیت کړی ده، کله چې دالله تعالی دحاکمیت کړی ماته شي ،نو دعبادت کړی به په خپله ماتیږي، ځکه أصل کړی د اسلام حاکمیت دی ،چې دا دیو ځائ نه ختم شي، نو هلته دعبادت سره لوبې شروع شي.

۱۴۔ وعن فيروز الديلمي رضي الله عنه؛ قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لينقضن الإسلام عروة عروة كما ينقض الحبل قوة قوة ۔(رواه الإمام أحمد، ورجاله ثقات).

۱۵۔ عن أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : تَجِيء الْأَعْمَال فتجيء الصَّلَاة فتقول: يارب أَنَا الصَّلَاةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلى خَيْرٍ. فَتَجِيءُ الصَّدَقَة فتقول: يارب أَنَا الصَّدَقَةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلى خَيْرٍ ثُمَّ يَجِيء الصّيام فَيَقُول: يارب أَنَا الصِّيَامُ. فَيَقُولُ: إِنَّكَ عَلى خَيْرٍ. ثُمَّ تَجِيءُ الْأَعْمَالُ عَلى ذلِكَ. يَقُولُ اللهُ تَعَالى: إِنَّكِ عَلى خَيْرٍ. ثُمَّ يَجِيءُ الْإِسْلَامُ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَنْتَ السَّلَامُ وَأَنَا الْإِسْلَامُ. فَيَقُولُ اللهُ تَعَالى: إِنَّكَ عَلى خَيْرٍ بِكَ الْيَوْمَ آخُذُ وَبِكَ أُعْطِي. قَالَ اللهُ تَعَالى فِي كِتَابِهِ: وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ من الخاسرين۔ (رواه احمد)۔

## ۱۲. فقهاء کرام هم دالله تعالی دوه حقونه بیانوي

علامه حصکفي رحمه الله د حضرت تمرتاشي رحمه الله دکتاب "تنویرالابصار" شرح کړې ده په نامه د "الدرالمختار"، او په دې دواړو باندې حاشیه ده د ابن عابدین رحمه الله. علامه حصکفي رحمه الله دکتاب البیوع مناسبت بیانوي دماقبل سره

۱. بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

كِتَابُ الْبُيُوعِ

لَمَّا فَرَغَ مِنْ حُقُوقِ اللهِ تَعَالَى الْعِبَادَاتِ وَالْعُقُوبَاتِ شَرَعَ فِي حُقُوقِ الْعِبَادِ الْمُعَامَلَاتِ. (درمختار).

(قَوْلُهُ: لَمَّا فَرَغَ إلَخْ) بَيَانٌ لِلْمُنَاسَبَةِ بَيْنَ جُمْلَةِ مَا تَقَدَّمَ وَجُمْلَةِ مَا يَأْتِي مَعَ بَيَانِ الْمُنَاسَبَةِ بَيْنَ خُصُوصِ الْوَقْفِ وَالْبَيْعِ، وَالْمُرَادُ بِالْعِبَادَاتِ مَا كَانَ الْمَقْصُودُ مِنْهَا فِي الْأَصْلِ تَقَرُّبَ الْعَبْدِ إلَى الْمَلِكِ الْمَعْبُودِ، وَنَيْلَ الثَّوَابِ وَالْجُودِ، كَالْأَرْكَانِ الْأَرْبَعَةِ وَنَحْوِهَا وَبِالْمُعَامَلَاتِ مَا كَانَ الْمَقْصُودُ مِنْهَا فِي الْأَصْلِ قَضَاءَ مَصَالِحِ الْعِبَادِ كَالْبَيْعِ وَالْكَفَالَةِ وَالْحَوَالَةِ وَنَحْوِهَا وَكَوْنُ الْبَيْعِ أَوْ الشِّرَاءِ قَدْ يَكُونُ وَاجِبًا لِعَارِضٍ لَا يُخْرِجُهُ عَنْ كَوْنِهِ مِنْ الْمُعَامَلَاتِ، كَمَا لَا تَخْرُجُ الصَّلَاةُ مَعَ الرِّيَاءِ عَنْ كَوْنِ أَصْلِ الصَّلَاةِ عِبَادَةً. ثُمَّ إنَّ مَا تَقَدَّمَ غَيْرُ مُخْتَصٍّ بِالْعِبَادَاتِ بَلْ هُوَ حُقُوقُهُ تَعَالَى ، وَهِيَ ثَلَاثَةٌ: عِبَادَاتٌ وَعُقُوبَاتٌ، وَكَفَّارَاتٌ، فَالْمُعَامَلَاتُ فِي مُقَابَلَةِ حُقُوقِهِ تَعَالَى .(ردالمحتار). د علامه شامي رحمه الله په دې عبارت کې د الله تعالی درې حقونه ذکر دي. علامه رافعي رحمه الله د دریم حق یعني دکفاراتو په حقله وايي: چې دا مستقل حق نه دی ،بلکه بعض افراد دکفاراتو د عباداتو نه دي، او بعض د عقوباتو نه. لهذا د عام فقهاو خبره په خپل ځائ درست ده چې د الله تعالی دوه حقه دي.

۲. بِسْمِ اللهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

كِتَابُ الْحُدُودِ

(الْحَدُّ) لُغَةً الْمَنْعُ. وَشَرْعًا (عُقُوبَةٌ مُقَدَّرَةٌ وَجَبَتْ حَقًّا لله تَعَالَى) زَجْرًا ، فَلَا تَجُوزُ الشَّفَاعَةُ فِيهِ بَعْدَ الْوُصُولِ لِلْحَاكِمِ، وَلَيْسَ مُطَهِّرًا عِنْدَنَا بَلْ الْمُطَهِّرُ التَّوْبَةُ. وَأَجْمَعُوا أَنَّهَا لَا تُسْقِطُ الْحَدَّ فِي الدُّنْيَا (فَلَا تَعْزِيرَ) حَدٌّ لِعَدَمِ تَقْدِيرِهِ (وَلَا قِصَاصَ حَدٌّ) لِأَنَّهُ حَقُّ الْمَوْلَى.(الدرالمختار).

**علماءِحق هم دالله تعالی دوه حقونه بیانوي**

دوخت اهل حق علماء دیوبند هم دقرآن کریم په تفسیر کې دشرک دوه قسمه بیانوي-

إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا (۱۱۲النساء).

ددې آیت په تفسیر کې شیخ الاسلام علامه شبیراحمد عثمانی رحمه الله لیکي: یعنی شرک سے نیچے کے گناہ کو اگر چاہے بخش دے گا۔۔۔۔۔۔۔۔۔ فائدہ۔ شرک صرف یہ نہیں کہ اللہ کے سوا کسی اور کی پرستش کرے بلکہ اللہ کے حکم کے مقابلے میں کسی کے حکم کو پسند کرنا یہ بھی شرک ہے۔

یعنی شرک په دوه قسمه دی۱:- شرک فی الحکم ،۲- شرک في العبادة ، چی مشرکینو دادواړه حقونه دالله تعالی مخلوق ته ورکړي وو -

مختصر داچی:دالله تعالی حق عبارت دی دحکومت اودعبادت ددواړو دمجموعې نه . دهر وخت مشرکینو ددینه انکار کړی دی.

**دنوح** علیه السلام **دعوت**

داخبره معلومه ده چې دشرک دَ رد ، اودتوحید داثبات لپاره اولنی پیغمبرنوح علیه السلام دی-دهغه دعوت په قرآن پاک کې په دی الفاظوسره ذکر دی :

۱ .وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلى قَوْمِهِ فَقَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ(۲۳المؤمنون) ،ددې آیت مبارکه معنی عمومًا داسې کیږي: اویقینًا لیګلی وو مونږ نوح دهغهٔ قوم ته، نو وویل هغه:ای زماقومه ! عبادت کوئ دالله ،نشته ستاسولپاره بل معبود سیوا دهغهٔ نه-اوعبادت په معنی دحاجت غوښتلو اخستلی کیږي ،نوداسې ئ وایي: حاجت وغواړئ دالله نه ،نشته ستاسولپاره حاجت روا بی دهغهٔ نه- ولی په دی پسې آیت کې دنوح علیه السلام دقوم او دامت کوم جواب چې ذکر دی ،هغه دحاجت غوښتلو دمعنی سره هیڅ مناسبت نه لري:

فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ مَا هذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُرِيدُ أَنْ يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَأَنْزَلَ مَلَائِكَةً مَا سَمِعْنَا بِهذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ (۲۴المؤمنون)- اووی دهغهٔ دقوم کافرحاکمانو:دا ستاسو په شان یو انسان دی،یعني څه زور او زر نه لري ، غواړي چی په تاسو حکومت وکړي- دنوح علیه السلام قوم د "اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ" نه دا فهم کړه چی نوح دا غواړي چي په تاسو حاکم شي.

## دمشرکینو لخوا نه دلیل عقلي

مشرکین دخپلې دعوې داثبات او دنوح علیه السلام د دعوې د رد لپاره دلیل عقلي ذکر کوي ، او وایي : که دالله تعالی خوښه وی چی نوح حاکم اوبادشاه شي نو ددهٔ سره بهٔ ملائک رالیګلي وو ،یعني زر او زور بهٔ ورله ورکړی وو ، ځکه حکومت په زور او په زر کیږي ،مشهور قول دی :: دنیاشازور کی ہے نہ بزدل کی ہے نہ کمزور کی ہے ـ دنیا د زورآورو ده ،نه د بی زور او نه دبی وزر . دا دلیل عقلي دی دقوم نوح په خپل موقف اومدعی باندې ـ

دلته دنوح علیه السلام دمختصردعوت اختتام په "افلاتتقون "سره دی ـ د "اعبدواالله " دغه معنی چې دهغهٔ وخت مخاطب حاکمانو اخستې ده ،او الله تعالی په خپل کتاب کې ذکر کړې ده ،یعني دالله تعالی حکومت منل ـ ددې لپاره دغه جمله هم کافي ده ـ خو په جواب کې دقوم ددغې معنې دصراحت نه روستو بله معنی اخستل ،خصوصًا په دی ځائ کې غټ زړهٔ او غټ جرأت غواړي ـ

### دمشرکینو لخوا نه دلیل نقلي

مَا سَمِعْنَا بِهٰذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ـ دادلیل نقلي دی دنوح علیه السلام ددعوی د رد لپاره ـ

إِنْ هُوَ إِلَّا رَجُلٌ بِهِ جِنَّةٌ فَتَرَبَّصُوا بِهِ حَتّٰى حِينٍ ـ کله چی د نوح دعوی په دلیل عقلي ونقلي سره رد شوه نو لهذا دی چی څه وایي دا لیونی دی ـ

هم دغه اصطاحي الفاظ د نورو نبیانو په دعوت کې هم مذکور دي ،لهذا دهغې به هم دغه معنی وي :

۱ . وَإِلٰى عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ إِنْ أَنْتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ (۵۰ هود)،

۲ . وَإِلٰى ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ الایه (٦١) ،

۳ . وَإِلٰى مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلٰهٍ غَيْرُهُ الایه (۸۵)،

۴ . وَإِبْرَاهِيمَ إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ اعْبُدُوا اللهَ وَاتَّقُوهُ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ (۱٦ العنکبوت)،

دمشرکینِ قرآن دبحث حاصل دا شو چې په دوي کې دوه قسمه شرک وو ،۱: شرک فی الحکم ،۲: شرک فی العبادة ـ نوقرآن کریم چې کله دشرک رد کوي نو هغه هم دغه دوه قسمه شرک دی:۱ـ شرک فی الحکم ، ۲ـ

شرک فی العبادة ـ او کله چي د توحيد دعوت ورکوي نو هم دغه دوه قسمه توحيد دی: ۱ـ توحيد فی الحکم ،۲ـ توحيد فی العبادة ـ دا دواړه د الله تعالی حق دی ـلفظ دعبادت دواړو ته شامل دی لکه: وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنْسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ (۵۶الذريات).او حديث معاذ رضي الله عنه : عَنْ مُعَاذٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسلم على حمَارٍ يُقَالُ لَهُ عفير فَقَالَ يَا معَاذ هَلْ تَدْرِي حَقُّ اللهِ عَلَى عِبَادِهِ وَمَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ؟ قُلْتُ اللهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّ حَقَّ اللهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَحَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللهِ أَنْ لَا يُعَذِّبَ مَنْ لَا يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَفَلَا أُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ قَالَ لَا تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوا .(متفق عليه).

## د شرک اقسام

په تفصيل سره دا خبره ذکر شوه چې وخت د سره مشرکينِ قرآن په دوه قسمه شرک کې اخته دي:

۱. شرک فی الحکم ۲. شرک فی العبادة ـ ددې دوه قسمونو نه علاوه نور اقسام د شرک په قرآن پاک کې نشته ـ البته د مشرکين فی الذات والصفات ذکر د حضرت ابراهيم عليه السلام او د حضرت سليمان عليه السلام په قصه کې راځي ـدغه شان په حم السجده کې هم راځي ـ دا سې معلوميږي چې دا ټول ذکر د قومِ سبا دی. د حضرت ابراهيم عليه السلام په وخت کې يا دغه نه لږ مخکې ئ وجود او زور موندلی وو ،او د حضرت سليمان عليه السلام په وخت کې ئ زوراو شور ختم شوی دی ـ بلقيس چې په دغه وخت کې ددوي حکمرانه وه ،هغې اسلام راوړو ،او دا سمان حکومت ته ئ غاړه کيخوده : وَصَدَّهَا مَا كَانَتْ تَعْبُدُ مِنْ دُونِ اللهِ إِنَّهَا كَانَتْ مِنْ قَوْمٍ كَافِرِينَ (۴۳), قَالَتْ رَبِّ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي وَأَسْلَمْتُ مَعَ سُلَيْمَانَ لله رَبِّ الْعَالَمِينَ (۴۴النمل) ـ او دنورتاريخ نه ئ قرآن خاموش دی ـ

ددې دوه قسمه شرک نه علاوه په درسونو کې چې نور مختلف قسمونه د شرک بيانيږي ،هغه محض تفنّن دالفاظو دی ،تعدد داقسامو نه دی، ځکه چې څه نور څه حقيقت يا څه نوې معنی نه لري ـهغه اقسام دادي:

شرک په څلور قسمه دی:۱ـ شرک في العلم،۲ـ شرک في التصرف، ۳ـ شرک في الدعاء،۴ـ شرک فعلي ـ د شرک فعلي بيا څلور قسمه دي ، دا څلور قسمه په تقابل سره دي ،په حقيقت کې دوه دي:
۱،۲ـتحريمات الله بمقابله تحريمات غيرالله ـ ۳،۴ـ نذر دالله بمقابله نذر دغيرالله ـ

د مذکور اقسامو په اعتبار سره شرک په اصل کې په دوه قسمه جوړیږي :۱۔ شرک اعتقادي ،۲۔ شرک فعلي۔ اولني درې قسمونه د شرک اعتقادي دي او څلورم قسم د شرک فعلي جوړیږي۔

**په دی تقسیم کې څور نقائص دي:**

۱ . په دی تقسیم کې یو نقص دا دی چې اولنی قسم یعني شرک اعتقادي دا اولني دوه قسمونو قسیم جوړیدي شي ،ځکه چې تعلق ئ یو اځې دا اعتقاد سره دي ،مګر د دریم قسم یعني شرک في الدعاء تعلق یو اځې دا اعتقاد سره نه دی ،بلکه د دې تعلق د فعل سرهم دی۔ لهذا دا د اولني دوه سره نه وو پکار۔ او نه دا مستقل قسم ګرځیدی شي، بلکه دا د شرک فعلي یو قسم ګرځول پکار وو ، لکه د ابن قیم رحمه الله په تعریف د عبادت کې دعاء ئ د عبادت نه ګرځولی ده ،او عبادت ئ بناء کړی دی په اعتقاد باندې۔ او د دې تقسیم ذکر کونکي هم د شرک فعلي بناء په شرک اعتقادي یعني په شرک في التصرف ګرځوي۔ شرک اعتقادي ئ جدا او شرک فعلي ئ جدا کړی دی۔ لهذا دلته هم شرک في الدعاء د شرک في العلم او د شرک في التصرف نه جدا پکار وو۔

۲ . په دی تقسیم کې بل نقص دا دی چې د شرک فعلي دو قسمونه د غېر الله تحریمات او د غېر الله نذر په مقابل د دوه توحید او ایمانیاتو کې ذکر دي "تحریمات الهیه" او د الله تعالی لپاره نذر۔نو دا خبره مسلم ده ،چې په دې څلور قسمه کې صرف دوه د شرک دي ،باقي دوه د شرک په مقابل کې د توحید قسمونه دي. په وخت د تقسیم او اختصار کې دا صحیح نه ده.

۳ .بل نقص په دی تقسیم کې دا دی چې د شرک اقسام ېې منحصر کړي دي په دغه مذکور قسمونو کې، او شرک في الحکم چې مستقل قسم دی د شرک ،هغه په دي تقسیم کې ورک دی۔ حالانکه مشرکینو چې د غېر الله نه خپل حاجتونه په صورت د شفیع غوښتل نو الله تعالی ئ حاجت روا ګڼړلو ،او اصل قاضي الحاجات ئ الله تعالی ته وئیل۔ خو د حکم په باب کې هغوي الله تعالی ته د سره دا استحقاق نسبت هم نه دی کړی۔ نو دا غټ شرک د شرک دا اقسامونه ختمول د قرآن کریم سره انصاف نه دی۔

۴. بل نقص په دی تشسیم کې دا دی چې کله د شرک دویم قسم بیانیږي یعني شرک فعلي ،نو په درسونو کې وایي چې د شرک فعلي مبدا شرک اعتقادي ده ،یعني مشرکین د شرک اعتقادي قائل دي ن په دی اساس د شرک فعلي هم قائل دي۔ لکه چې په تعریف د عبادت کې د شیخ السلام رحمه الله کي ذکر دي : فکل دعاءوثناءینشأ من هذا الاعتقاد فهی العباد . د تیر شوي تفصیل په رڼا کې دا خبره درست

نه ګرځي ،ځکه چې کله مبدأ او موقوف عليه زائل شي ،نو موقوف پخپله ورکيږي،او دا خبره په وضاحت سره په تير شوی اوراقو کي بيان شوه چې مشرکين دالله تعالى د ذات ،صفاتو او افعالو بلاشرکت غير قائل وو. نو صحيح خبره دا ده چې حکومت تشريعي او عبادت دا دواړه حقونه دالله تعالى دي،او مشرکينو د دواړو حقونو نه په تير شوي تفصيل انکار کړی دی ،يعني دحاکميت باری تعالى نه سراسري انکاري وو ، او دعبادت سره ئ لوبې کولې ، کله به ئ بغيردالله تعالى نه دشفيع نه حاجت غوښتلو او کله په واسطه دشفيع دالله تعالى نه.

شرک په دوه قسمه دی :١ـ شرک في الذات،٢ـ شرک في الاسماء والصفات.

## شرک في الذات

ددې قائلين په قرآن پاک کې دنوم دحده پورې دي، چې مجوس ورته وئيلي کيږي.ددوي نور څه ذکر نشته.حتى چې دوي ته د ارسالِ رسل نه هم قرآن کريم خاموش دی.نو ظاهر دا ده چې دوي ته انبياء عليهم السلام نه دي ليګلي شوي. دوي د دوه خالقانو قائل دي: خالقِ خير چې يزدان او خالقِ شر چې اهرمن ورته وئيلي کيږي ددوي په اصطلاح کې.

## شرک في الاسماء والصفات

لفظ دا سماء په قرآن کريم او په حديث شريف کې راغلی دی.لکه: ولله الاسمآء الحسنى، فله الاسمآء الحسنى ، ان لله تسعًا وتسعين اسمًا.ليکن لفظ دصفات په دې باب کې په قرآن او په حديث کې نه دی راغلی ، نو دا د "الاسماء" صفت کاشفه دی تفسير ئ بيانوي.ددې اصطلاح حاصل د الله تعالى صفت علم او قدرت دی.نو دشرک في الاسماء والصفات معنى شوه :شرک في العلم والقدرة.او دا دشرک اعتقادي دقبيل نه دی ، نو ددې حاصل هم شرک اعتقادي شو.

په دی تقسيم کې دا نقص دی چې يواځې شرک اعتقادي ئ تقسيم کړی دی دوه قسمونږ ته.اولنی قسم يعني شرک في الذات دقرآن او د وحي ږمخاطبينو شرک نه دی ږ ددې ذکر دمجوسو په نوم باندې په قرآن پاک کې فقط يو ځل دی ،کوم چې قرآن او تير شوي کتابونو په تفصيل سره ذکر کړی دی.

"الاسمآء" لفظ چې په قرآن پاک کې راغلی دی ،کله دالله تعالى اعلامو او صفاتو دواړو ته شامل وي ،لکه دسوره حشر په آخري دري آيتونو کې دالله تعالى ددواړو نومونو : الله،رحمن او دصفاتو ذکر دی ،

او دې تولو ته ئ "الاسماء الحسنی" وئيلي دي ،چې پکې الله او رحمن اعلام دي ،په غيرالله ئ اطلاق جائز نه دی ،او بعض صفات دي ،چې د غېرالله لپاره د هغې استعمال په څه شروطو سره جائز دی۔

آيتونه دا دي: هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ (٢٢) هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْمَلِكُ الْقُدُّوسُ السَّلَامُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ الْعَزِيزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ سُبْحَانَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ (٢٣) هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى يُسَبِّحُ لَهُ مَا فِي السَّموٰاتِ وَالْأَرْضِ وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (٢٤الحشر).

او ډير کرته يو اخې اعلام ترې مراد دي ، لکه سورة بني اسرائيل کې بې اسم جلاله يعني اسم ذات "الله "او " الرحمن "چې حاکمي نوم د ی د الله تعالی ،ته بې "الاسماء الحسنی " وئيلي دي : قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ أَيًّا مَا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى وَلَا تَجْهَرْ بِصَلَاتِكَ وَلَا تُخَافِتْ بِهَا وَابْتَغِ بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيلًا (١١٠) .

په سورة اعراف کې هم د " الاسماء الحسنی " نه دغه دوه نومونه مراد دي : وَلِلّٰهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ (١٨٠). په سورة طه کې هم د "الاسماء الحسنی " نه د الله تعالی اعلام " الله " او "رحمن " مراد دي : الرَّحْمٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوٰى (٥) لَهُ مَا فِي السَّموٰاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَمَا تَحْتَ الثَّرٰى (٦) وَإِنْ تَجْهَرْ بِالْقَوْلِ فَإِنَّهُ يَعْلَمُ السِّرَّ وَأَخْفٰى (٧) اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى (٨) .

شرک په دوه قسمه دی:۱۔ شرک في الربوبيه، ۲۔ شرک في الالوهيه۔ بيا د رب معنی په خالق او متصرف سره او د اله معنی په معبود يعني حاجت روا سره کوي۔ دا تقسيم او معنی د قرآن کريم د نصوصو په رڼا کې قطعي باطل دی۔

## شرک فی المحبة

په بعض درسونو کې يو مستقل قسم بل هم بيانيږيو چې شرک في المحبّه ورته وئيلي کيږي۔

د کفارو د چپلو آلهه سره محبت په قرآن کريم کې په يو څو ځايونو کې ذکر دی:۱. سورۀ بقره آيت **۱۲۵**، ۱۲۶، ۱۲۷۔

۲. سورۀ آل عمران آيت ۳۱، ۳۲، ۳۳۔

۳. سورۀ مائده آيت ۱۸۔

۴. سورۀ عنکبوت آیت **۲۵** بلفظ "مودة"-

په سوره مائده کې د اهل کتابو دمحبوبیت دعوی ذکر ده : وَقَالَتِ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى نَحْنُ أَبْنَاءُ اللهِ وَأَحِبَّاؤُهُ. او دعوی کوي یهود او نصاری چې مونږ ځامن یعني نائبان یو دالله په زمکه کې لپاره دحکومت، او محبوب یعني خوښ یو دالله- ددې دعوې مقصد دځپل کړي ګناه دګناه کیدو دفي کول دي یعني یهودو چې کوم قانون درجم په بدل کې جوړکړی دی ، دغه عمل کفر نه ګڼړي او په دې عمل سره یهود کافر شوي نه دي، بلکه دمځکې په شان دالله تعالی نائبان او د حکومت حقداره دي.

ددې دعوی جواب په دې آیت کې هم ورکړی شوی دی: قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوبِكُمْ بَلْ أَنْتُمْ بَشَرٌ مِمَّنْ خَلَقَ.

تهٔ ورته اووایه:که داسې وي نو ولې الله تعالی تاسو له عذاب درکوي ستاسو ددغې ګناهونو په وجه ،بلکه تاسو محض بشر یئ دالله تعالی دمخلوق نه ،او بشر په حیث دبشر دالله تعالی محبوب نه دی ،بلکه داسماني ثانون او د وحي په پابندئ سره دالله تعالی محبوب او نائب في الارض دی ،او تاسو حکومت په خپل قانون کوئ او په دې درله هغه عذاب درکوي ، نو دالله نائبان او خوښ خلق نه شوئ-دا الزامي جواب دی-

تحقیقي جواب په سوره ال عمران کې دی:

قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَاللهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ (۳۱)،تهٔ اووایه اهل کتابو ته:که چري تاسو په خپله دعوی کې رښتني یئ یعني په دعوی دمحبت کې-نو محبت دطاعت او اتباع نه عبارت دي- تاسو دالله تعالی اتباع وکړئ زمادا اتباع په صورت کې- الله تعالی به ستاسو دعوی دمحبت تسلیم او قبول کړي- او په وجه دحاکمیت دالله تعالی دقبلولو به الله تعالی ستاسو مخکني ګناهونه وبخي ، او الله تعالی بخونکی ذات دی-

قُلْ أَطِيعُوا اللهَ وَالرَّسُولَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللهَ لَا يُحِبُّ الْكَافِرِينَ ،دا بدل دی د "قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّونَ اللهَ الايه" نه-او بدل او مبدل منه په حقیقت کې یو وي-نو اتباع او طاعت یو څیز وګرځیدو ، او دلته درسول اضافه ورسره هم ده چې معلومه شي چې- تهٔ دوي دالله تعالی اطاعت دنبي علیه السلام په اطاعت کې منحصر دی ، هم ددې وجې نه ئ د "رسول" عطف په "الله "کړی دی بغیر دفعل دتکرار نه. لهذا دآیت معنی ده : ته اووایه:دالله تعالی او دهغهٔ د رسول حکومت او عقوبات ومنئ ، او که تاسو دالله تعالی سزاګانې نه

منئ نو تاسو کافران يئ ،او الله تعالى دکافرانو سره محبت نه کوي - او په داسې حال کې دعوى دمحبت دکافرو لخوا نه محض ادّعاء يعني دروغ دي -

إِنَّ اللهَ اصْطَفَى آدَمَ وَنُوحًا وَآلَ إِبْرَاهِيمَ وَآلَ عِمْرَانَ عَلَى الْعَالَمِينَ ، الله تعالى دخپل نيابت في الحکم لپاره دا خلق غوره کړي دي ، نه هغه خلق چې محض په نوم اهل کتاب دي ،او دا الله تعالى حکم ئ لغو کړى دى ،او دهغۀ په ځائ ئ وضعي حکم حاکم کړى دى -

دا جواب يو قسمه خاص جواب جوړيږي ،ځکه دعوى دمحبوبيت دخاص خلقو لطرفه ده چې اهل کتاب دي - هم دغه خبره سورۀ بقره ذکر کړې ده ،مګر دچا دجواب په صورت کې نه ده ،چې دهغې نه خصوصيت ظاهر شي ،بلکه دضابطې په شکل کې ده:

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَتَّخِذُ مِنْ دُونِ اللهِ أَنْدَادًا يُحِبُّونَهُمْ كَحُبِّ اللهِ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَشَدُّ حُبًّا لِلهِ وَلَوْ يَرَى الَّذِينَ ظَلَمُوا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلهِ جَمِيعًا وَأَنَّ اللهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ (١٦٥البقرة).

دلته تبعيض دتحقير لپاره دى ،کنه په شمار کې ډير دي - يعني څه خلقو دا الله تعالى په ځائ خلق نيولي دي، چې دهغوي سره مينه هغه کوي کومه چې حق دى دا الله تعالى -او هغه خلق چې دا الله تعالى حاکميت منونکي دي هغوي دغه مينه يوا ځې دا الله تعالى سره کوي - که وګوري هغه خلق چې د الله تعالى حق ئ بل ته ورکړي دى دخپل عمل سزا ،نو وا يي به:يقينًا ټول طاقت يوا ځې دا الله تعالى سره خاص دى ،او يقينًا الله تعالى سخت عذاب ورکونکى دى-

ددې نه معلومه شوه چې په اولني آيت کې ذکر شوى مينه او محبت دقوت او د زور په اساس ده، او د قوت په اساس مينه عبارت ده د اتباع او دطاعت نه - دې ته که محبت نوم ورکړى شي ،که مودت، که طاعت ، که اتباع ،هر يو لفظ که ددې لپاره ذکر شي ،ټول هم دغه يو حقيقت لري يعني اتباع - هم ددې وجې نه په ورپسې آيت کې ددوي دغه محبت ته په صراحت سره صرف اتباع وئيلي شوي ده ،او هر کله چې تفسير دقرآن په قرآن سره وشي هغه بيا د أخذ لپاره متعين دى -

إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا ، محبت کونکي ته متبِع او محبوب ته متبَع وئيل ددغه محبت کولو دحقيقت واضحه کولو لپاره بس دى ،خو بيا هم ورپسې بله جمله بيان کړله : وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ (١٦٦البقرة) ،چې اسباب دمحبت ختم شو ، يعني زور د زورور پاتې نه شو ،نو په هغې مرتب محبت يعني

اتباع هم پاتې نه شوه ،نو محبت کونکو دهغوي سره دمحبت نه برآءت وکړلو ، ځنګ چې مشرانو دکشرانو د طاعت اود اتباع نه بیزاري ظاهره کړله-خو وخت تیر دی، صرف حسرت کولی شي ، بیزاري ښکاره کول څه فائده نه ورکوي-

: حاصل دا چې د زورور سره مینه اومحبت عبارت دی دطاعت اود اتباع نه-شاعر وایي:

أتعصى الإله وانت تظهر حبه  هذالعمری فی الفعآل بدیع

لوکان حبک صادقا لأطعته  إن المحب لمن یحب مطیع

# دقران کریم اسلوب بیان

ان هذاالقرآن یهدی للتی هی اقوم ـ

وَكَذٰلِكَ أَوْحَيْنَا إِلَيْكَ رُوحًا مِنْ أَمْرِنَا مَا كُنْتَ تَدْرِي مَا الْكِتَابُ وَلَا الْإِيمَانُ وَلٰكِنْ جَعَلْنَاهُ نُورًا نَهْدِي بِهِ مَنْ نَشَاءُ مِنْ عِبَادِنَا وَإِنَّكَ لَتَهْدِي إِلٰى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (۵۲الشوری) ـ

عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُولَانِ لَهُ مَنْ رَبُّكَ فَيَقُولُ رَبِّيَ اللهُ فَيَقُولَانِ لَهُ مَا دِينُكَ فَيَقُولُ دِينِي الْإِسْلَام فَيَقُولَانِ لَهُ مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِي بُعِثَ فِيكُمْ قَالَ فَيَقُول هُوَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَقُولَانِ وَمَا يُدْرِيكَ فَيَقُولُ قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ زَاد فِي حَدِيث جرير فَذٰلِك قَول الله عز وَجل (يثبت الله الَّذين آمنُوا بِالْقَوْل الثَّابِت) ـ (رواه احمد وابوداود) ـ

دقرآن کریم په آیتونوکې دقرآن حجت اودلیل کیدل مصرح دي ـ دقرآن پاک انداز هم په دې ګواه دی چې دا یوحجت او دلیل بیانوي ـ

دغه شان قرآن پاک ځائ په ځائ څه نتیجه ذکرکوي چې هغې ته ثمره ددلائلو وئیلی کیږي ـ دا هم ددې خبرې دلیل دی چې قرآن یوحجت اودلیل دی ـ

نبي **علیه السلام** قران پاک ته حجت او دلیل وئیلي دي: عن ابی مالک الاشعری رضی الله عنه فی حدیث طویل :

والقرآن حجة لک او علیک. دا قرآن یا ستا لپاره حجت او دلیل دی او یا ستا په خلاف ـ

## ددعوی او ددلیل تعریف او اقسام

کله چې دا خبره واضحه شوه چې قرآن پاک دلیل دی ، او دلیل لپاره ددعوی وي ،نو دا پیژندل ضروري دي، چې دعوی څه ته وایي؟، او دلیل څه ته وایي؟،اودلیل په څو قسمه دی ـ

دعوی ته مُدّعی هم وئیلی شي ،ددې لپاره په قرآن پاک کې لفظ د خصام ،جدال ،نزاع او اختلاف هم استعمال شوی دی ،او دې ته مابه الخصام ،مابه الجدال ،مابه النزاع او مابه الخلاف هم وئیلی شي.

## دعوی

دعوی،مدعی، خصام ،جدال او اختلاف هغه فعل دی چې دیو نه زیات افراد د یو څیز دخپلولو او د هغې دحقداره کیدلو نسبت ځان ته کوي ـ

لهذا مُدّعی به داسې یو شیئ وي چې په هغې کې یو دبل نه خلاف وي، یعني یو چې کومه دعوی کوي بل به ئې نه مني ـ

## دلیل

دلیل هغه څه ته وئیلی شي چې دعوی کونکی پرې خپله دعوی او حق ثابتول غواړي ـلهذا دلیل به داسې شیې وي چې اختلاف کونکي په متفق وي ـ

اوس دغه دعوی چې پکې دنبیانو او دهغوي دقومونو اختلاف دی دقرآن کریم نه پیژندل پکاردي ـ ځکه چې د دغې جګړې فیصله قرآن کریم کړې ده ـ دخپل ذهن اختراعي دعوی دقرآن کریم دعوی ګرځول به څه فائده ونکړي ،بلکه نقصان به وکړي ،اودانقصان ددین او داعتقاد نقصان دی ـ نیز دقرآن نازلیدل بیا بې مقصده ګرځي ،ځکه داقرآن ددغې جګړې دفیصلې لپاره راغلی دی ـ

## ددلیل قسمونه

دتوحید داثبات او دشرک د رد لپاره په قآن مجید کې مختلف قسمه دلائل بیان شوي دي:

### ۱. دلیل عقلي

دا هغه دلیل ته وئیلی کیږي چې په امور مسلمه بین اهل الخصام باندې مشتمل وي ، یعني په دلیل عقلي کې هغه امور ذکر کیږي ،په کوم چې د فرق ثلاثه یعني دمومنینو ،دمشرکینو ،او داهل کتابو

اتفاق دی ، دې ته دلیل عقلي ځکه وایي چې په دې باندې دعقول ثلاثه مخاطبه بالوحی اتفاق دی ، په دی خاطر نه چې په دې کې امورعقلیه ذکر کیږي.دا خبره یاد ساتل پکار دي چې په دلیل عقلي کې ذکر شوي ټول امور معتقدات مسلمه وي ،چې دالله تعالی دذات او دصفاتو او دافعالو سره تعلق لري ، محض امور عقلیه پکې نه ذکر کیږي ،لکه چې په عام درسونو کې وئیلی کیږي. دالله تعالی کتاب دعقلیات محضه په بنیاد هیڅ خبره نه کوي ،او نه هغه خلق ددې مخاطب دي ،او نه په هیڅ څه وخت کې وحی دا خلق مخاطب کړي دي وددوي په حق کې دقرآن پوره خبره ده:

وَلَقَدْ ذَرَأْنَا لِجَهَنَّمَ كَثِيرًا مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ لَهُمْ قُلُوبٌ لَا يَفْقَهُونَ بِهَا وَلَهُمْ أَعْيُنٌ لَا يُبْصِرُونَ بِهَا وَلَهُمْ آذَانٌ لَا يَسْمَعُونَ بِهَا أُولَئِكَ كَالْأَنْعَامِ بَلْ هُمْ أَضَلُّ أُولَئِكَ هُمُ الْغَافِلُونَ (١٧٩الاعراف).

## ۲. دلیل نقلي

دا هغه دلیل ته وایي چې په څه نقل باندې مشتمل وي ،او دغه نقل دخصمینو په مینځ کې محترم او مسلم وي په اعتبار دصاحب نقل ،یا دنتیجې په اعتبار سره ، اګر که په اعتبار د اصل وجې او سبب باندې اتفاق نه وي.

## ۳ . دلیل تکویني

دا هغه دلیل دی چې په امور تکوینیه باندې مشتمل وي ،او دهغې په نتیجه کې مشرکین دالله تعالی د حق د منلو اقرار وکړي، لکه: هُوَ الَّذِي يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ حَتَّى إِذَا كُنْتُمْ فِي الْفُلْكِ وَجَرَيْنَ بِهِمْ بِرِيحٍ طَيِّبَةٍ وَفَرِحُوا بِهَا جَاءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ وَجَاءَهُمُ الْمَوْجُ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ لَئِنْ أَنْجَيْتَنَا مِنْ هَذِهِ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّاكِرِينَ (۲۲یونس) .

## ۴. قَسَم

دا مستقل دلیل دی د ادلّه قرآنیه نه ،الله تعالی په ډیر ځایونو کې د یو شي داثبات لپاره قسم خوري. رسول او نبي ته هم دقسم خوړلو امر کوي. او کله بغیر د امر ته پیغمبر قسم خوري ،ځکه چې دا مستقل حجت دی. د وحې مخاطب مشرکان هم دخپلې عقیدې داثبات لپاره ددلیل عقلي او نقلي پشان دلیل حلف هم ذکر کوي. لکه : وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَا يَبْعَثُ اللَّهُ مَنْ يَمُوتُ بَلَى وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (۳۸النحل) .

په درسونو کې يو قسم د دلائلو نه دليل وحي هم ذکر کيږي. مګر دا خبره درست نه ده ځکه دليل هغه شې وي چې مسلم وي ،او د وحي نه کفارو هميشه لپاره انکار کړی دی .

د دليل عقلي يو قسم هغه دی چې هغې کې د کفارو نه تپوس وي ، او د هغوي نه اعتراف منقول وي ،دی ته دليل عقلي على سبيل الاعتراف من الخصم وئيلی شي، ليکن د دې دا مقصد هرګز نه دی چې په کوم دليل کې د هغوي ده تپوس او د هغوي اعتراف نه وي نو د هغې به دوي اعتراف نه کوي و بلکه ادله عقليه ټول مسلم دي ،او ټول تحت الاعتراف دي ،که به سوال سره وي او که بلا سوال.

**دسورت دعوی او دليل**

الله رب العزت په قرآن پاک کې ځائ په ځائ نبي **عليه السلام** ته امر کوي چې تۀ د مکې د خلقو نه د هغوي د عقيدې پوښتنه وکړه ، ځکه هغه په هره خبره کې ستا سره خلاف نه لري ـ بلکه څه خبرې ،چې هغه په باب د اعتقاد کې اساسي خبرې دي ، دوي د هغې على الاعلان اقرار کوي ،او په شدومد ئ مني ـ تۀ ورته د هغې تبليغ يا د هغې د دعوت لپاره نه ئ رالېګلی شوی ، بلکه کومه خبره چې دوي نه مني هغه ورته او وايه: په دا سې دليل سره چې دوي ئ هم مني ـ کله چې يوه دعوی په دا سې دليل سره ثابته شي چې د هغې دليل نه خصم هم انکار نه شي کولی ،دې ته "**حجت بالغه**" يا "**بلاغ مبين** "وئيلی شي،او اصطلاحي نوم ئ علت دی ، او په درسونو کې ورته دليل عقلي وئيلی کيږي ـ په کومو خبرو چې مشرکين د نبيانو سره موافق دي هغه څلور دي: ۱. ذات د الله تعالی ،۲. د الله تعالی ذاتي نوم ، ۳. صفات يعني علم کامل او قدرت کامله د الله تعالی ، ۴: افعال يعني تکويني امور يا تکويني حکومت د الله تعالی ـ لهذا د قرآن پاک په عالم او په طالب باندې لازم دي چې هغۀ کله د يو سورت يا د قرآن دعوی ذکر کوي ،او وروسته دليل په دعوی بيانوي ، چې د دې قطعي امورو خيال وساتي ـ عمومًا په درسونو کې معکوسي ترتيب ذکر کيږي ـ مثلا: سورۀ فاتحه چې بيانيږي نو دا سې وايي:

"الحمدلله " دا دعوی د سورت ده ـ په دې دعوی درې دلائل ذکر شوي دي ـ اولنی دليل "رب العلمين "دی ـ دويم دليل "الرحمن الرحيم "دی ـ دريم دليل "مالک يوم الدين "دی ـ

دا تقرير او دا ترتيب د قرآن د صريح نصوصو او د اصول مسلمه خلاف دی . تفصيل د دې دا دی: سورۀ فاتحه د ټول قرآن کريم اساس او متن دی ـ کومه خبره چې په نور قرآن کريم کې په تفصيل سره کيږي، هغه پوره خبره په بهتر اختصار سره دلته شوې ده ـ او په قرآن پاک کې ځائ په ځائ دا خبره په صراحت

سره ذکر ده چي کفارو او مشرکینو دالله تعالی صفات علم او قدرت منل ، لیکن هغوي الله تعالی "**رب العلمین**"، "رحمن "او "قیامت" نه منلو : اولئک الذین کفروا بربهم . وهم یکفرون بالرحمن ۔ زعم الذین کفروا ان لن یبعثوا۔

دا امور ثلاثه دکفارو د نه منلو په وجه مختلف فیها وګرځیدل ۔ بیا عمومًا په درسونو کې دا خبره کیږي چې دفلانکي سورت دعوی اثبات دقیامت ده ، یا اثبات د ربوبیت ده ۔ ددې نه هم معلومیږي چې دا امور مشرکینو نه منل ۔ ددې صراحت ،وضاحت او اقرار باوجود دې امور ثلاثه ته دلیل وئیل نامعقوله خبره ده۔ په دې موجوده مسلم شان او صفت سره دا هیڅ کله هم دلیل نه شي جوړیدی ۔ او !دا درې واړه مدعی جوړیدي شي ،ځکه چې د خصمینو یعني د رسولانو او دمشرکینو په کې اختلاف دی ۔

دقرآن کریم دنصوصو او د اصولِ مسلمه مذکوره په رڼا کې صحیح خبره دا ده چې: په سورهٔ فاتحه کې اجمالًا ددغې امورِ ثلاثه اثبات مقصود دی، څنګه چې په نور قرآن کې ځائ په ځائ په تفصیلي دلائلو سره ددغې امورِ ثلاثه اثبات دی. لهذا د سوره فاتحه درست تقریر به په دی ترتیب وي :

"**الحمدلله** " دا جمله اسمیه اولنی دلیل دی لپاره د اثبات د امورِثلاثو : **رب العلمین ،الرحمن الرحیم ،مالک یوم الدین** ،چې دغه امورِ ثلاثه مدعی ده د سورهٔ فاتحه ۔ تفصیل ددغه جملې د دلیل جوړیدو مونږ په ډیر وضاحت سره په تیر شوو اوراقو داصول قرآن کې بیان کړلو :چې د "الحمد لله " معنی ده :ټول صفات ثابت دي خاص دالله تعالی لپاره ۔ او دټولو صفاتو حاصل دوه خبرې دي ،علم کامل او قدرت کامله ۔ او په دې باندې د فرقِ ثلاثو اتفاق دی چې دا خاص دي د الله تعالی سره ۔ نو په دې وجه چې دا اتفاقي څیز دی ،بائد چې دا دلیل وګرځي ،څنګه چې ددلیل تعریف،حق او شان دی ۔

"**رب العلمین** " دا مدعی دسورت ده ، او په دې وجه چې دا مدعی دسورته ده ، د رب معنی به هغه وي په کومه کې چې د فرق ثلاثو اختلاف دی ،او هغه معنی ده : حاکم تشریعي ۔ په خلاف ددې معنی په خالق ،مالک او پالونکي سره ، یا "تبلیغ الشیئ الی کماله شیئًا فشیئًا" سره ۔ نو دا ټولې معنې درست نه دي دلته ، ځکه په دې کې اختلاف نشته ۔ هم دغه شان د "العلمین " معنی به وي : انسان او پیری ۔ ځکه تشریع ددې دوه سره خاص ده ۔

"**الرحمن** " د مدعي دريم جز دی يعني حاکمي نوم ـ مشرکين دا الله تعالی د تشريعي حاکميت نه منکر وونو په دغې اساس دهغه د حاکمي نوم رحمن نه هم انکاري وو ـ

"**الرحيم** " دويم دليل دی په اثبات د دعوی باندې ، په اولني دليل کې مطلق قدرت ذکر دی ،او په دويم کې جانب ايجاب ذکر دی ،د وجې د رحمن نه ،يعني الله چې حکومت کوي او قانون ئ جوړ کړی دی د علمين يعني دانسانانو او پيريانو لپاره نو هغه په اساس د رحمت سره جوړشوی دی ـ

"**مالک يوم الدين** "دا دريم جز دی د دعوی چې مشرکينو ترې انکار کولو په دې اساس چې الله تشريعي حاکم نه دی لهذا دا الله لخوا نه څه تپوس د څه شي نشته او نه هغه انسان يا پيری په څه مکلف کړي دي چې راوې نيسي ، او دنه کولو په وجه ورله سزا او د کولو په وجه ورله انعام ورکړي ـ

**حاصل د شرک دمشرکينِ قرآن**

دمشرکينو د شرک دا اقسامو حاصل دا شو چې هغوي د شرک اعتقادي چې عبارت دی د **شرک فی العلم** او **شرک فی التصرف** نه ، مشرکان نه وو ـ او **شرک فی المحبة** مستقل قسم نه گرځي دا اقسامو د شرک نه ، دا په حقيقت کې بل نوم دی د **شرک فی الحکم** ـ او **شرک فی الدعاء** هم مستقل قسم نه دی بلکه دا د **شرک فی العبادة** دويم نوم دی ـ لهذا مشرکينِ قرآن په دوه قسمه شرک کې مبتلا وو: **شرک فی الحکم**ـ ۲: **شرک فی العبادة** .

*****

# أهلِ کتاب

دأهل کتابو د پيژندلو نه مخکې دا خبره پيژندل ضروري دي چې الله تعالی او نبی عليه السلام دا أمت دأهل کتابو په باره کې ډير زيات ويرولي دي:چې ددوي نه ځان وساتئ:

۱ـ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا فَرِيقًا مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ يَرُدُّوكُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ كَافِرِينَ(۱۰۰ال عمران)،د " فَرِيقًا " نه مراد حاکم فريق دی،لفظ دا اطاعت په دی باندې واضحه قرينه ده. اے مؤمنانو که تاسو دأهل کتابو دمشرانو تابعداري وکړه نو پس دايمان نه به تاسو کافران کړي. وَكَيْفَ تَكْفُرُونَ وَأَنْتُمْ تُتْلَى عَلَيْكُمْ آيَاتُ اللهِ وَفِيكُمْ رَسُولُهُ وَمَنْ يَعْتَصِمْ بِاللهِ فَقَدْ هُدِيَ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ (۱۰۱)، استفهام انکاري دی ،معنی :تاسو نه شی

کافران کیدې ـ په داسې حال کې چې په تاسو کې دالله قوانین او عقوبات ژوندي دي ـ او په تاسو کې دالله رسول په صفت درسول او مطاع ژوندې دی ،مطلب دا شو : که دوي تاسو کافران کوي ،نو په دې طریقه چې دالله قانون درنه واخلي او تاسو تري واړوي، دعبادت دلاري مو نه کافران کوي ځکه هغوي په خپله په باب دعبادت کې مؤحدین دي۔

۲. يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا يَرُدُّوكُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ(۱۴۹ال عمران) ،ای ایمان والو: که چري تاسو اطاعت وکړو دکافرانو نومرتد به کړي تاسو ،نو اوبه ګرځئ نقصاب اوچتونکي ـ دلته ئ أهل کتابو ته کافر اووي۔ بَلِ اللهُ مَوْلَاكُمْ وَهُوَ خَيْرُ النَّاصِرِينَ، "بل " د إضراب لپاره دی ،مطلب دغه خلق مۀ مشران کوی بلکه الله تعالی ستاسو مشر او حاکم دی، دوي به د مدداو کومک په نوم ستاسو خوا ته راځي نو وررته وائ زمونږ مددګار الله تعالی دی ـ

۳ـ وَدَّتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يُضِلُّونَكُمْ وَمَا يُضِلُّونَ إِلَّا أَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ(۶۹ ال عمران) .دأهل کتابو دزړۀ ارمان دی چې تاسو کافران کړي۔

۴ . وَقَالَتْ طَائِفَةٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمِنُوا بِالَّذِي أُنْزِلَ عَلَى الَّذِينَ آمَنُوا وَجْهَ النَّهَارِ وَاكْفُرُوا آخِرَهُ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُونَ (۷۳ ال عمران )،ده اهل کتابو مشران کشرانو ته وایي: ایمان روړئ په هغه قانون باندې چې نازل کړی شوی دی په مومنانو باندې د ورځ په شروع کې ،او انکار وکړئ دهغې د ورځ په آخر کې ، نو دوي به هم ترې واپس شي. ځکه مونږ به ا ووایو چې مونږ پکې فکر وکړو ، دا اسماني قانون نه دی ـ وَلَا تُؤْمِنُوا إِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِينَكُمْ، او مۀ مشر کوئ مګر هغه ثوک چې ستاسو په قانون روان وي ـ

۵ . وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا حَتَّى يَأْتِيَ اللهُ بِأَمْرِهِ إِنَّ اللهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ(۱۰۹البقره) ،ذکر د کثیر اومراد ترې کل دي ،یعني ټول أهل کتاب دزړۀ نه داغواړي چې تاسو دإیمان نه روستو کافران کړي ،ستاسو دکافر کولو سبب حسد دی ،ځکه چې هغوي په دې پوهه دي چې دالله تعالی حق تاسو خپل کړی دی ـ

**الحسد** :تمنّی زوال النعمة سواء حصل للحاسد أم لا- دحسد معنی ده د بل نه د نعمت د ختمیدو ارمان کول ،که ده ته په لاس راشي او که نه.

په أهل کتابو کې دالله تعالی لوی نعمت "اسماني قانون "حاکم وو ، هغه الله تعالی ددوی نه واخستو اوصحابه کرامو ته ئ ورکړو ،مدینه کې دغه عقوبات دالله تعالی نافذ وو ،دوی په دې باندې حسد کولو دصحابؤ سره ۔ من بعدماتبین لهم الحق، په دوی کې په پیړو پیړو دالله تعالی حکومت قائم وو، بقول ابن کثیر د دولس پیغمبرانو نه علاوه باقي ټول په دوی کې راغلي دي، او د اسماني حکومت هغه ټول برکات دوي ته راتلل، د ګیرچاپیر ملکونو نه به دوی ټیکسونه اوخراج اخستو ،نود دغه اسماني حکومت او رحماني حکومت هغه مزه اوخوند ددوي په څلو کې اوس هم وو۔ د "**الحق** " نه مراد دالله تعالی حکومت اوقانون دی ، "فاعفوا واصفحوا " ددوي نه ځان وساتئ ،تردې چې الله تعالی خپل أمر راولیګي دوي سره دقتال کولو ۔

۲. قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ هَلْ تَنْقِمُونَ مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ( ۵۹المائدہ).اووایه: ای اهل کتابو ! نه کوئ تاسو زمونږ سره دښمني مګر په دې خاطر چې ممونږ ایمان راوړی دی په الله باندې او په هغه قانون باندې چې راکړی شوی دی مونږ ته او هغه قانون چې ورکړی شوی وو مخکې خلقو ته ،او په دې خاطر چې تاسو اکثر دالله دقانون نه وتونکي یئ او بغاوت کونکي یئ.

۷۔ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِنْ دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ (۱۱۸)هَاأَنْتُمْ أُولَاءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ وَتُؤْمِنُونَ بِالْكِتَابِ كُلِّهِ وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ قُلْ مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ إِنَّ اللّٰهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ (۱۱۹) إِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُوا بِهَا وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا إِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ (۱۲۰)آل عمران . ای ایمان والو مۀ ورکوئ دزړۀ راز دخپلو نه علاوه بل چاته ،دوي ستاسو په خرابولو کې دهیڅ څیز پرواه نه کوي ،ځکه ددوي ارمان دی چې تاسو خراب شئ ، یعني (دالله د مدد نه مومحروم کړي ،ستاسو دغه رعب ختم کړي، ستاسو قوت ختم کړي ) ، لږه دښمني ئ درسره په څله ښکاره کړې ده ، اوپه زړونو کې ئ غټه دښمني ده، په دلیل سره درته دا خبره ښکاره شوه نو که عقل لرئ نو دوستي ورسره مۀ کوئ۔

یو طرف ته تاسو ورسره مینه لرئ هغوی درسره هیڅ مینه نه لري ځکه چې تاسو د الله قانون ټول منئ یعني تاسو صرف دالله تعالی دحاکمیت عقیده ساتئ ،او کله چئ تاسو ته راشي نو وائي مونږ هم الله

تعالی حاکم منو ، او کله چې درنه جدا شي چيچي په تاسو ګوتې خپلې دډيرې غصې نه. ته ورته او وايه : مړه شئ په دغه خپله غصه کې ، يقينًا الله تعالی ښه پوهه دی د زړونو په رازونو .

که چرې راشي په تاسو څه خوشحالي نو بده لګي په هغوي باندې او که چرې راشي په تاسو باندې غم نو خوشحاليږي به هغې باندې ، او که تاسو استقامت وکړئ او د الله تعالی خپل حاکم ومنئ نو ددوي منصوبې ستاسو هيڅ تاوتن نه شي کولی، يقينًا الله تعالی ګيره اچونکی دی ددوي د منصوبو نه.

٨۔ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ(٥١ المائده)۔

٩۔ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِينَ اتَّخَذُوا دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ أَوْلِيَاءَ وَاتَّقُوا اللهَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ،وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ اتَّخَذُوهَا هُزُوًا وَلَعِبًا ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَعْقِلُونَ . قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ هَلْ تَنْقِمُونَ مِنَّا إِلَّا أَنْ آمَنَّا بِاللهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ وَأَنَّ أَكْثَرَكُمْ فَاسِقُونَ . قُلْ هَلْ أُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِنْ ذَلِكَ مَثُوبَةً عِنْدَ اللهِ مَنْ لَعَنَهُ اللهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوتَ أُولَئِكَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضَلُّ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ (المائده ،٥٧،٥٨،٥٩،٦٠) .

## دأهل کتابو پروژه

د تير شوي آيتونو نه به ډير صراحت او وضاحت سره دا خبره معلومه شوه چې اهل کتاب د اهل اسلام سره ډير خسد ،بغض او عداوت لري ،د ډير قهر نه پرې ګوتې چيچي، د انتقام غښه جذبه لري ،ددوي لپاره هغوي داسې پروژه تياره کړې ده چې د الله تعالی او سنی نائب د الله تعالی د نيابت نه دغه شان محروم کړي څنګه چې دوي محروم دي واو بيا څنګه چې دوي ځان ته مومن وائي: آمنا . خو الله ورته په کلکه کافر وائي. دوی دي هم په دغه خپل مرض اخته اوسي ، نتيجه به ئ کفر وي ، چې په بدل کې ئ ددنيا نه بې ايمانه تلل او په آخرت کې سره د ډيرې عبادتی او عملی ستړيا نه ابدي جهنم دی. هغه پروژه دا ده چې مسلمان دالله تعالی د بعض قانون په ځائ د انساني قانون د حاکم کولو قائل شي.

وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللهُ إِلَيْكَ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ اللهُ أَنْ يُصِيبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ وَإِنَّ كَثِيرًا مِنَ النَّاسِ لَفَاسِقُونَ(۴۹المائده)۔

د خيبر يهودي سړي او ښځې زنا کړی وو ، دواړه واده وو ، د بنو قريظه په توسط ئ نبي عليه السلام ته فيصله راوړه ، نو الله تعالی نبي عليه لسلام ته وايي: تۀ په دوي باندې اسماني قانون نافذ کړه، په انساني عقل او رائ جوړ شوی قانون چې دوي خوښ کړی د ی عمل اونکړې. او ځان سنته ددوی نه چې ته د الله تعالی د يوې سزا نه هم اونه خويوي ، پس که دوي نه منی نو پوهه شه چې يقينًا الله فيصله کړې ده چې دوي ته عذاب ورکړي هم په دغه يو ګناه باندې ، او يقينا ددوي ډيرو خلقو د الله د حکم نه بغاوت کړی دی. أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ. د رحماني قانون په ځائ بل قانون غوښتل د جاهليت يعني دکفر قانون غوښتل دي، او هيڅ ثوک نشي کيدلی د الله تعالی نه خائسته قانون جوړونکی دهغه خلقو لپاره ثوک چې د الله تعالی په حاکميت يقين کونکي دي۔

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَبْغَضُ النَّاسِ إِلى الله ثَلَاثَة ملحد فِي الْحرم ومبتغ فِي الْإِسْلَام سنة الْجَاهِلِيَّة وَمُطَّلِبُ دَمِ امرِىءٍ بِغَيْرِ حَقٍّ لِيُهرِيقَ دَمَه.(رَوَاهُ الْبُخَارِيّ)۔

حاصل دا چې الله تعالی مؤمنانو ته خبرداري ورکوي:چې أهل کتاب تاسو کافران کوي ، ستاسو نه دالله تعالی حکومت او حاکميت ختمول غواړي۔

احاديث مبارکه کې هم دا خبره ذکر ده :

١ ـ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَيَأْتِيَنَّ عَلَى أُمَّتِي مَا أَتَى عَلَى بَنِي إِسْرَائِيلَ حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ حَتَّى إِنَّ كَانَ مِنْهُمْ مَنْ أَتَى أُمَّهُ عَلَانِيَةً لَكَانَ فِي أُمَّتِي مَنْ يَصْنَعُ ذلِكَ وَإِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ تَفَرَّقَتْ عَلَى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِينَ مِلَّةً وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِي عَلَى ثَلَاثٍ وَسَبْعِينَ مِلَّةً كُلُّهُمْ فِي النَّارِ إِلَّا مِلَّةً وَاحِدَةً قَالُوا وَمن هِيَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ مَا أَنَا عَلَيْهِ وأصحابي . (رَوَاهُ التِّرْمِذِيّ ) ـ لام ونون تاکيد جواب قسم وي،نبی عليه السلام دا أمت منکر فرض کړی دی ،اوخبره ورته په قسم سره کوي:چې په دې أمت به داسې حالات راځي ،لکه په بني اسرائيلو چې راغلي وو ، تشبيه په اعتقادي اوديني حالت کې ده ،يعني څنګ چې أهل کتاب دمشرکينو نه جدا شول، او دالله تعالی قانون ته ئ غاړه کيخودله،اوبيا دالله تعالی دقانون نه شاته شول ،نودا أمت به هم دغه شان دالله تعالی

قانون ته غاړه ایږدي او بیابه شاته کیږي. په تشبیه کې دمزید تاکیداو وضاحت لپاره نبي علیه السلام فرمائي: حذوالنعل بالنعل ، یعني څنګ چې جوړه پیزار دواړه یو شان وي ،او په دواړو کې هیڅ فرق نه وي، دغه شان په دې أمت کې اوپه بني اسرائیلو کې دالله دقانون په حقله هیڅ فرق نشته.

حتّی ان کان منهم من أتی أمّه علانیة. "حتی" لپاره د غایه دی ،ددې مثال مقصد مزید تاکید دی دداړو امتونو په یو شان کیدلو کې،یعني امت محمدیه د اهل کتابو سره دومره یوشان دي که په بني اسرائیلو کې څوک داسې تیرشوي وي چې یوقبیح عقلي او قبیح شرعي کار ئ کړې وي ،نودا أمت به ئ هم کوي، مثلًا :که په هغوي کې یو زوي دخپلې مور سره ښکاره بدکاري کړي وي ،نو زما په امت کې به هم داسې کیږي.

"**علانیة** " مطلب دا دی:چې دواړه مور او زوي په دې کار راضي وي ،او دچا نه ئ خوف وخطر نه وي ،یعني هغه فطري حیاء ئ هم ختمه شوي وي، کومه چې دټولو نبیانو مشترکه وحي ده: اذا فاتک الحیاء فاصنع ماشئت، داسې کار چې دفطري حیاء خلاف وي ،ندامت په نه وي، خوف وخطر په نه وي ،دا عقل سلیم نه قبلوي، نفس زنا عقلًا امکان لري ،هم ځکه دا منهي عنه شرعي دی،خو دا مذکورفی الحدیث د زنا نه هم قبیح عمل دی ،ځکه فقهاء کرام دزنا په تعریف کې وایي چې زناهغه بد عمل دی چې د غیر محرم سره وي. لکه څنګ چې نبي علیه السلام ددې اقبح عمل لپاره د زنا لفظ نه ذکر کوي. نوداسې کار غیرممکن وي په نزد دعقل سلیم ، اوچې دعقل سلیم د احاطې نه باهر شو نودا اسلام ددائرې نه هم باهر شو ،نوفاعل ئ کافر ګرځي په وجه دا استحلال یااستخفاف.

وإن بنی اسرائیل تفرقت علی ثنتین وسبعین ملة، بني اسرائیل چې دالله تعالی دقانون نه جدا شول ،نوخپل مینځ کې ۷۲ فرقې جوړې شوې ،ټول په دې متفق وو چې د حکم إلهي (رجم) نه ئ ډډه کوله عملًاوتنفیذًا، اګرچه اعتقاد کې ئ وو ،اوپه تورات کې هم وو، تلاوت ئ هم کیدو.

وتفترق أمتی علی ثلاث وسبعین ملة کلهم فی النار الاملة واحدة، او زما أمت به ۷۳ ډلې کیږي ،ټول به په اوور کې وي ،یعني ۷۲ ډلي،ځکه دابه دبني اسرائیلو په شان وي، صرف یوډله به دجهنم نه بچ وي.

قالوا ومن هي يارسول الله ؟، صحابه کرام تپوس وکړو دا به کومه فرقه وي ؟، قال ماانا عليه واصحابي ،نبي عليه السلام وفرمائيل : کومه چې زما او دصحابؤ په نقش قدم روان وو ، دهغوي دين ئ خپل کړې وو ، دلته د نبي عليه السلام ذکر تبرکًا دی ځکه د دې کلام مقصد دصحابه کرامو معيار بيانول دي لباره د نور امت ، لکه چې په بل روايت کې صرف دصحابو ذکردی ،هغه روايت په سنن ابوداود کې دحضرت معاويه رضی الله عنه نه منقول دی ،په هغې کې نبي عليه السلام فرمايي : واحدة في الجنة وهي الجماعة، يعني زما د امت به ۷۲ بومې فرقې به جهنم ته ځی، صرف صحابه کرام به جنت ته ځي ، څنګه چې د قرآن فيصله ده ـ نو دا حديث مويد بالکتاب دی ، الله تعالی په قرآن پاک کې فرمايي: وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ (۱۰۰التوبه) ـ

مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَى عَلَى سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُمْ مَغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا (۲۹) الفتح.

۲ـ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَتَتَّبِعُنَّ سُنَنَ مَنْ قبلكُمْ شبْرًا بشبرٍ وذراعاً بذراعٍ حَتَّى لَوْ دَخَلُوا جُحْرَ ضَبٍّ تَبِعْتُمُوهُمْ . قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى؟ قَالَ: فَمَنْ . (مُتَّفق عَلَيْهِ)ـ

نبي عليه السلام په قسم سره فرمايي: ستاسو د ژوند چلن او قانون به دمخکني خلقو په شان وي ، "شبرًا بشبرٍ " کامل مشابهت ته اشاره ده، اوديني مشابهت مراد دی۔" حَتَّى لَوْ دَخَلُوا جُحْرَ ضَبٍّ " دا دويم تاکيد دی په تشبيه کې، يعني دا أمت به دومره د مخکېنو خلقو په شان شي ،که بالفرض هغوي دا سې کار کړې وي چې هغه عقلًا ممکن نه وي،مثلًا که هغوي د سمساری سوري ته دننه شوي وي ،نو دا امت به هم دغه کار کوي ، يعني ښه به ګوري ،چې ديته سردننه کول سرخوړل دي، خوبيا هم که بني اسرائيلو کړې وي دا أمت به هم ورته ننوځي۔ صحابه تپوس کوي چې مخکني خلقو نه يهود او نصاری مراد دي؟ نبي عليه السلام وفرمائيل :نور څوک ! يعني هم دغه مراد دي ! دا کمال دصحابؤ دی چې دنبي عليه السلام د خلې مبارکې نه کومه خبره راوځي ،دهغوي ذهن ته هم هغه شان پريوځي څنګه چې مراد نبوي وي ، اوبيا په

**خپل ذهن اعتماد کلي نه کوي ،بلکه دنبي علیه السلام نه ئ تصدیق کوي -**أُولَئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَى -

په دې حدیث کې هم نبي علیه السلام دا بیان کړلو چې ددې أمت لپاره دډېر لوی غټ خطر د **أهل کتابو** په شان کیدل دي ، نو پکار ده چې **أهل کتاب** دقرآن دلارې وپیژندې شي، او دا خبره هم وپیژندی شي ،چې دوي په څه کافران شوي دي ،او دالله تعالی دعذاب مستحق ګرځیدلي دي ؟-

## تعارفِ أهلِ کتاب

د**أهل کتابو** پیژندل په درې اعتباره دي:۱- په اعتبار دنوم سره ، ۲- په اعتبار د جغرافیه سره ، ۳- په اعتبار دعقیدې سره -

## اولنی تعارف په اعتبار دنوم سره

دا**هل کتابو** مشهور نومونه دوه دي:۱- یونوم ئې په اعتبار دنسب سره دی:**بني اسرائیل**.

**اسرائیل** دحضرت یعقوب علیه السلام دویم نوم دی-دوي دهغوي اولاد دي ،ځکه ورته **بني اسرائیل** وئیلي کیږي -

۲- دویم نوم ئې په اعتبار دعقیدې سره دی: **اهل کتاب** -

دکتاب معني په اصطلاح دقرآن کې قانون ده ، دوي ته **اهل کتاب** ځکه وئیلي کیږي چې دوي دالله تعالی قانون ته غاړه کیخودونکي دي ، دا دواړه نومونه دا**هل کتابو** ددواړو مشهورو ډلو مشترک نومونه دي ،هم په دغه معنی ددوي اولنی ډلې ته یهود وئیلې شي ،دا جمع ده ،واحد ئ یهودي دی، د "هاد یهود " نه دی ، معنی ئ ده: رجوع کونکی، یعني دالله تعالی قانون ته رجوع کونکي. او هم په دغه معنی ددوي دویمې ډلې ته نصاری وئیلې شي ،دا جمع ده ،واحد ئ نصراني دی ، د "نصر ینصر" نه دی ، دلته د نصرت نه مراد نصرة الرعیة للحاکم دی ، ځکه بله معنی د نصرت دالله تعالی په حق کې متصور نه ده. پس معنی ئ ده: مدد کونکی یعني دالله تعالی حکومت منونکي. په قرآن کې چې هر ځائ دالله تعالی دنصرت ذکر راشي د هغې نه هم دغه ځانکړې معنی مراد ده - اولني دوه نومونه مشترک دي ،او آخري دوه نومونه دوي جدا جدا دي -

## دویم تعارف په اعتبار دجغرافیه سره

اهل کتاب د افریقې په دوه براعظمو کې آباد وو، زیات ترپه مصر، شام،فلسطین،اردن، لبنان وغیره کې وو۔

دمشرکینو په بیان کې مونږ وئیلي وو چې دوي دانبیاء علیهم السلام نسبیان او دهغوي دخاندان خلق دی، دغه شان أهل کتاب هم دي۔

کله چې مشرکینو دالله تعالی دحاکمیت نه په تسلسل سره انکار وکړو ،او الله تعالی ورته هم په تسلسل سره انبیاء رالیګل ،چې ابتداء ئ دحضرت نوح علیه السلام نه شوې وه ،چې حاکمیت اوعبادت دالله تعالی حق دی،لهذادانسانانو لپاره دژوند یعني دقضاء،دحلالو ،دحرامو ،دعقوباتو قانون به د الله تعالی دطرفه وي،اوعبادت به دهغهٔ دامر مطابق وي۔ خوچاورسره اونه منله۔هرقوم خپل قوانین اعلان کړي وو ،چې نسبت به ئ مشر ته یا اولس ته کیدو۔دغه شان عبادت هم دخپلې خوښې لوبه ګرځیدلې وه۔

قوم نوح هغه اولنې ټولنه ده چې د اولس دجګړو دختمولولپاره ئې دملأالقوم په نوم یوبااختیاره مقننه جوړه کړې وه ،او دالله تعالی قانون ئې لغو کړی وو۔علت ئ دا بیانولو چهٔدا داوسني اولس یا دوخت دحالاتو تقاضا ده :وَقَوْمَ نُوحٍ مِنْ قَبْلُ إِنَّهُمْ كَانُوا هُمْ أَظْلَمَ وَأَطْغَى (۵۲ النجم) .او د نوح قوم چې دټولو نه رومبنی دی بیشکه هغوي دټولو نه اولنۍ ټولنه ده چې د الله حق ئې مخلوق ته ورکړو ،او اولنی قوم دی چې د الله تعالی په ځائ ئې انسانانو ته فیصلې وړاندې کړې۔

نن صبا چې ورته پارلمان، قومي جرګه، قومي اوصوبائي اسمبلي وئیلې شي۔قرآن کریم ورته "ملأالقوم " وئیلي دي، داتسمیه بالمظروف ده ،اونن صبا ئ تسمیه بالظرف ده۔

حضرت نوح علیه السلام خپل قوم ته ۹۵۰ کاله دا خبره کړې ده ،چې قانون جوړول دالله تعالی حق دی، تاسودالله تعالی حق غصب کړی دی ،نوددې نه توبه وباسئ ،او دالله تعالی رالیګلی اسماني قانون ومنئ، خو قوم ورسره هر وخت په مخالفت کې وو، او دوخت د تیریدو سره دخلقومخالفت او داسماني قوانینو نه تیښته او بیزاري زیاتیده.

حضرت نوح علیه السلام الله تعالی ته سوال وکړو: رَبِّ لَا تَذَرْ عَلَى الْأَرْضِ مِنَ الْكَافِرِينَ دَيَّارًا ٢٦ إِنَّكَ إِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا (٢٧ نوح ).

په دوي پسې قوم هود دی ، دا د قوم نوح نه پاتې شوي خلق وو : أَوَعَجِبْتُمْ أَنْ جَاءَكُمْ ذِكْرٌ مِنْ رَبِّكُمْ عَلَى رَجُلٍ مِنْكُمْ لِيُنْذِرَكُمْ وَاذْكُرُوا إِذْ جَعَلَكُمْ خُلَفَاءَ مِنْ بَعْدِ قَوْمِ نُوحٍ وَزَادَكُمْ فِي الْخَلْقِ بَسْطَةً فَاذْكُرُوا آلَاءَ اللهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ (٦٩ الاعراف) ، يو اضافي نعمت ئ ورته هم ورکړي وو ، غټ غټ وجودونه ئ وو ، الله تعالی ددوي په باره کې فرمايي: الّتي لَم يُخلَق مِثلُها فِي البِلادِ (٨ البروج) ، دوي هم په خپل زور او طاقت باندې ډير مغرور وو : فَأَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوا فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَقَالُوا مَنْ أَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّ اللهَ الَّذِي خَلَقَهُمْ هُوَ أَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يَجْحَدُونَ (١٥ حم السجده) ، دنوح علیه السلام پشان هودعلیه السلام هم خپل قوم ته وايي :وَيَاقَوْمِ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَى قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ ٥٢ هود ، ای زما قومه ! تاسو دالله تعالی دحق حاکمیت اوعبادت نه انکار کړی دی،ددې نه توبه وکړئ ،الله تعالی خپل رب اوحاکم ومنئ ،او په دې مداومت وکړئ ،هغه به په تاسو په شيبو شيبو باران اووروي ، اوستاسو زور به نور هم زيات کړي ،او بيا داجرم مهٔ کوئ .

قوم ورسره نه مني،طغيان او بداخلاقي ئ بنه زياته شوله په نسبت دقوم نوح ،دکومې ذکر چې نوح علیه السلام په خپې بددعاء کې کړی دی : إِنَّكَ إِنْ تَذَرْهُمْ يُضِلُّوا عِبَادَكَ وَلَا يَلِدُوا إِلَّا فَاجِرًا كَفَّارًا (٢٧نوح). قومِ عاد دتکذيب سره کنځل هم شروع کړل ،او هود علیه السلام ته ئې سفيه يعني بې عقله وئيل: قَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي سَفَاهَةٍ وَإِنَّا لَنَظُنُّكَ مِنَ الْكَاذِبِينَ (٦٦ الاعراف) ، ظن بمعنی يقين دی، يعني تهٔ دروغ واي چې حکومت دالله تعالی حق دی - قومِ نوح نوح علیه السلام ته کنځل نه دي کړي ، هغوي صرف تکذيب کړی وو يعني نوح علیه السلام ته ئ ضال اودروغژن وئيلي وو : قَالَ الْمَلَأُ مِنْ قَوْمِهِ إِنَّا لَنَرَاكَ فِي ضَلَالٍ مُبِينٍ (٦٠ الاعراف).

په دوي پسې قومِ ثمود دی ،هغوي ته صالح علیه السلام راغلی دی، الله تعالی ددوي په مطالبه باندې د صالح علیه السلام په دعاء يوه عجيبة الخلقة اوښه د کټې نه پيدا کړله: وَإِلَى ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ قَدْ جَاءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ هَذِهِ نَاقَةُ اللهِ لَكُمْ آيَةً فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللهِ وَلَا تَمَسُّوهَا

بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ (۷۳ الاعراف)، حضرت صالح علیه السلام د پخوا نه د دوي بد اخلاقي احساس کړي وه نو ورته وايي: دی له به په بده لاس نه وروړئ، يعني د خلې بد اخلاقي مو لاس ته لاړه نشي۔ هم دغه شان وشوه، او بنه ئ قتل کړه: فَعَقَرُوا النَّاقَةَ وَعَتَوْا عَنْ أَمْرِ رَبِّهِمْ وَقَالُوا يَاصَالِحُ ائْتِنَا بِمَا تَعِدُنَا إِنْ كُنْتَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ (۷۷ الاعراف)، او يو غټ پلان ئ جوړ کړلو چې د شپې به په صالح حمله وکړو، قتل به ئ کړو، او سهار به په ميډيا اعلان وکړو چې نامعلوم وسله والو په مرګ ورسولو، سره ددۀ نه په شمير نور ملګري ورسره هم مړۀ دي: وَكَانَ فِي الْمَدِينَةِ تِسْعَةُ رَهْطٍ يُفْسِدُونَ فِي الْأَرْضِ وَلَا يُصْلِحُونَ ۴۸ قَالُوا تَقَاسَمُوا بِاللَّهِ لَنُبَيِّتَنَّهُ وَأَهْلَهُ ثُمَّ لَنَقُولَنَّ لِوَلِيِّهِ مَا شَهِدْنَا مَهْلِكَ أَهْلِهِ وَإِنَّا لَصَادِقُونَ ۴۹ وَمَكَرُوا مَكْرًا وَمَكَرْنَا مَكْرًا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ۵۰ فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ مَكْرِهِمْ أَنَّا دَمَّرْنَاهُمْ وَقَوْمَهُمْ أَجْمَعِينَ ۵۱ فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةً بِمَا ظَلَمُوا إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَةً لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ (۵۲ النمل)۔

په دوي پسې حضرت شعيب عليه السلام دی، ددۀ په دور کې کفار ښه زړۀ ور شوي وو، ځکه ثمود يانو د قتل پلان پټ کړی وو، او پټ ئ ساتلو، خود "ايکه" او د "مدين" اولس مشرانو شعيب عليه السلام ته مخامخ د قتل زورنه ورکړه، خو د قوم په خاطر ئې د عملي کولو نه ډډه وکړه: قَالُوا يَاشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيرًا مِمَّا تَقُولُ وَإِنَّا لَنَرَاكَ فِينَا ضَعِيفًا وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنَاكَ وَمَا أَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيزٍ (۹۱ هود)، شعيب عليه السلام ورته په جواب کې وايي: يَاقَوْمِ أَرَهْطِي أَعَزُّ عَلَيْكُمْ مِنَ اللَّهِ وَاتَّخَذْتُمُوهُ وَرَاءَكُمْ ظِهْرِيًّا إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ (۹۲ هود)، زما د قوم نه مو سترګه سوزي، او د الله تعالی نه نه ؟۔

تردې چې الله تعالی ابراهيم عليه السلام راوليګلو.

## څلور قسمه بدلون

د تير شوي مشرکانو په مقابل کې د حضرت ابراهيم عليه السلام په قوم کې څلور قسمه بدلون راغلی وو:
۱. مخامخ په قتل ګام پورته کول، ۲. د خپلې خاورې نه ويستل، ۳. د بتانو ابتداء، ۴. د الله تعالی په صفاتو کې شرک

## اول انقلاب

دا بدلون دقومونو د بداخلاقۍ یو بد تصور دی ، تفصیل ئې دا دی چې د نوح علیه السلام قوم یو اځې تکذیب کولو ، دنوح علیه السلام دعوت یعني دالله تعالی وحدانیت ئې نه منلو ، په شرک کې ښه مضبوط وو ، یو بل ته ئې دشرک توصیه او دنوح دمخالفت دعوت ورکولو ، لیکن نوح علیه السلام ته ئې دسپکاوي خبرې یا کنځل نه دي کړي. دحضرت هود علیه السلام قوم ترقي وکړه ،او دتکذیب سره ئې هود علیه السلام ته کنځل او بد رد هم شروع کړل. قوم ثمود په بدبختیا کې دعادیانو نه یو ګام مخکې شول ، او د دبدو ردو سره ئې غوښتلې معجزه سره د منع کولو نه قتل کړه و او دحضرت صالح علیه السلام دقتل یوه پټه منصوبه ئې په اتفاق سره جوړه کړله. دې مخکني قومونو د بدنامۍ نه دبچ کیدلو لپاره کوم کار چې ښکاره نه شو کولی ،هغه کار قومِ ابراهیم په ښکاره شروع کړو یعني حاکمِ وقت ،ملأالقوم او اولس په جمع او په اتفاق سره دابراهیم علیه السلام دقتل فیصله وکړه:

قَالُوا حَرِّقُوهُ وَانْصُرُوا آلِهَتَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ فَاعِلِينَ(۶۸ الانبیاء) ـ فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا اقْتُلُوهُ أَوْ حَرِّقُوهُ فَأَنْجَاهُ اللَّهُ مِنَ النَّارِ إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يُؤْمِنُونَ(۲۴العنکبوت) ـ کله چې ئې د قتل منصوبه جوړه کړه ،اوعملي ئې کړه ،نو الله تعالی دنمرود شېږمیاشتني بل کړې اوور ته امر وکړو: قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَى إِبْرَاهِيمَ ۶۹ وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ (۷۰ الانبیاء)، او دی ئې دسوزیدلو نه وساتلو ، دا دده دحقانیت غټ دلیل وو ، ۴۰ ورځې الله تعالی په اوور کې بچ وساتلو ، د اوور دپروګرام لپاره ټول راجمع شوي دي ،په دې خاطر چې دوي یو غټ دهشتګرد ختمول غواړې.علماء لیکي چې اوور ته دغوزولو په وخت کې چې ابراهیم علیه السلام د منجنیق یعني د توپې دشپیلۍ په خله کې تړلی پروت وو نوملائکو الله تعالی ته زاري وکړه چې ابراهیم اوور ته غورزولی کیږي ،اجازت راکړې.الله تعالی اجازت ورکړه ـد اوبو ، دهوا او دنورو امورو موظف ملائک راکوز شول او ابراهیم علیه السلام ته ئې خپل خپل خدمتونه وړاندي کړل ـ حضرت ابراهیم علیه السلام تپوس وکړو دا د الله تعالی امر دی او که ستاسو خپله خوښه ده ؟ـ ملائکو وئیل:دالله تعالی اجازت دی ،نو ابراهیم علیه السلام وئیل:اذًا لا ، زخ ستاسو خدمتونه نه قبلومه ـ ملائکو فوري اووئیل: چې تهٔ دالله تعالی نه وغواړه ـ ابراهیم علیه السلام وئیل: علمه بحالي

يکفيني عن سؤالي ـ او په دې کې ابراهيم د توپې د شپيلۍ نه د اوور غيږ ته د بی سا کانړي په شان وغورزولو ،خود ابراهيم عليه السلام په څه پروا ه نشته ـ

يو شاعر وايي:

إنّ قومی تجمّعوا وبقتلی تحدّثوا

لاأبالی بجمعهم کلّ جمع مؤنّث

دغه شان ايمان دصحابه کرامو هم وو :الذين قال لهم الناس ان الناس قد جمعوا لکم فاخشوهم فزادهم ايمانا الايه ـ لنډه دا چې د دغه اتحاد يانو پلان الله تعالى شنډ کړو : وَأَرَادُوا بِهِ كَيْدًا فَجَعَلْنَاهُمُ الْأَخْسَرِينَ (٧٠) وَنَجَّيْنَاهُ وَلُوطًا إِلَى الْأَرْضِ الَّتِي بَارَكْنَا فِيهَا لِلْعَالَمِينَ (٧١) الانبياء ـ

## دويم انقلاب

تر اوسه پورې چا زورآورو دوخت حاکم څوک نبي دخپل ښاراو وطن نه نه وو اوباسلی ،دا دقوم دويمه منصوبه وه د پيغمبر خلاف ،چې يو نبي ئ دخپل وطن نه وباسو ، ابراهيم عليه السلام اولنې انسان دی چې دالله تعالي دحاکميت په عقيده او په مطالبه باندې دهشتګرد بللې شوی دی ،او دخپل ښار نه د ويستلوئې فيصله شوې ده ـ

د وخت بادشاه او دقوم مشرانو داکار دابراهيم عليه السلام پلار ته حواله کړو ، ځکه هغه دوخت د حاکمانو دټولګي غټ غړی وو ،صرف غټ غړی نه بلکه په ټول پارلمان کې د ديني اعتماد هم وړ وو ، شفيع ته دعکوف لپاره ددهٔ په جوړه کړې عبادت خانه کې پينځهٔ بتان وو ،اوچاچې به ځانګړی او مستقل شفيع يعني بت غوښتلو ، نو ددهٔ نه به ئ شفيع اخستلو ، چې دهٔ به په دستخط يعني لاسليک وکړو نو دغه به بيا اعتباري شفيع وو ،که نه د بل چا دا مرتبه اوحيثيت نه وو ـ

حضرت ابراهيم عليه السلام د داسې خاندان سړی دی چې په امانت،په صداقت ،او په شرافت باندې مشهور دي ،تر اوسه پورې ټول قوم به دابراهيم په شرافت باندې هم افتخار کولو ، داسې انسان دملک نه ووباسل يو مشکل کار وو ، ځکه ابراهيم عليه السلام د اوسه پورې سپين وو ، اوس تور شو ،د اوسه پورې صادق وو ، اوس کاذب شو ، دا څنګه ؟ ،ددې مشکل د سرکولو لپاره يو ستره محکمه پکار ده ـ

محکمه جوړه شوه ،او مشر ئ آزر منتخب شو ،آزر دا فیصله وکړله: قَالَ أَرَاغِبٌ أَنْتَ عَنْ آلِهَتِي يَاإِبْرَاهِيمُ لَئِنْ لَمْ تَنْتَهِ لَأَرْجُمَنَّكَ وَاهْجُرْنِي مَلِيًّا (۴۶ مریم)- چې ابراهیم به د ملک نه ووځي ،که نه دې ځل له ئ په کانړو ولو ، او مړ کوو ئ ـ

دا دابراهیم علیه السلام دخپل پلار سره خپل منځي یا کورنۍ مسئله نه وه ،بلکه دا دټول قوم اود حکومت مسئله وه، دا دبادشاه سره جګړه وه دحکومت اود قانون په باره کې- ابراهیم علیه السلام خپل پلار او قوم ته په جواب کې وایي: وَأَعْتَزِلُكُمْ وَمَا تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللهِ وَأَدْعُو رَبِّي عَسَى أَلَّا أَكُونَ بِدُعَاءِ رَبِّي شَقِيًّا (۴۸)- دا خپل پلار ته یوائې خبره نه کوي، بلکه دحکومت ټول غړي ئ مخاطب کړي دي چې تاسو اوستاسو حاکمان پریږدم- اودخپل رب حاکمیت منم، نو دا دابراهیم اودهغهٔ دبابا خپل منځنۍ جګړه نه ده ،بلکه د وخت دحاکمانو سره جګړه ده، ابراهیم علیه السلام په هجرت باندي مجبور کړی شو ، الله تعالی ورته دهجرت نه روستو ډیر انعامات ورکړل : فَلَمَّا اعْتَزَلَهُمْ وَمَا يَعْبُدُونَ مِنْ دُونِ اللهِ وَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ وَكُلًّا جَعَلْنَا نَبِيًّا ۴۹ وَوَهَبْنَا لَهُمْ مِنْ رَحْمَتِنَا وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا ( ۵۰ مریم) ،قوم چې په دۀ کوم افتخار کولو هغه افتخار ورله الله تعالی باقي پاتې کړو ، تر قیامته پورې به خلق ځان ته ابراهیمیان وایي-

د ابراهیم علیه السلام دهجرت نه معلومیږي چې دهجرت لپاره دوه شرطونه دي:۱- دطاغوت دطرفه په وطن پریخودلو جبر ،۲-ورانه دالله تعالی په حاکمیت. دا دواړه خبرې دابراهیم علیه السلام په هجرت کې وې، دابراهیم علیه السلام سره لوط علیه السلام هم وو- **فآمن له لوط**، بیا لوط علیه السلام ته هم الله تعالی نبوت ورکړو ،او دسدوم اودنورو څلور ښارونو حاکم ئ کړو، لیکن دغه خلقو دی دالله تعالی دطرفه نائب حاکم نه منلو-

## دریم انقلاب

د عبادت په باب کې دبتانو ابتکار، یعني هغه شفیع چې تر اوسه پورې یو تصور او خیال وو، خارج کې ئ وجود نه لرلو، محض یو خیالي او فرضي هیولا وه، په قوم ابراهیم کې اول ځل داکار وشو چې دغه شفعاو ته خیالي ،مثالي او فرضي شکل ورکړی شو، هم ددې وجې نه ورته تمثال وئیلی کیږي ،چې جمع ئ تماثیل ده ، هم په دغه معنی ئې دویم نوم صنم دی، یعني صنم او تمثال مترادف دي، هم ددي

وجې نه ددې دواړو لفظونو استعمال په شعرونو کې زيات کيږي ، چې اکثر پکې د استعارې يا د مجاز مرسل نه کار اخستل کيږي ـ

په انساني تاريخ کې دا يو نوی کار وو نو ځکه ابراهيم عليه السلام په ډير تعجب سره تپوس کوي : إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا هَذِهِ التَّمَاثِيلُ الَّتِي أَنْتُمْ لَهَا عَاكِفُونَ (۵۲ الانبياء) ـ إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ يَاأَبَتِ لِمَ تَعْبُدُ مَا لَا يَسْمَعُ وَلَا يُبْصِرُ وَلَا يُغْنِي عَنْكَ شَيْئًا (۴۲ مريم) ،إِذْ قَالَ لِأَبِيهِ وَقَوْمِهِ مَا تَعْبُدُونَ (۷۰ الشعراء) - کله چط اوئيل ابراهيم عليه السلام خپل پلار او خپل قوم ته: ستاسو ددې عبادت څه حقيقت دی ؟،آيا دعبادت حقيقت مو بدل کړلو ؟ ـ قَالُوا نَعْبُدُ أَصْنَامًا فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِينَ ـ قوم وئيل: مونږ حاجت غواړو دبُتانو نه يعني ټوله ورځ ورته ناست يو. بيا دقوم نه دعقيدې تپوس کوي: قَالَ هَلْ يَسْمَعُونَكُمْ إِذْ تَدْعُونَ ۷۲ أَوْ يَنْفَعُونَكُمْ أَوْ يَضُرُّونَ ۷۳، آيا په دوي کې صفت د علم شته چې تاسو ترې حاجت غواړئ؟ ،آيا دوي کې صفت د قدرت شته چې تاسو ته نفع يا ضرر ورسوي ؟، يعني صوري انقلاب خو په تاسو کې راغلی دی ،خو عقيدوي انقلاب درکې راغلی دی کنه ؟، قوم په جواب کې وايي :قَالُوا بَلْ وَجَدْنَا آبَاءَنَا كَذَلِكَ يَفْعَلُونَ (۷۴ **الشعراء** )، په دوي کې مونږ نه علم منو او نه پکې قدرت منو ، مونږ دپلار نيکه په عقيده يو ،چې په شفيع کې علم او قدرت نه مني ، مونږ يو اځې صورت بدل کړی دی ـ

## څلورم انقلاب

ترديې وخته پورې کوم شرک چې راروان وو هغه صرف په دې خبره کې وو چې د الله تعالی حق ئ نه منلو (حق حکومت او حق عبادت)ـ ذات،صفات او افعال دالله تعالی ئ منل ،په دې کې ئ شرک هم نه کولو ، نو ابراهيم عليه السلام چې دپلار اودقوم جواب واوريدو نو دا ګمان ئ وکړو ، چې دقوم عقيده هم هغه ده کومه چې ددوي دمشرانو ده ،خو صرف صورت دعبادت بدل شوی دی ،نو کله چې ديحاکم وقت ته دالله تعالی دحاکميت دعوت ورکوي ،نو دقوم دعقيدې په بنياد ئ ورکوي : أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِي حَاجَّ إِبْرَاهِيمَ فِي رَبِّهِ أَنْ آتَاهُ اللَّهُ الْمُلْكَ إِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّيَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (۲۵۸ البقره)،

تهٔ نه ګورې هغه چاته چې بحث کوي دابراهيم سره په بادشاه دهغهٔ کې ،ځکه چې الله تعالی هغه ته حکومت ورکړی وو ،کله چې ووئل ابراهيم: زما رب هغه ذات دی چې ژوندي کوي او مړهٔ کوي ، هغهٔ

ووئیل :زۀ هم ژوندي کومه او مړۀ کومه ، ووئیل ابراهیم : یقینًا الله تعالی راخیژوي لمر دمشرق نه ،نو تۀ ئ راوخیژوه دمغرب نه ،نولاجواب شو هغه څوک چې اللهٔ حاکم نه منلو ،او الله نه کوي هدایت هغه خلقو ته چې دالله حق ئ نورو ته ورکړی وي۔

حضرت ابراهیم علیه السلام په خپله دعوی "چې زما حاکم الله تعالی دی "په دلیل کې قدرت کامله پیش کړو ،ځکه قدرت کامله علت دی دحاکم کیدو لپاره، ابراهیم علیه السلام ته تراوسه پوري پته نه وه چې څه خلقو د الله تعالی په صفاتو کې هم شرک شروع کړی دی ، دا ئ اولنی حاکم ولیدو چې د"شرک فی الصفاۃ" هم معتقد وو ۔ نوابراهیم علیه السلام ددغه شرک ابطال په دلیل سره شروع کړل.

قدرت چې علت دی لپاره دحاکمیت ، دهغې دعوي د وخت حاکم وکړله چۀ زۀ په علت دحاکمیت سنبهال یم ،لهذا زۀ حاکم یم ،دحکومت حقدار یم۔ ابراهیم علیه السلام په دلیل سره دهغه نه دعلت یعني د قدرت نفي کوي ،او په دلیل سره ثابتوي چې داعلت یواځې دالله تعالی سره خاص ی،لهذا دحاکمیت حقدار یواځې هغه دی۔ ددلیل حاصل دادی: چې دحاکمیت لپاره کوم قدرت چې علت منلی شوی دی، هغه قدرت مافوق الاسباب دی ، او دغه قدرت سره ستانه په یو مخلوق کې هم نشته ،ځکه ددې تعلق دمشاهدي او دتجربې سره وي ،نوکه تۀ مافوق الاسباب قدرت لری ،نو ددنیا دنظام په غټو اسبابو کې یو لمر دی چې په دې کې او په اثریعني معلول کې ئ تخلف نه وي ، او دا الله تعالی دمشرق نه راخیژوي او په مغرب کې ئ ډوبوي ، نوکه تۀ په خپله دعوی کې رښتنی ئې چې تۀ هم دحاکمیت په علت سنبهال یې ،اومافوق الاسباب قدرت لری نو دا لمر چې علت او سبب دی دکائنات دنظام لپاره ۔ تۀ دا د مغرب نه راوخیژوه .دا ګز او دامیدان۔

فَبُهِتَ الَّذِی کَفَرَ ،دغه کافر لاجواب شو۔ عقلًا خو ئ دا سې وئیلې شو چې دا دمشرق نه ئ زۀ راخیژوم ،خو دا ئ نه وئیل، ځکه د دۀ داهم عقیده وه چې کواکب مؤثر دي ،نو په داسې وئیلو سره ددۀ ددغې عقیدې ابطال راتلو یعني کواکب بیا مؤثر نه پاتې کیدل ،بلکه ددۀ نه به ئ اثر قبلولو ، نو ځکه چپ شو ۔ دا څلورم انقلاب وو چې شرک في الصفات شروع شوې وو۔

ابراهیم علیه السلام داخبره احساس کړه چې دا دنیا دخیر نه شر طرف ته روانه ده ،او انسانان د وخت د تیریدو سره دالله تعالی نه انکاري کیږي، دالله تعالی دحق نه دانکار نه روسته خبره دحق دعلت نه انکار کولو ته ورسیده ،په یو شرک کې د تصلب نه روستو یوبل قسم شرک شروع شو ،او دغې

مشرکینو هم زور موندلی دی ـ که دا دنیا دغه شان پاتې شوه نو بالآخر دالله تعالی دذات نه او دهغهٔ دنوم نه به هم انکار شروع شي ـ بیا به څوک دالله نوم وئیونکی هم نه وي ـ نو الله تعالی ته ئ سوال شروع کړو ـ الله تعالی دابراهیم علیه السلام د سوال قبلولو لپاره څه وظائف ورته وښودل : وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِي قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ (۱۲۴ البقره) .

دا که په صورت د ښځې او دبچي پریخودو کې وي په یو خوشي بیابان کې، او که د خپل نازولی زوی دذبح کولو په صورت کې وي یا نور څه ـ ابرهیم علیه السلام دالله تعالي حکمونه پوره کړل ، الله تعالی ورته إمامت ورکړو یعني دانسانانو دمشرۍ منصب امامتِ کُبری او صُغری دواړه ـ

بیاورته الله تعالی دخپل مرکز جوړولو أمر وکړو ،او دشام نه مکې ته د تلو أمر ئ ورته وکړو ، هلته ابراهیم علیه السلام زوي او ښځه مخکې پریخودي وو ، ابراهیم علیه السلام اسماعیل علیه السلام ته دالله تعالی أمر واورولو چې دخلقو دشرک په وجه الله تعالی خفه شوی وو او دخپل حکومت اوعبادت مرکز ئ ختم کړی وو ، اوس الله تعالی راضي شوی دی، دغه مرکز دوباره ښکاره کوي ،او خپل حکومت په دویم ځل په دنیا کې قائمول غواړي: هُوالَّذی أرسَلَ رسُولَه بالهُدی وَدِینِ الحقِّ لیُظهِره علی الدّینِ کُلِّه ، ددې لپاره به الله خپل رسولان رالیږي ـ

ابراهیم علیه السلام دځان سره اسماعیل علیه السلام ملګرې کړو ،او دجبریل په ښودنې سره ئ دبیت الله بنیادونه ښکاره کړل، پلار او زوی دغه بنیادونه راپورته کوي او دکوم مقصد لپاره چې مرکزجوړوي هغه په دعا کې وایي :

رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِن ذُرِّيَّتِنَا أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَأَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا إِنَّكَ أَنتَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ (۱۲۸ البقره) ، ای زمونږ حاکمه !مونږ خپل حکمبردار وساتی ، اوزمونږ په اولاد کې دخپل حاکمیت د قبلولو خلق پیدا کړی ،اود ژوند تیرولو طریقه راته وښاي ،او ته زمونږ توبه قبوله کړې، یقینًا یو اځې ته توبه قبلونکی او ډیر مهربانه ئې۔

دلته دبیت الله ذکر دی نوذهن په خپله طواف اوحج طرف ته ځي ،شیخ الهند رحمه الله ددی قرینې په وجه معنی کوي:دحج طریقې راته وښایه ـ بیا په سورة الحج آیت ۳۴ :وَلِكُلِّ أُمةٍ جَعَلنا مَنسَكًا ، کې د "منسک " معنی کوي:قرباني ـ ځکه وړاندې ورسته دقربانۍ ذکر دی ـ او په سورة الحج آیت ۶۷ :لِكلِّ

أمةٍ جَعَلنا مَنسَكًا، کې د "منسک " معنی کوي: ایک راہ بندگی کی، یعني یو قانون دژوند د تیرولو. دا عامه معنی ده او تیرشوي دوه معنې خاص دي یعني دا دواړه خاص معنې د عامې معنې افراد او مصداق دي ـ هم دغه عامه معنی په دغه دوه خاص معنو کې اساس ده ـ لهذا په " وأرنامناسکنا " کې به د "منسک " اساسي معنی شي: دژوندلاره یعني قانون ـ

رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولًا مِنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ إِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (۱۲۹ البقره).

ای زمونږ حاکمه ! په دوي کې رسولان راولیګه ، چې ستاآیتونه ورته تلاوت کوي ، او ستا قانون ورته زده کړي ، او د عبادت تزکیه ئ وکړي ځکه دوي عبادت ککړ کړی دی، شفیع ئ په کې راوستی دی ـ په "والحکمة " کې واو تفسیریه دی، ځکه د الله تعالی قانون د الله تعالی علم او حکمت وي ـ

حضرت ابراهیم علیه السلام د بیت الله اساس راخیژوي نو ددۀ دعا به هم اساسي وي ځکه دی په خپله اساسي دی ، د ملت پلار دی "ملة ابیکم ابراهیم " ، چې د کوم رسول لپاره سوال کوي د هغۀ کار به هم اساسي وي ، چې د عقیدې اصلاح به کوي ، او هغه عقیده به هم اساسي عقیده وي ، چې د حاکمیت عقیده ده ، ځکه چې حاکمیت اساس دی د عبادت لپاره ـ

د حضرت ابراهیم علیه السلام دعا قبوله شوه ، او الله تعالی د پیغمبرانو په وساطت سره خپل حاکمیت په خپله زمکه کې په خپلو بندګانو قائم کړو "فلله المنّ والاحسان وله الحمد فی الاولی والآخرة " ـ

د حضرت ابراهیم علیه السلام په دعاء کې لفظ "ذرّیّتنا "عام دی ـ د حضرت ابراهیم علیه السلام دواړه زامنو ته شامل دی ، چې اسحاق او اسماعیل علیهما السلام دي ـ دغه شان په "وابعث فیهم رسولا " کې جنس رسول مراد دی، الله تعالی هم دا دعاء دغه شان قبوله کړې ده ، دا د ابراهیم علیه السلام فضیلت دی چې ددۀ نه روستو څومره پیغمبران راغلي دي ، نو ددۀ په اولاد کې دي، په دی سره الله تعالی ابراهیم علیه السلام ابوالانبیاء او د ملت پلار او د کل انسانانو امام وګرځولو ـ

دابراهیم علیه السلام زامن اسحاق او اسماعیل علیهما السلام دي، د اسحاق علیه السلام زوی یعقوب علیه السلام دی، او دهغهٔ زوي یوسف علیه السلام دی، هغه په حکومت او په بادشاهۍ مشهور دی او دا حکومت ډیر وخت پاتې شوی دی۔

## دابراهیم خلیل الله دوه غټ شرافتونه

الله تعالی حضرت ابراهیم علیه السلام ته دوه غټ شرفتونه ورکړي دي. یو عظیم شرافت ئې د اسحاق علیه السلام په اولاد کې ورکړو: کثرتِ رسل یعني ډیر پیغمبران موسی، عیسی، سلیمان، داود، ایوب، زکریا وغیره علیهم السلام د اسحاق علیه السلام په اولاد کې دي.

او بل غت شرافت الله تعالی د اسماعیل علیه السلام په اولاد کې ورکړو: ختم نبوت، یعني خاتم النبیین محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم ئې د اسماعیل علیه السلام په اولاد کې پیدا کړو، نو د کثرة الرسل شرافت هم د ابراهیم علیه السلام په اولاد کې دی، او د ختم الرسل شرافت هم دهغهٔ په اولاد کې دی، نو دا ډیر لوې عزت، کرامت او شرافت دی د ابراهیم علیه السلام لپاره۔ ددي شرافت زیری ورته الله تعالی په هغې وخت کې ورکړی چې کله په امتحان کې کامیاب شو: قَالَ اِنِّي جَاعِلُکَ لِلنَّاسِ اِمَامًا۔

### دیهودو د صحابه کرامو سره دحسد وجه

أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَى مَا آتَاهُمُ اللهُ مِنْ فَضْلِهِ فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُمْ مُلْكًا عَظِيمًا (۵۴ النساء)، آیا أهل کتاب دصحابه کرامو سره په دې خبره حسد کوي چې الله تعالی حکومت صحابؤ ته ورکړی دی، نو دا دحسد وړ خبره نه ده ځکه مونږ آل ابراهیم ته قانون، نبوت او ستره بادشاهي ورکړې ده، یهود دځان نه علاوه بل ځوک دحکومت حقدار نه مني، دوي وایي: نحن ابناء الله واحباءه. مونږ دالله تعالی نائبان او خوښ یو، لهذا دزمکې حاکمان مونږ بني اسرائیل یو۔ الله تعالی فرمایي دغه فضل او انعام یعني قانون او نبوت او عظیم حکومت ما ابراهیم علیه السلام او دهغه اولاد ته ورکړی دی، چې دستا په اولاد کې به پیغمبري او حکومت وي، او ستا په اولاد کې چې چا ظلم وکړو یعني دالله تعالی حق ئې مخلوق ته ئې ورکړو نو هغه به ددې نعمت حقدار نه وي، او بل چا ته به ئې ورکوم، د ابل به هم

دابراهیم علیه السلام اولاد وي نو دالله تعالی لوظ او دابراهیم علیه السلام فضیلت په خپل ځائ پاتې شو.

دیهودیانو دا دعوی ده چې دالله تعالی لوظ د إمامت یعني دحکومت دبني اسرائیلو سره خاص دی ، لکه په حدیث صفوان کې ذکر دي : قَالُوا إِن دَاوُد دَعَا ربه أَن لَا يزَال فِي ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ، دوه یهودیانو نبي علیه السلام ته دروغ وئیل: چې داود علیه السلام سره الله تعالی لوظ کړی دی چې پیغمبران به ستا په اولاد کې وي، ددې دروغو مقصد ئ داوو چې دزمکې حکومت په بني اسرائیلو پورې خاص دی ځکه داود علیه السلام د یعقوب علیه السلام په اولاد کې دی، لهذا محمد د زمکې حاکم او نبي نه شي کیدې، ځکه دې خو د داود علیه السلام په اولاد کې نه دی.

الله تعالی فرمایي :دظلم نه روستو ستاسو د دې لوظ او فضیلت سره هیڅ تعلق پاتې نه دی ،ځکه د اولادِ ابراهیم لپاره دا فضیلت په دی شرط سره وو چې دالله تعالی حقِ حاکمیت او عبادت مخلوق ته ورنه کړي، او تاسو دا ظلم کړی دی: وَإِذِ ابْتَلَى إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِي قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ. لهذا څنګ چې مخکنی حکومت په آل ابراهیم کې وو ، اوس هم په آل ابراهیم کې دی، او دا حکومت به ملک عظیم هله ګرځي چې جزیره عرب ،یمن ،شام ،مصر او ارض عجم ټول ته شامل شي دکومې چې الله تعالی په دط آیت کې ذکر کړی دی.

په حدیث شریف کې چې نبي علیه السلام فرمایي :انادعوة ابي ابراهیم ، زه دخپل پلار یعني دابراهیم علیه السلام دعاء یم. په دی حدیث صحیح کې دا نشته چې نورخوک به دابراهیم علیه السلام دعا نه وي، بلکه دا دعا یو طرف ته په حق د یوسف علیه السلام کې قبوله شوې ده ،او بل طرف ته په حق دنبي علیه السلام کې قبوله شوې ده، علماء معاني فرمایي: تنصیص بالشیئ نفي دماعدا نه کوي.

## په زمکه باندې دالله تعالی دحکومت ادوار

تر او سه پورې چې عیسوي تاریخ ۲۰۱۹ ء. ۱۲. ۱۵ او هجري قمري تاریخ ۱۸ ربیع الثاني ۱۴۴۱ دی ،پینځه ځله دالله تعالی حکومت په زمکه قائم شوی دی.

## دالله تعالی دحاکمیت اولنی دور

اول دور د آدم علیه السلام وو ،د هغه قانون هم اسماني وو او هغه هم اسماني وو ، په هغې پسې د دغه دور څه انبیاءعلیهم السلام په نوم سره معلوم دي لکه شیث علیه السلام ،ادریس علیه السلام ،او څه نور خلق وو چې پکې اختلاف دی د نبي او غیر نبي ،لکه ود ،سواع ،یغوث، یعوق، نسر، د دوي د وخته پورې به په اسماني قانون فیصلې کیدي چې د وحي په اصطلاح ورته دالله تعالی عبادت ویلی کیږي ، دالله تعالی په نزد د تحاکم اساس اسماني علم دی چې دهغې نه بغیر انسان ظالم او جاهل دی : إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا (۷۲الاحزاب) ـدی دور ته دورِآدمي ویلی شي .

ددوي نه روستو دزمکې نه دالله تعالی حکومت ورک شو دشیطان په لمسه باندې ،چې دغه قاضیان خو په لرې لرې ښارونو کې دي، دومره لرې فیصله وړل گران دي، په دې نزدې کې مشران شته ،په دوي باندې فیصلې کوئ. اول کې دا خبره چا نه منله، خو ورو ورو دالله تعالی قانون ته تحاکم یعني فیصله وړل منقطع شو ، او مشرانو ،سپین گیرو ،مخه ورو ،زورآورو ته تحاکم شروع شو چې دقرآن په اصطلاح کې ورته دطاغوت عبادت وئیلی کیږي. حضرت شاه عبد القادر رحمه الله فرمایي : او هم دغه ته شیطان او بت او ظالم وئیلی کیږي ـ د طاغوت دور حکومت شروع شو چې اساس ئې انساني عقل دی ،او دقرآن په تصریح سره انساني عقل جهل او ظلم یعني ناپوهي او تیاره ده .شیطان چې کله دحاکمیت په میدان کې ئ انسان راو پرځولو ،نو په عبادت کې ئ ورسره لوبې شروعع کړې ،او په داسې شرکونو کې ئ اخته کړل چې د سړو او دښځو نه ئ جامې وباسلي ،قرآن ورته "سوء" او "فحشاء" وایي ،چې هرې بیغرتۍ او بی حیایۍ ته شامل دي ـ

## دالله تعالی دحاکمیت دویم دور

دویم ځل دابراهیم علیه السلام په دعاء سره دیوسف علیه السلام په ذریعه سره دالله تعالی قانون حاکم شو ، دې ته دورِیوسفي وایي ـ

داخالص يوتكويني أمر وو چې يوسف عليه السلام دمصر حاکم شو ،تفصيل ئې دادی: چې الله تعالی دمصر دحاکمانو په زړۀ کې ويره واچوله ،چې بس ! د حکومت نه ډډه وکړي، عزيزمصر خوب ويني چې څني کمزورې غواګانې سربې غواګانې خوري ،اوځني وچ وګي دي چې شنه وګي خوري،داډيره د ويرې خبره ده ،ځکه معامله بالعکس ده چې کمزورې طاقتور خوري. په دې بادشاهان پوهيږي چې حکومت به د ښکرورو وي ، ذوالقرنين په ټوله دنيا ئ بادشاهي کړې وه، خوب کې غوا هم ذوالقرنين دي، يو کمزورې اوبل طاقتور، نو تعبير ئې دا شو چې کمزوري به د طاقتور نه حکومت اخلي، اوبل داچې دمصر دمعيشت دارومدار په زراعت باندې وو ،هغه ئ هم وليدلو چې خراب شوې دې، چې يوطرف ته شين او بل طرف ته وچ دي ،وچ شين خوري۔

بادشاه خپل خوب د "الملأ" يعني د پارلمان مشرانو ته اووې ،هغوي بادشاه ته تسلي ورکړه چې هيڅ نشته ،هسې ګډوډ خيالونه دي. خودبادشاه تسلي نه کيده، ځکه باربار داخوب ليدلی وو، آخر خبره خوره شوه، نو دجيل نه آزاد شوی بندي چې ددۀ زوړ خادم وو، هغه ورته وئيل: ماته يو معبر معلوم دی چې په جيل کې دی ، اوداسې صحيح تعبير ورکوي ،چې دا زۀ نن ستا خادم يم ،داما خوب ليدلې وو، هغۀ راته تعبير وئيلي وو. او هغه بل کس چې اعدام شو هغه هم خوب ليدلې وو ،اودغه تعبير ئ ورته وئيلې وو. بادشاه وايي: ورشه پسې، دغه سړې راغی يوسف عليه السلام ته .اود بادشاه خوب ئ ورته اووې. يوسف عليه السلام ورته تعبير اووې:چې اووه کاله سخت قحط به راځي، که دمخکې نه دهغې لپاره تيارې اونشو نو هرڅه به ختم کړي، يعنی ټول مصر اودمصر واکداران به ختم شي، بادشاه په مطلب ورسيدو چې هم دا صحيح تعبير دی،چې کمزوري غوئې دقحط نه عبارت دي، ځکه دا په قحط کې ډير متأثره کيږي، اودا سربې غواګانې عبارت دی دمصر د واکدارانو او دعام انسان نه، اودمصر معيشت زراعت دی ،نوهغه به هم ګډوډ ختميږي۔

بادشاه أمر وکړو چې دامعبر د جيل نه خلاص کړئ .يوسف عليه السلام وايي : زۀ نه ووځم، زۀ په يو تور کې بندي يم، زه دهغې حل غواړم ،او هغه خلق ژوندي دي يعني مدّعِي.

بادشاه د بندي يوسف د محبس نه د خلاصي لپاره ددۀ شرط ئې ومنلو، حالانکه معامله برعکس پکار وه ،ليکن داټوله تکويني معامله وه ،چې ښکته بره کيږي ،او بره ښکته کيږي۔ بادشاه د واکدارانو دټولو ښځو نه حقيقت حال تپوس وکړو ،نوټولو په جمع اوئيل: حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوءٍ، زمونږ دې

په الله قسم وي په یوسف کې هیڅ قسم بد نشته. دعزیزمصر کډې یعنی خاتون اول هم اوئیل : الْآنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ أَنَا رَاوَدْتُهُ عَنْ نَفْسِهِ وَإِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ . وس وخت راغی چې حق ښکاره شي ،ما اراده کړې وه دده ، او زما دې په الله قسم وي دی په خپله خبره کې ښتنی دی ،یعني داټول چل ول زماوو ، او هغهٔ ځان مکمل ساتلې وو ، او رښتنی دی۔

ذَلِكَ لِيَعْلَمَ أَنِّي لَمْ أَخُنْهُ بِالْغَيْبِ وَأَنَّ اللهَ لَا يَهْدِي كَيْدَ الْخَائِنِينَ (٥٢)وَمَا أُبَرِّئُ نَفْسِي إِنَّ النَّفْسَ لَأَمَّارَةٌ بِالسُّوءِ إِلَّا مَا رَحِمَ رَبِّي إِنَّ رَبِّي غَفُورٌ رَحِيمٌ (٥٣يوسف) ۔یوسف علیه السلام وایي مادا شرط ځکه کیخودو چې داخبري صفا شي چې ماخیانت نه دی کړی،او الله تعالی دخائن تدبیر نه کامیابوي۔

کوموخلقو چې په یوسف علیه السلام دبدې ارادې تور لګولی وو دهغوي سره څه دلیل نه وو ، بلکه وخت د سره تکویني دلائل ،او واضحه قرائن چې څومره وو ، هغه دیوسف علیه السلام په حق کې وو ، او وس اووه کاله روسته ظاهري دلیل چې داټولې ښځې دي ،او ددغې تور مدعي هم دوي دي ،هغوي هم دا وایي چې په یوسف ظلم شوی دی ،او دا ظلم مونږ یعني دبادشاه کورنۍ کړی دی۔

الله تعالی دا ښکاره کړله چې بادشاه اودبادشاه ظالم اودروغژن دي، اوکومه سزا چې ئې یوسف ته ورکړې وه،په دې کې ظالمان دي، نوداسې څوک چې عدل او انصاف، صدق او امانت پکې نه وي۔دا ددنیا د اولس متفقه فیصله ده چې دبادشاهۍ یعني د اولس دمشرۍ أهل نه وي. د یوسف علیه السلام بې ګناهي،صدق او امانت چې څنګ الله تعالی په تکویني طریقي سره ښکاره کړی وو ، هم دغه شان ئ دمدعیانو د ژبې او داقرارنه هم ښکاره کړو۔

وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ أَسْتَخْلِصْهُ لِنَفْسِي، مخکې ئ وئیل زوې به ئ کړو ،اوس یوسف علیه السلام کیس ګټلی دی اوداخلق مجرمان دي ، بےحیثیته دي نوڅنګ به یوسف علیه السلام دداسې خلقو زوې شي،نووایي زهٔ به ئ خپل خاص سړې کړم -فلمّا کلّمه ،کله ئ چې دیوسف علیه السلام سره زړې خبري وکړې اوخوب ئ ورته پخپله بیان کړو ،یوسف علیه السلام ورته سره دتعبیره د نوروخبرو حقیقت سرګند کړو ، نوبادشاه په حقیقت ورسیدو اود حکومت کولو نه اویریدو ، اویوسف علیه السلام ته تسلیم شو اود هغهٔ ئ شکریه ادا کړله. ستا دې علم تهٔ بادشاه کړي، تهٔ د اوس نه زمونږیعني دټول مصر

واکداره ئ، ځکه ته امانتداري ئ- امانتداري په طور د علت هر پیغمبر د خپل رسالت لپاره وایي: انی لکم رسول امین، نود مکین او رسول یو معنی شوه بادشاه اومطاع .

عزیزمصر چې کله دا اعتراف وکړو چې تهٔ دحکومت أهل او حقدار ئ، لهذا داوس نه تهٔ زمونږ مشر ئ- یوسف علیه السلام ورته وایي تهٔ په میډیا دالله تعالی دحاکمیت دقبلولو اعلان وکړه چې د نن نه دمصر حاکم دالله تعالی رسول دی، اوس به دمصر دبادشاه لقب یوائې "عزیز "نه وي ،چې حکومت په زور او په وضعي قانون کوي، داحکومت دالله تعالی دی ،داچلن په اسماني علم باندي کیږي، هغه بي ځایه زور چې دمصر حاکمانو اختیار کړې وو دحکومت لپاره ،هغه دور ختم شو.

یوسف علیه السلام د خپل نبوت یعني دحکومت دحقداره کیدو ذکر دلته په علت سره کړی دی چې دحکومت لپاره ځانګړی شرط علم دی ،او دغه اسماني علم الله تعالی انبیاء علیهم السلام ته ورکوي،او زه دالله نبي یم ،څنګه چې تا د تعبیر نه وپیژندمه ،او پیغمبر دګناه نه محفوظ وي ،اود الله تعالی او د اولس د حقوقو علم ورسره وي . عزیز مصر دیوسف علیه السلام په دلیل قناعت وکړو ،او یوسف علیه السلام دمصر حاکم شو.

**د "اجعلنی علی خزائن الارض "مطلب**

"خزائن "عبارت دی دحکومت نه ،لکه: وَلله خَزائنُ السَّموتِ وَالارضِ،یوائې دالله تعالی دي داسمانونو او د زمکې خرانې یعني الله تعالی بادشاه دی د اسمانونو اود زمکو-او د الارض نه مراد مصر دی لکه :
وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَشَاءُ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ (٥٦) .

او معنی دآیت داده: ته ماته دمصرحکومت پریږده ځکه چې زه دالله تعالی دحدودو حفاظت کونکی یم او په هغې پوهه یم. د "اجعلنی علی خزائن الارض "هم دغه معنی ده ځکه پّ ورپسې آیت کې ددې معنې وضاحت دی: وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ يَتَبَوَّأُ مِنْهَا حَيْثُ يَشَاءُ نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَشَاءُ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ (٥٦). په دی آیت کې شپږ ځله تصریح ده چې مونږه یوسف دمصر حاکم جوړ کړو په دی تکویني لارې:

١. وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ ،د تمکین معنی بی دحکومت نه بله څه کیدی شي ؟.٢.یتبوأ، مکمل اختیار او خوښې ته ویلی کیږي لکه دخپل کور په شان. ٣. نُصِيبُ بِرَحْمَتِنَا مَنْ نَشَاءُ ، دی ورکړی ته الله

تعالی خپل رحمت ویلي دي او دا به هله په ځائ شي حکومت ترې مراد شي پرخلاف د نوکرۍ. ۴. وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ . دالله تعالی اجر د هغه دشان مطابق وي او دهغې ظهور په دنیا کې دحکومت په صورت کې کیدی شي نه د نوکرۍ. ۵. ولأجرالآخرة . ددې تقابل ئ دآخرت د أجر سره کوی دی او هلته د ادنی جنتي حکومت په لسو دنیا ؤ وي. ۶. په ټول سورت کې د آخر پورې د یوسف علیه السلام د حکومت و دحاکم کیدو ټکي په ټکي ذکر دی.

لهذا دا مطالبه د نوکرۍ نه ده چې یوسف علیه السلام د وخت دحاکم نه مطالبه کړې ده چې ما په خزانو وزیر کړه ، څنګه چې په اسرائیلي روایاتو کې دا خبره ذکر ده چې یوسف د عزیزمصر نه نوکري غوښتلې وه۔

څه خلقو دا خبره کړې ده چې یوسف علیه السلام دبادشاه سره نوکري کړې وه، ددوي په جواب کې د اکبرآله ابادي دا شعر کافي دی:

انہوں نے دین کب سیکھا ہے جا کے شیخ کے گھر میں پلے کالج کے چکر میں مرے صاحب کے دفتر میں ۔

ترجمه: کله دی زده کړی دوي دین په مدرسو کې مري په دفترونو کې اوژوند ئ په لیسو کې۔

**د یوسف** علیه السلام **حاکم جوړیدل**

حاصل دا چې دویم ځل دیوسف علیه السلام په لاس باندې الله تعالی خپل حکم حاکم کړو په دنیا کې ، او دا حاکم کیدل دیوسف علیه السلام دالله تعالی لخوانه په تکویني طریقې سره وو نه د عزیزمصر په تدبیر سره.

یو پلان ددهٔ دحاکم کولو دعزیزمصر دطرفه وو ، یعني ریان بن ولید چې دمصر حاکم وو ،اود اولاد د نعمت نه محروم وو ،چې کله ئ یوسف علیه السلام په بل بل نااشنا اوصافو سنبهال ولیدو ، نودی ئ خپل نائب کولو : أونتخذه ولدا ، لیکن په آئینده کې به خلقو دا وئیل چې یوسف علیه السلام ته حکومت دعزیزمصر دطرفه میلاو شوی وو ،حالانکه په دنیا کې چې دا الله تعالی قانون حاکم شوی دی ،هغه داسماني علم دلارې نه په تکویني طریقې سره حاکم شوی دی۔

الله تعالی دا پلان د عزیزمصر شنډ کړو ،ځکه په دې سره په یوسف علیه السلام دا تور لګیدو چې دی د عزیزمصر لخوا بادشاه شوی دی ، الله تعالی فرمایي : وَقَالَ الَّذِي اشْتَرَاهُ مِنْ مِصْرَ لِامْرَأَتِهِ أَكْرِمِي مَثْوَاهُ عَسَى أَنْ يَنْفَعَنَا أَوْ نَتَّخِذَهُ وَلَدًا وَكَذَلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ وَلِنُعَلِّمَهُ مِنْ تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَى أَمْرِهِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (۲۱ یوسف ) ، د عزیز مصر تدبیر د یوسف علیه السلام د بادشاه کولو ما تحت الاسباب وو ، او د الله تعالی تدبیر مافوق الاسباب وو ، او طریقه د بادشاه کودلو په اسماني علم سره وه :ولنعلّمه من تأویل الاحادیث ـهم د غه وجه ده چې د حضرت یوسف علیه السلام تعبیر به قطعي وو ،لکه چې د جیل ملګرو ته ئ وئیل : قُضِيَ الْأَمْرُ الَّذِي فِيهِ تَسْتَفْتِيَانِ، د خوب کوم تعبیر چې ما تاسو ته وښودلو هغه قطعي دی. او الله تعالی په خپل تدبیر کې غالب دی۔

وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا عَنْ نَفْسِهِ وَغَلَّقَتِ الْأَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ قَالَ مَعَاذَ اللَّهِ إِنَّهُ رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ(۲۳یوسف ) ،په دی آیت کریمه کې د ذکرشوی پیښي د واقع کیدو تکویني مقصد او راز هغه څه ختمول وو د کومې چې عزیزمصر اراده کړې وه : اَونَتَّخِذَه وَلَدًا ، چې یوسف به خپل نائب کړم ،چې د مصر حاکم شي ،الله تعالی د هغه ټول پلان معکوس کړلو ،یعني د بادشاه کولو په ځاي ئ جیل ته واچولو ،نو د عزیزمصر د لاسه په ځائ د بادشاه کیدو یوسف د خلقو په نظر کې مجرم شو ،اګرچه حقیقت عزیزمصر بلکه ټولو ته معلوم وو چې مجرم څوک دی ؟۔

څنګه چې د فرعون کوروالا ویلي وو : اَونَتَّخِذَه وَلَدًا ،دی به خپل نائب کړو په مصر ، او بیا د فرعون نه حکومت موسی علیه السلام ته منتقل شو خو په تکویني طریقې، د غه شان یوسف علیه السلام ته د عزیزمصر نه حکومت منتقل شو ،نوکري خو یو احسان د بادشاه وي ،موسی علیه السلام چې د یوسف علیه السلام نوسی دی دا احسان بالکل نه مني : وتلک نعمة تمنّها علیّ ان عبّدت بنی اسرائیل ، بل طرف ته چې تا شپږنیم لاکه (۶۵۰۰۰ ) بني اسرائیل غلامان کړي دي نو یو اسرائیلي ماشوم پالل خوڅه احسان نه دی، تاخو زۀ د دریاب نه د مرګ لپاره رانیولې ووم، نو نیکه به ئ څنګ ومني، ځکه عزیزمصرهم یوسف علیه السلام د مرګ یعني د غلامۍ په نیت اخستې وو : عسی ان ینفعنا ، خادم او غلام به ئ کړو ، او بیا ئ جیل او قید کې هم اچولی دی چې دا د مرګ نه هم سخت وي۔ وَلَا نُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ـ وَكَذَلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ۲۲ ، دا بدله په صورت د پیغمبرۍ او بادشاهۍ کې وه :وآتیناه حکماوعلما۔

## د اولس دساتنې لپاره د يوسف بادشاه تدبير

يوسف عليه السلام بادشاه شو ،په مصر کې اووه کاله بارانونه اووريدل، په ټوله زمکه دمصر کې
د يوسف عليه السلام په أمر کرونده وشوه ،د هغې دانو چې وچې پاتې کيږي لکه غنم، جوار، وربشې
وغيره، ددې سره ئ د څاروولپاره هم دخوراک بندوبست وکړو ، دا فصلونه ئ جمع کړل اووه کاله.
ددې نه روستو باران بند شو اووه کاله، دمصر دريابونه او نهرونه وچ شول، دومره اوبه پاتې دي چې
صرف د ژوند کيږي، د زراعت لپاره نه پوره کيږي، شام هم ورسره دغه شان شو ـ

الله تعالی دا ټول خلق محتاج کړل، يوسف عليه السلام سرکاري نرخ اعلان کړو ـ

په اول کال ئ سرۀ زر د راشن او خوراک بدل وګرځولو ، خلق دا راوړي او راشن وړي ،آخر دا ختم شو ـ

په دويم کال ئ سپين زر دخوراک بدل وګرځولو ، خلق دا راوړي اوخوراک وړي ، آخر دا هم ختم شو ـ

په دريم کال ئ څاروي د راشن بدل وګرځولو ، دمصر ،شام،فلسطين وغيره خلق راروان دي ټول يوسف
عليه السلام ته، يوسف عليه لسلام ورته وايي دا څاروي به ستاسو سره وي خو ملک به ئ زما وي ـ

په څلورم کال ئ اساس البيت يعني دکور سامانونه د راشن بدل وګرځول، نو که چاجامي اغوستي دي
نو دا هم د يوسف عليه السلام دي ـ

په پنځم کال ئ کورونه اوبنګلي دراشن بدل وګرځول ـ

په شپږم کال ئ ښځې اوبچي دراشن بدل وګرځول،نوورته وايي دا ښځې اوبچي ستاسو په کوروکې به
وي، ستاسوسره به ژوندکوي خودا به د يوسف بادشاه وي ـ

په اووم کال ئ اعلان وکړو چې په دې ټوله علاقه کې دې څوک هم دخپل واک او اختيار نه وي، خپل
ځان دې په ما راخرڅ کړي نوډوډۍ به ورکړم،خلقو په خوشالئ سره يادمجبورئ نه داکام وچت کړو ،
نوپوره مصر اوشام او خواوشا علاقې د يوسف عليه السلام دي، دا د"يتبوءمنهاحيث يشاء " مطلب دی،
داهغه خوب وو :انی رأيت احدعشر کوکبا والشمس والقمر، شمس اوقمر والا نظام کې اوسيدونکي انسانان
او څاروي ټول د يوسف عليه السلام شول ، او ورته تسليم شول، دپلار او ورونړو نه علاوه نور ټول خلق
ددۀ غلامان شول،

د غلامانو مينځ کې چې څه خبره اوجګړه راځي نو يوسف عليه السلام به ئ فيصله کوي، نو يوسف عليه السلام ورته وايي دا دالله تعالی عقوبات دي په دي کې دچا اختيار نشته، دا اسماني قوانين دي، داتمکين دۀ ته الله ورکړو، اوس ورونړه هلته ځي د راشن لپاره: وَجَاءَ إِخْوَةُ يُوسُفَ فَدَخَلُوا عَلَيْهِ فَعَرَفَهُمْ وَهُمْ لَهُ مُنْكِرُونَ٥٨ ـ فَلَمَّا دَخَلُوا عَلَيْهِ قَالُوا يَاأَيُّهَا الْعَزِيزُ مَسَّنَا وَأَهْلَنَا الضُّرُّ وَجِئْنَا بِبِضَاعَةٍ مُزْجَاةٍ فَأَوْفِ لَنَا الْكَيْلَ وَتَصَدَّقْ عَلَيْنَا إِنَّ اللَّهَ يَجْزِي الْمُتَصَدِّقِينَ٨٨، وايي تاچي کوم قيمت اونرخ مقرر کړی دی دراشن لپاره ، دهغې مطابق خو مونږ قيمت نه دی راوړی خو تۀ ئ مونږ ته راشن پوره راکړه،اوپه مونږ احسان وکړه۔

يوسف عليه السلام ته چې پته ولګيدله چي زما د ورونړو حالت دادی، نوبيا ئ ورته ځان ښودلې دې چې زۀ يوسف يم ،هغوي ورته وايي: لَقَدْ آثَرَكَ اللَّهُ عَلَيْنَا، تۀ الله تعالی په مونږ باندې غالب کړې ئ ـ

بهرحال يوسف عليه السلام دوخت حاکم شو ، ټول خلق ئ رعايا اوغلامان شول ، په دې خلقو کې مشهور دوه قومونه وو "اسباط" يعني ديعقوب عليه السلام اولاد ، "اقباط" دا دمصر زاړۀ وسيدونکي چې روسته په فراعنه مشهور شو ، دا دويم دور وو دالله دحکومت ، دې دور ته دوريوسفي وايي، دور اسرائيلي، دورابراهيمي، دانومونه ئ په اعتبار دنسبت او نسب سره دي۔

بل نوم ئ أهل کتاب دې، دانوم ئ په اعتبار دعقيدې سره دی، چې دا خلق دالله تعالی دقانون منونکي شول، اواسماني قانون ته ئ غاړه کيخودله، مشهور په دې نوم سره بيا دموسی اودعيسی عليهما السلام امتونه دي، ابتداء ئ ديوسف عليه السلام نه وشوه ـ

دريم نوم ئ يهود دی ،د "هَادَ يَهُودُ "نه په معنی د رجوع ، دې خلقو د پلار نيکه ددين نه دالله تعالی دين ته رجوع وکړله۔

داډير اوږد دور وو ،په ديکې ښکته بره ډير راغلي دي، ډيرپيغمبران راغلي دي ديعقوب عليه السلام په اولاد کې، اوهر يو به په دغه صفت وو ،يعني حاکم نبي به وو لکه حديث کې راځي (کانت بنوااسرائيل تسوسهم الانبياء الحديث)،

يهوديانو يوه غلطه خبره مشهوره کړې ده ،چې ديعقوب عليه السلام په اولاد کې به نبوت د "لاوي "په اولاد کې وي اوحکومت به د يهودا په اولاد کې وي، اوس هم يهوديان وايي چي مولوي صاحب دي

فیصله کوي خو قوت نافذه او آخري اختیار به د بل چا سره وي، دا خبره د دوي غلطه ده ځکه دا الله نبي په دې صفت باندې نه وي بلکه هغه پخپله حاکم او بادشاه وي۔

لهذا یوسف علیه السلام پخپله بادشاه وو ، د چانوکر نه وو ، دغه د یهودیانو عقیده وه ۔

موسی علیه السلام هم قوم ته دالله تعالی په احساناتو کې دا خبره کوي: اذ جعل فیکم انبیاء وجعلکم ملوکا، تاسو کې الله تعالی انبیاء رالیگلي دي، تاسو د پیغمبرانو اولاد ئ، او بادشاهي په دنیا ستاسو وه ، هر نبي به بادشاه وو۔ د نبیانو ذکر په تبعیض سره دی یعني الله تعالی په تاسو کې څه خلق نبیان جوړ کړي وو ځکه نبوت، ، ، ، ، ، ، ، ، ، ا د بادشاهانو ذکر په عموم سره دی ځکه د دې که په اعتبار د نسبت سره عموم مضر نه دی ،لکه چې وئیلی کیږي :مغلیه حکومت ،دبنو امیه ،دبنو عباس ،د تاتاریانو ،د سلجوقیانو حکومتونه ۔ مراد ترې د دې قوم بادشاهان دي او ذکر ئ په قوم یا په قبیله سره کیږي ۔

د دې آیت نه معلومه شوه چې دوي کې د مخکې نه دا انبیاؤ بادشاهانو سلسله راروانه وه، دا دور د موسی، سلیمان، زکریا ، یحي علیهم السلام راروان دی مسلسل، په دیکې ډیر واقعات د موسی علیه السلام سره متعلق دي ، په دې وجه یهود د موسی علیه السلام په نسبت مشهور دي چې دا د موسی علیه السلام امت دی، حالانکه موسی علیه السلام یهودو کې راغلی یو نبي دی ،د دوي ابتداء خو د یوسف علیه السلام نه شوې ده، د عیسی علیه السلام نه مخکې ټول بني اسرائیل یهود دي، یهود د بني اسرائیلو دیني نوم دی۔

په دغه وخت کې په دنیا کې خلق په دوه قسمه شول:مؤمنین یعني أهل کتاب ،او مشرکین۔ د أهل کتابو علاقه (ریاست اسرائیلیه) یعني دالله تعالی د حکومت علاقه مصر او شام وو، باقي نړۍ کې دالله تعالی قوانین حاکم نه وو ، اکثر دنیا کې مشرکین اباد وو ، مختلف قسم مشرکین او سیدل،یو خو مشرکین قرآن وو چې مونږ ذکر کړل ،په اطرافو کې نور قسم هم وو لکه کواکب پرست قوم سبا وو ، خو دا ټوله دنیا دالله تعالی ریاست ته تسلیم وه ، هرکال به ئ خراج ورکولو ، بني اسرائیلو کې به حاکم پیغمبر وو ، کله به دا سې وشو چې پیغمبر رالیگلو کې به الله تعالی لږ توقف وکړو ،د خلقو دا متحان لپاره چې دوي دالله تعالی قوانین څنګ پالي، دا امتحان ډیر ځله راغلی دی، قرآن ذکر کړي دي ،لکه سورة بني اسرائیل اول کې دالله تعالی د حکومت دوه غټ مرکزونه ذکر کوي ،مسجد حرام(بیت الله، مسجد اقصی( بیت المقدس) ، بیا موسی علیه السلام ته دا اسماني کتاب ورکولو ذکر دی: وَقَضَيْنَآ إِلَىٰ بَنِي

إِسْرَائِيلَ فِي الْكِتَابِ لَتُفْسِدُنَّ فِي الْأَرْضِ مَرَّتَيْنِ وَلَتَعْلُنَّ عُلُوًّا كَبِيرًا ۴ الاسراء ، الله تعالی بني اسرائیلو ته فرمایي چې تاسو خو اسماني قانون ته غاړه کیخودله ،خو ټول عمر به په دي پاتې نه شئ ،بلکه په دې ریاست کې به تاسو فساد کوئ د یونه زیات ځله،او دریم ځل فساد به ډیر غټ وي، اولني دوه فسادونه به قابل معافي وي ،او دادریم ځل به ستاسو ګرفت کیږي ـ فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ أُولَاهُمَا، دا داولني فساد تذکره کوي ـ ثُمَّ رَدَدْنَا لَكُمُ الْكَرَّةَ عَلَيْهِم وَأَمْدَدْنَاكُمْ بِأَمْوَالٍ وَبَنِينَ وَجَعَلْنَاكُمْ أَكْثَرَ نَفِيرًا ٦ ، معلومه شوه چې دا فساد داسې نه وو چي دوي په کافر شوي وو ،بلکه صورت ئ داوو چي دوي دالله په قوانینو کې سستي کوله، تنفیذ ئ حکومت ئ ترې قبضه نه کولو ، نو ددې غفلت په وجه الله تعالی په دوي دخارج نه دښمن مسلط کړو ، او کړو ، او ښه ئ وټکول، بیت المقدس ئ رنګ کړو ، دوي په خپل جرم قائل شول ،توبه او استغفار ئ شروع کړل، الله تعالی ورته بیا هغه نعمت واپس ورکړو . الله تعالی ئ امداد وکړو او اسباب ئ ورله هم پیدا کړل ،زر او ځوانان ، دښمن ئ وزغلولو ـ

فَإِذَا جَاءَ وَعْدُ الْآخِرَةِ لِيَسُوءُوا وُجُوهَكُمْ وَلِيَدْخُلُوا الْمَسْجِدَ كَمَا دَخَلُوهُ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَلِيُتَبِّرُوا مَا عَلَوْا تَتْبِيرًا ٧ ،بیو ځل بیا داسې وشول چي دوي فساد وکړو ،دالله تعالی دقوانینو اهمال ئ وکړو ،ددغه فساد نتیجه داشوه چي دښمن راغی او مخونه ئ ورله تور کړل په وهلو باندې ، بیت المقدس ئ بیا رنګ کړو ،او ددوي حکومت ئ ختم کړو ـ عَسَىٰ رَبُّكُمْ أَنْ يَرْحَمَكُمْ ، که توبه وباسئ نو الله تعالی به مو معاف کړي ،اودا حالت به درنه لرې کړي ـ وَإِنْ عُدْتُمْ عُدْنَا وَجَعَلْنَا جَهَنَّمَ لِلْكَافِرِينَ حَصِيرًا، د آیت په آخري حصه کې اشاره وکړه چي داموجوده کمزوري مو دغه انجام ته نزدې کوي ـ

دالله تعالی دقانون سره د بې وفایۍ په وجه په دوي باربار دخارج نه دښمن مسلط کیدو ،او دیهودو حکومت او اسرئیلي ریاست به ئ شنډ کوو ، خو په دریم ځل ددغې فساد په وجه دالله تعالی دعذاب صورت بدل شو ، او داخلي دښمن په مسلط شو ،اقباط چې په مصر کې دیره وو ،د بني اسرائیلو رعایا وو ، اوس په هغوي مسلط شول، او اسباط ئ مغلوب کړل ، دې اقباطو دالله تعالی قانون دمصر نه ختم کړو ، مصر ئ دشام نه جدا کړو ، ځکه شام کې اسباط ډیر وو ، مصر کې وضعي او انساني قانون مسلط کړو ، دمصر د حاکم حاکمي نوم فرعون مقرر شو ، او دخپل زور اعلان ئ وکړو "لن یبعث الله من بعده رسولا "بیا به په مصر کې اسماني قانون حاکم نه شي ـ

کله چې دبني اسرائيلو حکومت ختم شو ، او دآل فرعون حکومت راغې ، نوڅه خلق دبني اسرائيلو شام ته تختيدل، څه په اطرافو کې پټ شول، ليکن يو غټ شمير د بني اسرائيلو داقباطو په لاس ورغلل ، تقريبا شپږنيم لاکه خلق وو ، په دوي باندې آل فرعون حکومت کولو ، دوي ئ خپل غلامان کړي وو ، د ډيرو سزاګانو نه روستو چې کله ددوي هغه بدني قوت هم ختم شو او چرته تختيدې نه شو نو بيا ئ په مختلف علاقو کې تقسيم کړل،اوپه دوي باندې ئ وطن دخپل ځان مطابق جوړول شروع کړل۔

هرجبّار چې حکومت کوي ،هغه چې خپل رعايا په کومو کارونو خوشحاله کوي ،اومصروف کوي ئ، هغه قرآن ذکر کړي دي:أَتَبْنُونَ بِكُلِّ رِيعٍ آيَةً تَعْبَثُونَ۱۲۸الشعراء ،عاديانو دحکومت کولو لپاره عوامو له دلوبو ځايونه، تفريحي پارکونه ئ جوړکړي وو ، وَتَتَّخِذُونَ مَصَانِعَ لَعَلَّكُمْ تَخْلُدُونَ، دمضبوط معيشت اسباب کارخانې ،ميلونه اونورې مواقع ئ فراهم کړي وو ، دا دوي د يولامحدود ترقۍ پلان جوړکړې وو ، وَإِذَا بَطَشْتُمْ بَطَشْتُمْ جَبَّارِينَ، د امن لپاره دوي ګرفت په انساني وضعي قانون باندې کولو ، چې په معمولي خبره به ئ سخت سخت عذابونه ورکول ، دنامعلوم وخت پورې به ورک وو ،دقيد او دبند وخت به ئ معلوم نه وو ،داسماني قانون تذکره به دغټ عذاب سبب ګرځيدو ، دحاکمِ وقت يا دقانونِ وضعي نه دبغاوت په بهانه به علاقې کسکر شوې ۔

"**جبّار**" دجبر نه دی، دجبر معنی ده زور او طاقت ۔ "جبار "صيغه دمبالغې ده ، يعني خپل زور ته بل راټيتونکی ۔ په دغه معنې دا دالله تعالی صفت دی ،او دمخلوق لپاره داعيب دی ،ځکه الله تعالی ټول انسانان خپل حکم ته مجبوره کړي دي۔ او په انسانانو کې جبار هغه څوک دی چې انساني وضعي قانون عملي کوي، اګرکه عقيده ئ په باب دعبادت کې دتوحيد وي لکه مشکوة باب بدأالخلق وذکرالانبياء کې واقعه ذکرده: وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمْ يَكْذِبْ إِبْرَاهِيمُ إِلَّا فِي ثَلَاثَ كَذَبَاتٍ: ثِنْتَيْنِ مِنْهُنَّ فِي ذَاتِ اللهِ قولُه : إِني سَقيمٌ قولُه : بلْ فعلَه كبيرُهم هَذَا وَقَالَ: بَيْنَا هُوَ ذَاتَ يَوْمٍ وَسَارَةُ إِذْ أَتَى عَلَى جَبَّارٍ مِنَ الْجَبَابِرَةِ فَقِيلَ لَهُ: إِن هَهُنَا رَجُلًا مَعَهُ امْرَأَةٌ مِنْ أَحْسَنِ النَّاسِ فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ فَسَأَلَهُ عَنْهَا: مَنْ هَذِهِ؟ قَالَ: أُخْتِي فَأَتَى سَارَةَ فَقَالَ لَهَا: إِنَّ هَذَا الْجَبَّارَ إِنْ يَعْلَمْ أَنَّكِ امْرَأَتِي يَغْلِبُنِي عَلَيْكِ فَإِنْ سألكِ فأَخبرِيهِ أَنَّكِ أُختي فإِنكِ أُخْتِي فِي الْإِسْلَامِ لَيْسَ عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ مُؤْمِنٌ غَيْرِي وَغَيْرُكِ فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا فَأُتِيَ بِهَا قَامَ إِبْرَاهِيمُ يُصَلِّي فَلَمَّا دَخَلَتْ عَلَيْهِ ذَهَبَ يَتَنَاوَلُهَا بِيَدِهِ. فَأُخِذَ وَيُرْوَى فَغُطَّ حَتَّى رَكَضَ بِرِجْلِهِ فَقَالَ: ادْعِي اللهَ لِي وَلَا أَضُرُّكِ فَدَعَتِ اللهَ فَأُطْلِقَ ثُمَّ تَنَاوَلَهَا الثَّانِيَةَ فَأُخِذَ مِثْلَهَا أَوْ أَشَدَّ فَقَالَ: ادْعِي اللهَ لِي وَلَا أَضُرُّكِ فَدَعَتِ اللهَ فَأُطْلِقَ فَدَعَا بَعْضَ حجَبتِه فَقَالَ: إِنَّكَ لم تأْتِني بِإِنْسَانٍ إِنَّمَا أَتَيْتَنِي بِشَيْطَانٍ

فَأَخْدَمَهَا هَاجَرَ فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصلي فأَوْمأَ بيدِه مَهْيَمْ؟ قَالَتْ: رَدَّ اللهُ كَيْدَ الْكَافِرِ فِي نَحْرِهِ وَأَخْدَمَ هَاجَرَ " قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ: تِلْكَ أُمُّكُمْ يَا بَنِي مَاءِ السَّمَاءِ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ ، ابراهيم عليه السلام او ساره رضي الله عنها په سفر روان وو ، يو ځاي ته ورسيدل ، ددغه ځاي حاکم جبّار يو قانون وضع کړی وو ، که مسافر ښځه خاوند وو ، نوددغه زنانه بی عزتي به ئ کوله، اوکه وررور او خور به وو ،نو بيا به ئ ورته څه نه وئيل، نو ساره ئ راوغوښتله ، هغې ورته وئيل مونږ وررور او خور يو ، خو دهٔ خپل قانون مات کړو ،او ساره ته ئ د لاس اچولو اراده وکړه، الله تعالی په زمکه راوغورځولو ، لتي ئ وهلې، ساره ته وايي :**ادعی الله** ،دا الله تعالی نه وغواړه چې ما ښه کړي ،بيا تا ته څه نه وايم، په دويم او دريم ځل ئ بيا داسې وکړل، په دريم ځل چې الله تعالی ښه کړو، نو ساره ته ئ بي بي هاجر په تحفه کې ورکړه، په دې ئ خوشحاله کړه،--------- ـ نو دغه جبّار په بدني تکليف کې الله تعالی ته سوال کوي ، سورة مؤمن هم د جبّار معنی کوي: الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَانٍ أَتَاهُمْ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللَّهِ وَعِنْدَ الَّذِينَ آمَنُوا كَذَلِكَ يَطْبَعُ اللَّهُ عَلَى كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ٣٥، يعني دا الله تعالی د قوانينو په مقابل کې قانون جوړونکی وي، دغه جبّار دی ـ

فرعون چې هم د موسی عليه السلام د آسماني قانون او دا الله تعالی د حکومت په مقابله کې قوم ته په کوم څيز تسلي ورکوي او دهوکه کوي ئ ،نو هغه هم د وطن د معيشت ،د ترقۍ او د پرمختګ خبره کوي: وَنَادَى فِرْعَوْنُ فِي قَوْمِهِ قَالَ يَاقَوْمِ أَلَيْسَ لِي مُلْكُ مِصْرَ وَهَذِهِ الْأَنْهَارُ تَجْرِي مِنْ تَحْتِي أَفَلَا تُبْصِرُونَ ٥١ الزخرف ،زهٔ د مصر حاکم يم ،دا زما حق دی، او د مصر معيشت ما ناقابل تسخير حد ته رسولی دی ـ آخرنۍ جمله کې د ماقبل لپاره علت ذکر دی چې ا مصر حاکميت زما حق دی ځکه چې د مصر دا موجوده معيشت چې ناقابل تسخير حد ته رسيدلی دی ،دا زما کارنامه ده ـ بل ځائ کې الله تعالی فرمايي : وَكَمْ أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ بَطِرَتْ مَعِيشَتَهَا فَتِلْكَ مَسَاكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَنْ مِنْ بَعْدِهِمْ إِلَّا قَلِيلًا وَكُنَّا نَحْنُ الْوَارِثِينَ ٥٨ وَمَا كَانَ رَبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرَى حَتَّى يَبْعَثَ فِي أُمِّهَا رَسُولًا يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِنَا وَمَا كُنَّا مُهْلِكِي الْقُرَى إِلَّا وَأَهْلُهَا ظَالِمُونَ ٥٩ وَمَا أُوتِيتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَمَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَزِينَتُهَا وَمَا عِنْدَ اللَّهِ خَيْرٌ وَأَبْقَى أَفَلَا تَعْقِلُونَ ٦٠ القصص. فَكَأَيِّنْ مِنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا وَهِيَ ظَالِمَةٌ فَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا وَبِئْرٍ مُعَطَّلَةٍ وَقَصْرٍ مَشِيدٍ ٤٥ الحج،د دې مخکې آيتونو کې د ټولو جبابرو ذکر دی : وَإِنْ يُكَذِّبُوكَ فَقَدْ كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَثَمُودُ ٤٢ وَقَوْمُ إِبْرَاهِيمَ وَقَوْمُ لُوطٍ ٤٣ وَأَصْحَابُ مَدْيَنَ وَكُذِّبَ مُوسَى فَأَمْلَيْتُ لِلْكَافِرِينَ ثُمَّ أَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ نَكِيرِ ٤٤، دې ټولو خپل قومونه په دې مادي څيزونو غولولي وو ـ چې حاصل ئ درې خبرې دي: امن ،معيشت، شخصي آزادي لکه لوبې ،تفريح وغيره ـ

آل فرعون په خپل دور کې ډېر کوشش کړی دی چې په دغه مادي پلانونو بني اسرائيل(اسباط) د خپل وضعي قانون منونکي جوړ کړي ، خو په دې دومره کوشش سره په بني اسرائيل کې صرف يو اسرائيلي د وضعي قانون منونکی شوی دی "قارون" ، قرآن پاک وايي: إِنَّ قَارُونَ كَانَ مِنْ قَوْمِ مُوسَىٰ فَبَغَىٰ عَلَيْهِمْ الايه۷۶ القصص ، يقينًا قارون وو د موسی عليه السلام د قوم نه ،پس د موسی د قوم نه يعني د الله تعالی د قانون نه بغاوت وکړو او فرعوني قانون ته تسليم شو ، دی خپل بغاوت ته علم او حکمت وايي، د حالاتو سره د چليدو هنر ورته وايي ،چې اوس د حالاتو تقاضا دا ده چې په ظاهره به د دې خلقو سره ملګري شو ، او په زړه کې به مسلمانان يو ،ظاهر کې به د آل فرعون عسکر يو ، په دې هنر باندې دې ډېره دنيا حاصله کړې وه ،او وئيل به ئې: انما أوتيته علی علم عندی، د امال ما په خپل هنر ګټلی دی۔

بني اسرائيلو به خپل مينځي مسائل د فرعون محکمې ته نه وړل، د اولس وکيلان فرعون ته زورنه او پيغور ورکوي: أَتَذَرُ مُوسَىٰ وَقَوْمَهُ لِيُفْسِدُوا فِي الْأَرْضِ وَيَذَرَكَ وَآلِهَتَكَ الايه ۱۲۷ الاعراف، تهٔ موسی او د هغهٔ قوم ته لاس نه اچوې ،انجام ئې دا دی چې په مصر کې ئې دويم قانون قائم کړی دی،تا ته او ستا ټاکلي حاکمانو ته خپل جنجالونه نه راوړي۔ د موسی عليه السلام په راتلو سره دوي خپل اختلافات موسی عليه السلام ته وړل ،هم دغه مراد دی د فساد ، او د الارض نه مراد مصر دی۔ د دې نه مخکې ئې دا جنجالونه د ځان سره خوندي ساتل ، خو د فرعون محکمې ته ئې نه وړل، فرعون اوس اعلان وکړو : قَالَ سَنُقَتِّلُ أَبْنَاءَهُمْ وَنَسْتَحْيِي نِسَاءَهُمْ وَإِنَّا فَوْقَهُمْ قَاهِرُونَ ۱۲۷ الاعراف ،زهٔ د دوي دا زور ختموم، موسی به مړ کړم او دغه ځوانان به قتل کړم او ښځې به ئې ژوندی پريږدم او مونږ په دوي زورآوريو۔دا جمله د ماقبل لپاره علت دی۔ موسی عليه السلام چې د فرعون د دغې منصوبې او پلان نه خبرشو ،نو قوم ته تسلّی ورکوي: قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اسْتَعِينُوا بِاللَّهِ وَاصْبِرُوا إِنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ يُورِثُهَا مَنْ يَشَاءُ مِنْ عِبَادِهِ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِينَ ۱۲۸ الاعراف ،د الله تعالی نه مدد غواړئ او په خپله عقيده باندې کلک ووسئ ،دا مصر د الله تعالی دی،ورکوي ئې هغه چاته چې خوښه ئې شي ، په دې به د الله تعالی قانون حاکم کيږي او فرعوني قانون به ختميږي۔

بهرحال د بني اسرائيل دا شان او مرتبه وه چې دومره زمانه ئې فرعوني قانون او محکمه نه وه منلې، او کله چې موسی عليه السلام راغی نو په اتفاق سره بغير د خوف او خطر نه راپورته شول او د الله تعالی د حکومت او د هغهٔ د قانون پاسداري ئې شروع کړله، او د آل فرعون (اقباط) نه هم يو ځو کسان سره د ډېرې

ويرې نه دالله تعالی قانون يعني دموسی عليه السلام راوړي دين ته تسليم شول: **فَمَا آمَنَ لِمُوسَى إِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِنْ قَوْمِهِ عَلَى خَوْفٍ مِنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِمْ أَنْ يَفْتِنَهُمْ وَإِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِي الْأَرْضِ وَإِنَّهُ لَمِنَ الْمُسْرِفِينَ ۸۳يونس۔**

آخرداچې دموسی عليه السلام اود فرعون په مينځ کې په حاکميت باندې جګړه خپلې انتهاء ته ورسيدله، فرعون وايي: قَالَ لَئِنِ اتَّخَذْتَ إِلَهًا غَيْرِي لَأَجْعَلَنَّكَ مِنَ الْمَسْجُونِينَ ۲۶الشعراء، وَقَالَ فِرْعَوْنُ يَاأَيُّهَا الْمَلَأُ مَا عَلِمْتُ لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرِي فَأَوْقِدْ لِي يَاهَامَانُ عَلَى الطِّينِ فَاجْعَلْ لِي صَرْحًا لَعَلِّي أَطَّلِعُ إِلَى إِلَهِ مُوسَى وَإِنِّي لَأَظُنُّهُ مِنَ الْكَاذِبِينَ ۳۸القصص، فَقَالَ أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَى ۲۴النزعات، زۀ ستاسو حاکم اوبادشاه يم بل څوک نه ، موسی عليه السلام وايي:إِنَّا رَسُولُ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۱۶الشعراء، الله تعالی دانسانانو حاکم اورب دی ،چې دخپل حکومت لپاره ئ مونږه راوليګلي يو۔ فرعون سراسر ددې نه انکار کوي ،آخر داچې دموسی عليه السلام دشړلو اراده ئ وکړله: فأراد ان يستفزّهم من الارض، خوبني اسرائيل ورسره نه پريږدي، ځکه که پريږدي ئ نو دفرعون په مقابل کې به يو اسلامي ستيټ يعني حکومت إلهيه جوړ شي۔

موسی عليه السلام دالله تعالی په أمربني اسرائيل دمصر نه شام ته بوځي، فرعون ته چې پته ولګيدله نو دفوج سره ورپسې شو ،ټول الله تعالی غرق کړل، بني اسرائيل ډير خوشحاله دي، دبحرقلزم نه پورې غاړې ته ناست دي، اوګوري چې دښمن ئ غوپې خوري اوغرقيږي، دوي شام ته ځي ،په لاره کې ئ څه خلق وليدل، چې دبتانو نه چاپيره ناست دي ،عاکفين،ديوسف عليه السلام نه تراوسه پورې دوي داسې نه وو ليدلې ،نوموسی عليه السلام ته وايي:إجعل لنا إلها كما لهم آلهة، مونږ له هم داسې إله جوړکړه څنګ چې ددوي دی ، دوي ته داکار جائزښکاره شو ،ځکه دوي دغه خلق په عکوف يعني بتانو ته په ناسته ليدلي وو چې حاجت ئغوښتو ددوي په واسطه، نو شيطان ورته داطريقه ښه ښکاره کړله،موسی عليه السلام ورته وايي (إنّكم كنتم قوما تجهلون ) تاسو ډير بےصبره خلق ئ، داخلق تباه او ددوي داعمل باطل دی، (أغيرالله ابغيكم ربّا) آيا دالله نه علاوه بل رب درله وګورم ،حال دادی چې هغه علی الاطلاق حاکم دی۔

موسی عليه السلام ورله اصلاح وکړله ،چې حاجت دحاکم نه غوښتلې کيږي اوځاکم يواځې الله تعالی دی۔ شام ته ورسيدل ، هلته دوي ته الله تعالی طاقت او زور ورکړو ، ددغه ځائ خلق هم دموسی عليه السلام په راتلوډير خوشحاله شول ،مهاجر اوانصارټول۔ شام دنبيانو خاوره وه ،خودغه وخت پکې نبي

نه وو ، دا خلق د نبی په انتظار وو ،چې موسی علیه السلام راغې نو بیعت ئ وسره وکړو ، او خپل حاکم ئ کړو ،دا بیعت په باب د حکومت کې وي،د ټولو پیغمبرانو بیعت یو شان وي، په سورة ممتحنه کې د نبی علیه السلام بیعت ذکر دی، په هغې کې په ټولو عقوباتو او حدود شرعیه باندې د بیعت ذکر دی :يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ عَلَى أَنْ لَا يُشْرِكْنَ بِاللَّهِ شَيْئًا وَلَا يَسْرِقْنَ وَلَا يَزْنِينَ وَلَا يَقْتُلْنَ أَوْلَادَهُنَّ وَلَا يَأْتِينَ بِبُهْتَانٍ يَفْتَرِينَهُ بَيْنَ أَيْدِيهِنَّ وَأَرْجُلِهِنَّ وَلَا يَعْصِينَكَ فِي مَعْرُوفٍ فَبَايِعْهُنَّ وَاسْتَغْفِرْ لَهُنَّ اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ۱۲۔

بني اسرائیلو موسی علیه السلام ته خپلې قصې کولې، مشرانو او پوهانو ورته په اتفاق سره دا خبره وکړه، چې په ظاهري اسبابو کې یو غټ سبب زمونږ د زوریدلو دا وو چې د وخت حاکم نبي به ترکومه پورې وو نو خبره به روغه وه، که هرقسمه خبره به مینځ ته راغله نو نبي به اصلاح کوله،خو یو وخت به داسې راغی چې نبي به نه وو ،او د "وحې " یعني دا الله د قانون پوهه خلق به هم لږ وو ،نو خبره به رو رو ورانیدله ، دا الله تعالی حکم به بیا هغه شان پاتي نه شو ،اهمال به ئ راغې، نو په دې وجه به الله تعالی زمونږ نه ناراضه شو ، نو تهٔ الله تعالی ته زمونږ د طرفه دوه سوالونه وکړه : ۱۔ یو دا چې دا الله تعالی قانون لیکلې راشي، نو څوک به پکې ګړبړ نه شي کولې، ۲۔ دویم دا چې د غه "کتاب الله "دې صرف د پیغمبر د تنفیذ سره خاص نه وي ،بلکه نور خلق دې هم د دې اهل وګرځولې شي چې دا الله تعالی قانون زده کړي او په دې باندې فیصله کولې شي،نو بیا که نبي نه وي هم ،خو خلق به دا الله تعالی کتاب ته رجوع کوي۔

د دغه وخت پورې د چا په ذهن کې د دې خبرې تصور هم نه وو چې دا الله تعالی د قانون او د اسماني عقوباتو په ځائ به څوک بله سزا او بل قانون جوړ کړي ، نو د اسماني کتاب مطالبه ئ په دې خاطر وکړله ، که نبي وي او که نه وي خو "کتاب الله "به حاکم وي ،چې څه خبره وي نو دې ته به رجوع کیږي۔

موسی علیه السلام د دوي دا دواړه مطالبې الله تعالی ته وړاندې کړلې، الله تعالی د دې لپاره موسی علیه السلام ته د د دیرش(۳۰ ) روژو وظیفه ورکړله: وَإِذْ وَاعَدْنَا مُوسَى أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَنْتُمْ ظَالِمُونَ ۵۱البقره. وَوَاعَدْنَا مُوسَى ثَلَاثِينَ لَيْلَةً وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً وَقَالَ مُوسَى لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي وَأَصْلِحْ وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيلَ الْمُفْسِدِينَ ۱۴۲الاعراف. د روژې ماښام د قبلیدو وخت وي، موسی علیه السلام د وظیفې پوره کیدو نه روستو لاړو دا الله تعالی ملاقات له، انساني طبیعت داسې دی چې د چا ملاقات له ځي نو ښه صفایي وکړي،اوبیا خصوصًا دا الله تعالی در ته ،د هغې خو مستقل حکم دی: (یبني آدم خذوا زینتکم عند کل مسجد . نو موسی علیه السلام هم د غه شان اهتمام وکړو ، خو په دې سره ئ د

روژي هغه کيفيت ختم شو ،يعني هغه بويي اوخوند د خلې، نوالله تعالی ورته د نورو لسو روژو أمر وکړو چې هغه زوړ کيفيت بيا راشي ، په دغه کيفيت موسی عليه السلام دالله تعالی سره کلام وکړو ،الله تعالی ئ دواړه سوالونه قبول کړل۔

دبني اسرائيلو مشرانو ددې خبرې خواهش وکړو چې مونږ هم درسره ځو چې دالله تعالی دا راليګلی کتاب په جمع باندې راوړو ، چې زمونږ په حضور کې نازل شي اومونږ ترې برکت حاصل کړو ، اوويا کسان لاړل دموسی عليه السلام سره، الله تورات نازل کړو ، آسماني صفحه وه دلرګي ،دکاغذ په شان، جنّتي لرګي وو ،په جنّتي سياهۍ سره ليکلې شوي وو ،لکه دسروزرو ليکلی ، په کتلو به ورته انسان نه مړيدو ، بيا ددوي مطالبه وکړله چې مونږ دالله تعالی آواز واورو ، چې الله تعالی اووايي: دازما کتاب اوقانون دی ۔

الله رب العزت ددوي دا سوال هم قبول کړلو ، او ددوي غوږونو دالله تعالی آواز من وراءالحجاب واوريدو ، دا ددوي خصوصيت وو ، ددې نه مخکې به الله تعالی صرف دجنّاتو سره په دې طريقه خبرې کولې۔

په دې طريقه کلام سره ددغه غمزپلي قوم زړونه ټکورول هم مقصود وو ،خواصل مقصد اتمام حجت وو ، الله تعالی ورته فرمايي :م خذوا ماآتيناکم بقوّة واذکروا مافيه لعلکم تتقون ، دا آواز دالله دقانون په باره کې وو ، خودوي بياوئيل چې مونږ الله تعالی ليدل غواړو :أرناالله جهرة، خو الله تعالی په دنياکې ليدلې کيږي نه، نوپه دې الله تعالی راونيول ،يعني سزا ددې جرم ئ ورکړه ،ځکه دوي دا مطالبه غلطه وه : فأخذتکم الصاعقة۔

دغې عذاب نه الله تعالی راوباسل او دښمن ئ ورله مخامخ غرق کړو ،او دنجات وطن ته روان دي ،په لاره کې ئ څه خلق په بت پرستۍ وليدل ،دشرک دکولو مطالبه کوي او څه دليل په نه غواړي او چې الله تعالی ورته دخپل قانون دعملي کولو وايي نو دليل غواري: وَإِذْ قُلْتُمْ يَامُوسَىٰ لَنْ نُؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ نَرَى اللَّهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْكُمُ الصَّاعِقَةُ وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ ۵۵البقره خپل پيغمبر موسی عليه السلام ته وايي چې مونږ تاخپل حاکم او ستاراوړی قانون ترهغه وخته پورې نه منو ترکومه پورې چې مونږ الله تعالی مخامخ نه وي ليدلی ۔الله تعالی ددوي په دې سوال راضي نه وو ، په دنيا کې دالله تعالی ليدل نه کيږي ، که پيغمبر ئ هم وغواړي، نوالله تعالی دا خلق مړۀ کړل، د څه وخت پورې مړۀ وو ، موسی عليه السلام الله تعالی ته

سوال وکړو چې ای الله دې خلقو ته معافي وکړې، الله تعالی بیا راژوندي کړل، چې مړۀ شوي وو نود برزخ عالم ته تلي وو ،اوهلته دا الله تعالی لیدل کیږي، دأهل السنة والجماعة عقیده ده چې دآخرت په نعمتونو کې دټولو نه غټ نعمت رؤیت دا الله تعالی دې، نو ددې قصي نه معلومیږي چې الله تعالی سره د زورنې نه ددوي دا مطالبه هم پوره کړله،او دوي الله تعالی لیدلی دی۔ (دا توجیه که صحیح وي فمن الله،اوکه غلطه وي نو الله دې معافي وکړي ) ۔

حاصل دا چې موسی علیه السلام دا الله کتاب تورات راخستی دی،قوم هم ورسره دی، ډیر خوشحاله دې، تورات عبرانی ژبه کې قانون ته وایي، صفتي نومونه ئ ډیر وو : فرقان، هدی، رحمة وغیره، دغه نوم "قانون " الله تعالی د قرآن هم کیخودلو په عربی ژبه کې "الکتاب" ۔

موسی علیه السلام دخپل قوم نه ډیر مطمئن وو ، ځکه دا دولس(۱۲) قبیلې وې، ټولو دا الله تعالی قانون ته غاړه ایخودي ده، او د الله تعالی دقانون مطالبه ئ کړې ده، په دې خوشحالی سره موسی علیه السلام کوه طور ته راغی، الله تعالی دبني اسرائیلو باطني حال په موسی علیه السلام باندې کشف کړلو ، چې دکوم قوم نه تۀ دومره مطمئن ي چې اوویا کسان دې ترې راوستي دي مهبط الوحی ته،ددې قوم باطني کیفیت دغه نه دی، اوس چې تۀ دلته راغلی ي، اوبل پیغمبر هارون علیه السلام هلته موجود دی ، خو هغوي بیا هم شرک فی العبادة شروع کړی دی،حالانکه تا ددې کفر اوبطلان دوي ته هغه وخت بیان کړي ووچې دوي تاته وئیل: اجعل لناإلها الایه ، موسی علیه السلام په ډیر خفګان اوغصې سره واپس شو قوم ته: وَلَمَّا رَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا۱۵۰الاعراف ، فَرَجَعَ مُوسَىٰ إِلَىٰ قَوْمِهِ غَضْبَانَ أَسِفًا۸٦طه ، دموسی علیه السلام سره ډیره غټه دهوکه وشوه، لږ وخت شوی دی چې دا خلق الله تعالی د عظیم مصیبت نه خلاص کړل، خو کله چې موسی علیه السلام دقوم لپاره تورات راوړلو له طور ته لاړو ، نو په دغه خوشحالئ پوهه نه شو ، کله چې واپس شو دخپل ورور سره په جنګ شو ،چې تۀ دلته وی او دوي داکار کولو ؟ ،هارون علیه السلام ورته عذر کوي، الله تعالی دغه عذر بیانوي ؛ وَلَقَدْ قَالَ لَهُمْ هَارُونُ مِنْ قَبْلُ يَاقَوْمِ إِنَّمَا فُتِنْتُمْ بِهِ وَإِنَّ رَبَّكُمُ الرَّحْمَٰنُ فَاتَّبِعُونِي وَأَطِيعُوا أَمْرِي طه ۹۰ . هارون علیه السلام ورته پوره مسئله بیان کړې وه، خو هغوي وئیل: لَنْ نَبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ حَتَّىٰ يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَىٰ، مونږ دا خپل ضد اوکفر نه پریږدو ، هارون علیه السلام وایي موسی علیه السلام ته:يَبْنَؤُمَّ لَا تَأْخُذْ بِلِحْيَتِي وَلَا بِرَأْسِي إِنِّي خَشِيتُ أَنْ تَقُولَ فَرَّقْتَ بَيْنَ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَلَمْ تَرْقُبْ

قَوْلٍ،ما ورته مسئله بیان کړې وه ،خو زور مې پرې نه کولو ، په دې خاطر چې تهٔ به ددوي دحال نه پریشانه شی ـ

اوس دوي کوم شرک کړی وو ؟: وَاتَّخَذَ قَوْمُ مُوسَى مِنْ بَعْدِهِ مِنْ حُلِيِّهِمْ عِجْلًا جَسَدًا لَهُ خُوَارٌ أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا اتَّخَذُوهُ وَكَانُوا ظَالِمِينَ ۱۴۸الاعراف ، فَأَخْرَجَ لَهُمْ عِجْلًا جَسَدًا لَهُ خُوَارٌ فَقَالُوا هَذَا إِلَهُكُمْ وَإِلَهُ مُوسَى فَنَسِيَ ۸۸طه،ددوي شرک دا وو چې د سرو سخي ته ئ إله وئیلی وو ،دوي چې دا إله جوړ کړي وو دا په کومه معنې وو ؟،الله تعالی په دوي رد کوي : أَلَمْ يَرَوْا أَنَّهُ لَا يُكَلِّمُهُمْ وَلَا يَهْدِيهِمْ سَبِيلًا ـ أَفَلَا يَرَوْنَ أَلَّا يَرْجِعُ إِلَيْهِمْ قَوْلًا وَلَا يَمْلِكُ لَهُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا۸۹طه ،یعني دوي ورته نبه ګوري چې په دې سخي کې علم کامل او قدرت کامله نشته ، او دادواړه علت دي دحاکم کیدو لپاره، چې علت نشته نو معلول هم نشته ، چې حاکم نه دي نو دوي ترې حاجت څنګ غواړي او چې وايي: لَنْ نَبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَيْنَا مُوسَى ۹۱طه، حالانکه حاجت خو دحاکم نه غوښتې شي، نو الله تعالی ددې خلقو دشرک نفي او ابطال په نفي د دوه علتونو سره وکړله ،علم کامل او قدرت کامله، چې هغه علت دي دحاکمیت لپاره ،نو دسخي دعبادت ابطال ئ دسخي دحاکمیت په ابطال سره وکړلو ،او دحاکمیت نفي او ابطال ئ دعلت په نفي سره کړې دی۔ او په دې خلقو کې دمخکې نه کله چې دوي مشرکان وو داعقیده وه چې قدرت کامله او علم کامل دالله تعالی سره خاص دي۔

موسی علیه السلام ورته په دویم ځل تبلیغ وکړو ، دالله تعالی دحق دعوت ئ ورکړو ، دې خلقو توبه وباسله ، الله تعالی ورله توبه قبوله کړله، اودا خلق بیا مسلمانان شول۔

په باب دعبادت کې په دې خلقو کې دا شرک یو ځل راغلی دی، سامرې چې ددې کار باني وو ، دهغهٔ سره معامله بل شان وشوه ، په یو عذاب کې مبتلا شو :قَالَ فَاذْهَبْ فَإِنَّ لَكَ فِي الْحَيَاةِ أَنْ تَقُولَ لَا مِسَاسَ ،په دنیا کې دچا سره دژوند کولو قابل پاتې نه شو۔

"لَنْ نَبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ" ، "ظَلْتَ عَلَيْهِ عَاكِفًا" ددې نه معلومیږي چې دا شرک دشفیع په صورت کې وو ، دا سخې ئ شفیع وو ، خو مفسرینو دا خبره هم کړې ده چې ددوي داعقیده جوړه شوې وه چې الله په دې سخي کې حلول کړی دی، لهذا دې سخي ته راجع کیدل الله تعالی ته راجع کیدل دي، دا دهندوانو عقیده ده، خو دا شرک یعني شرک في العبادة په اهل کتابو کې په هغه وخت کې لږ غوندې وجود

موندلی دی، بیا ختم شوي دی ،دوي توبه وباسلي ده ،الله تعالی اعلان دمعافی کړی دی، صورت دمعافئ الله تعالی ذکر کړی دی: وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ يَاقَوْمِ إِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ أَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوبُوا إِلَى بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ۵۴البقره ، ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ۵۲ البقره ، ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ فَعَفَوْنَا عَنْ ذَلِكَ الایه النساء ۱۵۳۔

لنډه داچې بني اسرائیلو کې شرک فی العبادة یو ځل راغلی دی، الله تعالی معاف کړي دي په توبې سره ، بیا ئ داکار نه دی کړی۔

مشرکین چې کافران وو نو دوه وجې وې، شرک فی الحکم او شرک فی العبادة، په خلاف دأهل کتابو ، خصوصًا یهود ،چې په دوي کې شرک فی العبادة اګرچه راغلی دی خو پاتې شوی نه دی پکې، بلکه توبه ئ وباسلې ده۔

د دي نه روستو چي په أهل کتابو کې څومره خرابي اوفساد راغلی دی، دهغې ټول تعلق دحاکمیت سره دی،دعبادت سره نه دی، الله تعالی داپه تفصیل سره بیان کړي دي : يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ۲۶**النساء** ، الله تعالی دې امت ته دمخکې خلقو حال بیانوي ،چې هغوي څنګ ژوند کړي دی دالله تعالی د حکومت په باب کې۔

۱ ۔ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ البقره ۶۳۔ کله چې تورات راغی نودوي موسی علیه السلام ته وئیل چي ددې احکام اوقوانین ډیر مشکل دي ،دامونږ نه شو عملي کولي، نوالله تعالی په دوي هغه غر اوچت کړلو چې نوم ئ طور دی ، چې په دوي سخته راغله باران نه کیدواو دکوه طور خواوشا باران کیدو نودوي هلته لاړل ، د غر په لمنه کې اباد شول، الله په دوي کوه طور وچت کړلو ،څلورطرفه ئ ترې اوور تاؤ کړلو چي داتورات دالله تعالی قانون دی دا به عملي کوئ، دا إکراه فی الایمان نه وه ـبلکه دا دایمان قبلولو ن روستو داحکام الهیه دعملي کولو لپاره وه، داجاتز ده، نو دا اکراه هم په باب دحاکمیت کې وه۔

۲۔ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِي السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ۶۵ البقره ، ددې تفصیل سورة اعراف کې دی: وَاسْأَلْهُمْ عَنِ الْقَرْيَةِ الَّتِي كَانَتْ حَاضِرَةَ الْبَحْرِ إِذْ يَعْدُونَ فِي السَّبْتِ إِذْ تَأْتِيهِمْ حِيتَانُهُمْ يَوْمَ سَبْتِهِمْ شُرَّعًا

وَيَوْمَ لَا يَسْبِتُونَ لَا تَأْتِيهِمْ كَذَلِكَ نَبْلُوهُمْ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ١٦٣، دبحرقلزم په غاړه يو ښار آبادوو د أيلهپه نوم ، ددوي ذريعه آمدن او معيشت ټول په مهيانو باندې وو۔دوي ته الله تعالى أمر وکړو چي د شنبې په ورځ د مهيانو ښکار مه کوئ، دوي دالله تعالى حکم مات کړلو ،او دهغې لپاره ئ حيله وکړله، په دې ورته الله تعالى کافر اوفاسق وئيلي دي: لعن الذين کفروا من بني اسرائيل ، تردې چي الله تعالى ددوي نه شادوګان جوړ کړل، وجه دا وه چي دالله تعالى حکم ئ نه وو منلى۔ ددې عذاب او واقعې تعلق هم دحاکميت سره دى۔

٣ ۔ وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ إِنَّ اللهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً قَالُوا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا قَالَ أَعُوذُ بِاللهِ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْجَاهِلِينَ٦٧ ، قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا هِيَ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ عَوَانٌ بَيْنَ ذَلِكَ فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ ٦٨ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا لَوْنُهَا قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَوْنُهَا تَسُرُّ النَّاظِرِينَ ٦٩ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا هِيَ إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ عَلَيْنَا وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ لَمُهْتَدُونَ ٧٠ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَا ذَلُولٌ تُثِيرُ الْأَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَا شِيَةَ فِيهَا قَالُوا الْآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ ٧١ وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادَّارَأْتُمْ فِيهَا وَاللهُ مُخْرِجٌ مَا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ ٧٢ فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا كَذَلِكَ يُحْيِ اللهُ الْمَوْتَى وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ٧٣ ،

قسامت يو شرعي حکم دى ، تفصيل ئ دفقهې په کتابونو کې دى، نوددې حکم شرعي دغېرمؤثر ثابتولو لپاره بني اسرائيل يو پلان کوي ،چې داثابته کړي چې په اسماني قوانينو سره دجان، مال اوعزت تحفظ نه شي کيدلې، او دروستو راتلونکو لپاره ئ يو دليل جوړولو چې انساني قوانين دهر وخت ضرورت دى، نو دوي يو مالدار سړې قتل کړو ، خپل رشته دار ئ وو ، مورث وو ، او ډيره ښائسته ښځه ئ هم وه، دوي موسى عليه السلام ته عريضه وکړله چې زمونږ دا رشته دار چا وژلى دى، لهذا مونږ حق دقسامت لرو ، نو تۀ أمر وکړه چې مونږ ددوي نه پنځوس (٥٠) کسان منتخب کړو ، تۀ به ورته قسم ورکړې چې قاتل معلوم شي ، په دې سره ددوي يو مقصد دا هم وو چې خلقو ته دا اوښايي چې په قانون دقسامت سره قاتل او ظالم ته فائده رسيږي،ځکه چې ټول قسمونه وکړي نو بيا به دغه خلق دمقتول ورثاو ته ديت ورکوي۔

دوي چې مطالبه دقسامت وکړله نو الله تعالى وحي راوليګله چې دوي ته ددې قضيې حل داسې اووئيلو: دالله تعالى أمر اوفيصله داده چې تاسو يو غوا ذبح کړئ۔ " قَالُوا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا "، په دې کلام سره دوي موسى عليه السلام ته دکفر نسبت کوي ،ليکن دتعريض د وجې نه دوي دکفر حکم نه لګوي۔

"هزء " دبدیل راوړلو په صورت کې انکار کولو ته وایي، نو معنی دا شوه: أتتخذناهازئین، نسبت ئ ظاهرًا خپل ځان ته کوي چې ستا په مونږ داګمان دی چې مونږ دالله تعالی حکم قسامت نه منو ، او بل قانون غواړو۔غرض ئ دا وو چې دداسې پیښو لپاره په تورات کې دالله تعالی قانون قسامت دی ، نو تهٔ ولې دهغې په ځای بل قانون مونږ ته وړاندې کوی ؟۔ موسی علیه السلام پوهه شو چې تاسو ماته د جهل نسبت کوئ، یعني دکفر، ددې نه زهٔ پناه غواړم دالله سره۔

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا هِيَ، دوي پوهه شول چې زمونږ دا خبره ځای نه نیسي، او زمونږ دا پلان نه کامیابیږي، نو بیا ئ دحکم إلهي نه دانکار کولو طریقه بدله کړله او دالله تعالی په دی نوي قانون او حکم کې ئ عیب او کوږوالی شروع کړو ،او وایي چې دا دالله تعالی فیصله ده نو مونږ غواړو چې ښه پوهه شو ۔

قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ عَوَانٌ بَيْنَ ذَلِكَ فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ موسی علیه السلام ورته نصیحت کوي چې دالله تعالی فیصله ومنئ او عملي ئ کړئ۔ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَنَا مَا لَوْنُهَا ، په دې بهانو او اعذارو سره ددوي مقصد فرار وو دالله دحکم نه، خو د اردو ژبې نقل دی وایي:

(جتنا تڑپو گے جال کے اندر جال گھسے گا کھال کے اندر)

قَالُوا الْآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ، اوس دې واضحه فیصله واوروله، "بالحق " معنی اوس ددې نه مونږ نه شو تختیدې ۔

وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادَّارَأْتُمْ فِيهَا وَاللَّهُ مُخْرِجٌ مَا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ ، کله چې تاسو سړي قتل کړلو نو بیا مو په یو بل اچولو ، یعني قسامت مو غوښتلو ، قسامت کې هم داوي چې هریو دځان نه قتل اړوي په قسم سره او داسې وایي: ماقتلته ولا اعلم له قاتلًا دامړی مانه دي کړ او نه راته ددې قاتل معلوم دی ، نو مطلب دا شو چې ستاسو دا قتل دقسامت په بنیاد وو ،چې په موسی علیه السلام به دا مسئله په قسامت سره حل کړو نو دا خبره به ښکاره کړو چې په دې قانون سره دقتل مونده خع څه چې هغهٔ ته پکې تحفظ رسي ځکه قاتلان هم دوي وو ۔ بلکه قاتل ته پکې مالي فائده هم رسي او دا به هم ښکاره شي چې په اسماني قوانینو کې جان ،مال او عزت غیر محفوظ دي،نو دا قانون به بی أثره شي ،اود موسی علیه السلام دیو مخلص صحابي قتل به هم هدر شي۔ قسامت په هغه صورت کې وي چې قاتل ورک وي او هیڅ درک ئ

نه لګي۔ او الله تعالی ته د دوي د ټول پلان معلوم وو نو د دوي د پلان ئ رسوا کړلو او قاتل ئ ښکاره کړلو ۔ فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا، الله تعالی وئیل مس ّ کړئ دا مړې په بعض حصه د غوا سره ۔ وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ، الله تعالی درته خپل قانون ښايي چې د الله تعالی په قانون سره د جان، مال او عزت تحفظ کیږي۔

د او سني خلقو په شان دې خلقو د الله تعالی په نوم قسم خوړل معمولي خبره ګنړله۔ په مالي معاملاتو کې په منکر باندې یو قسم دی۔ او په قسامت کې پنځوس قسمونه دي۔ دوي د الله تعالي د نوم دا احترام او عقیده د خلقو د ذهن نه ورکوله چې په قسم هیڅ نه کیږیکه هر څومره و خوړلی شي ۔ او ټول قانون د قسامت ئ د مسخرې او د خندا وګرځولو ۔

دا ټوله واقعه چې بیان شوه ،د دې تعلق د الله تعالی د قانون سره دی، یعني د یهودو ټول خباثتونه د حاکمیت په باب کې وو ۔

۴ ۔ وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوا هَذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُولُوا حِطَّةٌ نَغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ وَسَنَزِيدُ الْمُحْسِنِينَ ۵۸ فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ فَأَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ۵۹البقره ۔

د "اريحا " په نوم يو ښار وو ،په دې کې د مخکې نه عمالقه قوم اباد وو ،دا د عاديانو او د ثموديانو اولاد وو، دوي پکې خپل انساني وضعي قانون حاکم کړی وو ،الله تعالی بني اسرائيلو ته أمر وکړو چې دې ښار ته د ننه شئ "**سجّدا** " په دې قصد چې د الله تعالی قانون منونکي به يئ ۔ سجدهٔ شرعي بمعنی وضع الجبهه علي الارج نه ده مراد ځکه هغه ممکن نه ده ۔ وَقُولُوا حِطَّةٌ ،او په ژبه واي: اے الله مونږ ته معافي وکړی۔ نَغْفِرْ لَكُمْ خَطَايَاكُمْ ، ستاسو ګناهونه به تاسو ته معاف کړو ۔

فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ فَأَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ۵۹، د الله تعالی حکم ئ اونه منلو ،د الله تعالی ښود لې شوې کلمه ئ اونه وئیله، او د غه ښار ته هم داخل نه شول ،نو الله تعالی په عذاب نازل کړو ۔ دا واقعه هم د الله تعالی د حق حاکمیت سره متعلق ده ۔

**۵** ۔ وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنْبِيَاءَ وَجَعَلَكُمْ مُلُوكًا وَآتَاكُمْ مَا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِينَ ،يَا قَوْمِ ادْخُلُوا الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِي كَتَبَ اللهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوا عَلَى أَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ المائده ۲۰،۱۹۔

دالله تعالی حکم داوو چې قوم عمالقه به په دې ښار کې وي او تاسو به وردننه کيږئ. دوي وئيل چې داخلق دې ووځي نوموږ به دننه شو. دا تبديل د حکم الله دی ، لکه څنګ چې ئ لفظ د "حِطّةٌ" بدل کړې وو. دلته هم بني اسرائيلو دالله تعالی نافرماني کړي ده په باب د حاکميت کې.

حاصل دا چې دأهل کتابو څو مره واقعات دي دالله تعالی د نافرمانئ، دهغې ټولو تعلق دالله د حاکميت سره دی، په باب د عبادت کې الله تعالی خفه کول قرآن نه دي بيان کړي.

يَسْأَلُكَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتَابًا مِنَ السَّمَاءِ فَقَدْ سَأَلُوا مُوسَى أَكْبَرَ مِنْ ذَلِكَ فَقَالُوا أَرِنَا اللهَ جَهْرَةً فَأَخَذَتْهُمُ الصَّاعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ فَعَفَوْنَا عَنْ ذَلِكَ وَآتَيْنَا مُوسَى سُلْطَانًا مُبِينًا ١٥٣ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّورَ بِمِيثَاقِهِمْ وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ وَأَخَذْنَا مِنْهُمْ مِيثَاقًا غَلِيظًا ١٥٤ فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِآيَاتِ اللهِ وَقَتْلِهِمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا غُلْفٌ بَلْ طَبَعَ اللهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ١٥٥ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَى مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا ١٥٦ وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللهِ وَمَا قَتَلُوهُ وَمَا صَلَبُوهُ وَلَكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ وَإِنَّ الَّذِينَ اخْتَلَفُوا فِيهِ لَفِي شَكٍّ مِنْهُ مَا لَهُمْ بِهِ مِنْ عِلْمٍ إِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوهُ يَقِينًا ١٥٧ بَلْ رَفَعَهُ اللهُ إِلَيْهِ وَكَانَ اللهُ عَزِيزًا حَكِيمًا ١٥٨ وَإِنْ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهِ قَبْلَ مَوْتِهِ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكُونُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا ١٥٩ فَبِظُلْمٍ مِنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيلِ اللهِ كَثِيرًا ١٦٠ وَأَخْذِهِمُ الرِّبَا وَقَدْ نُهُوا عَنْهُ وَأَكْلِهِمْ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ مِنْهُمْ عَذَابًا أَلِيمًا ١٦١ النساء، په دې آيتونو کې د دوي دواقعاتو مختصر ذکر دی سره د حکم نه.

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِآيَاتِ الله ،دميثاق نه مراد ميثاق په باب د حاکميت کې دی.

وَإِذْ أَخَذَ اللهُ مِيثَاقَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ لَتُبَيِّنُنَّهُ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُونَهُ فَنَبَذُوهُ وَرَاءَ ظُهُورِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُونَ ١٨٧ ال عمران . او کله چې لوظ اخستی وو الله تعالی دهغې خلقو نه چې ورته ورکړی شوی وو قانون چې دا به بيانوئ خلقو ته او نه به ئ پټوئ نو هغوي هغه حکم شاته وغورځولو او اخستلو ئ دهغې په بدل کې لږقيمت ، نو ډير بد دي هغه څه چې وي واخستل.

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُمْ بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ **١٦٣البقره** ،نو سورة نساء وايي: فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِيثَاقَهُمْ، دالله تعالی د طاعت لوظ دوي مات کړلو ، وَكُفْرِهِمْ بِآيَاتِ الله، دالله تعالی د قانون نه ي انکار وکړو ،وَقَتْلِهِمُ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ،دالله تعالی د قانون رجال ئ شهيدان کړل، وَقَوْلِهِمْ قُلُوبُنَا

غُلْفٌ، زړۀ دعقل مرکز دی نو مطلب دادی: مونږعقل لرو ،ځان له قانون جوړولې شو ، اسماني قانون ته ضرورت نشته ـ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ، صرف دعوی د ایمان لري ،حقیقت کې ایمان نشته، وَقَوْلِهِمْ إِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيحَ عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُولَ اللهِ، دفرعونیانو په شان ئ داخبره کوله چې دنن نه بعد به دالله تعالی قانون حاکم نه وي، عیسی راغلې وو دحکومت لپاره ،هغه مونږ قتل کړی دی ـ فَبِظُلْمٍ مِنَ الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبَاتٍ أُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيلِ اللهِ كَثِيرًا، الله تعالی فرمایي: په دې خلقو چې څومره عذابونه راغلي وو ،دا په باب دحاکمیت کې وو ـ

ذَلِكَ جَزَيْنَاهُمْ بِبَغْيِهِمْ ۱۴۶الانعام، دالله تعالی دقانون نه ئ بغاوت کړې وو ـ وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا مَا قَصَصْنَا عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَمَا ظَلَمْنَاهُمْ وَلَكِنْ كَانُوا أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ۱۱۸النحل ـ

حاصل دا چې یهود اول دالله تعالی دحکم منونکي جوړ شول، بیا پکې فساد راغی، هغه هم په باب دحاکمیت کې وو، بیا په باب دحاکمیت کې کافران شوي دي، اوپه باب دعبادت کې کافر نه دي۔الله تعالی چې رانیولي دي نو په باب دحاکمیت کې ئ رانیولي دي۔

وَحَسِبُوا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَحَسِبُوا أَلَّا تَكُونَ فِتْنَةٌ فَعَمُوا وَصَمُّوا ثُمَّ تَابَ اللهُ عَلَيْهِمْ ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِنْهُمْ وَاللهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ المائده۷۱، دالله تعالی دحکم نه ئ مخ اړولی وو اوسره ددې ئ داخیال وو چې په مونږبه دالله تعالی عذاب به رانشي دالله تعالی دقانون نه ئ ځان ړوندکونړ کړې وو، آخر الله راونیول او دخپل نعمت نه ئ محروم کړل۔

سَأَصْرِفُ عَنْ آيَاتِيَ الَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي الْأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَإِنْ يَرَوْا كُلَّ آيَةٍ لَا يُؤْمِنُوا بِهَا وَإِنْ يَرَوْا سَبِيلَ الرُّشْدِ لَا يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا وَإِنْ يَرَوْا سَبِيلَ الْغَيِّ يَتَّخِذُوهُ سَبِيلًا ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا وَكَانُوا عَنْهَا غَافِلِينَ ۱۴۶الاعراف ، هغه خلق چې دالله تعالی دقانون نه ځان غټ ګڼري، اوپه انساني قانون فیصلې کوي، که پیغمبر ورته اشي نو ایمان په نه راوړي، خپل بادشاه کوي ئ نه ، که دالله تعالی دقانون نه دبغاوت لاره ویني په هغې چلن کوي،الله تعالی فرمایي داخلق زۀ دخپل قانون نه محرومه کوم۔

موسی علیه السلام هم ددغه تیرشوو حالاتو نه، اودالله دقانون سره د بدچلن په وجه ددوي نه تنګ شو، اودوي ئ منع کول ددۀ بدچلن نه ،خودوي خپل شرارت نه پریخودو: وَإِذْ قَالَ مُوسَى لِقَوْمِهِ يَاقَوْمِ لِمَ تُؤْذُونَنِي وَقَدْ تَعْلَمُونَ أَنِّي رَسُولُ اللهِ إِلَيْكُمْ فَلَمَّا زَاغُوا أَزَاغَ اللهُ قُلُوبَهُمْ وَاللهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ۵الصف، دالله تعالی

د قانون نه خلاف کولو سره د پیغمبر زړهٔ درد یږي ،دوي ته ښه پته وه چې موسی علیه السلام د الله تعالی د طرفه مطاع رالیګلې شوی دی. کله چې دوي د الله تعالی د قانون نه کاږهٔ شول نو الله تعالی د دوي زړونه کاږهٔ کړل.

د الله تعالی فرض نه اداء کول ظاهري اسلام پریخودل دي، خو په عقوباتو کې داسې نه ده چې دا عملي ګناه دی، او مسلمان به پاتې شي ،بلکه په باب د حاکمیت کې د الله تعالی د قانون نه عملي مخ اړول یعني د الله تعالی د مقرر سزا په ځائ بله سزا ورکول اعتقادي انکار دی .وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ . ددې معنی هم داده چې چا د الله تعالی مقرر سزا ورنکړله هغه چې الله تعالی نازل کړې ده نو دا خلق کافران دي.

وَإِذْ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ يَابَنِي إِسْرَائِيلَ إِنِّي رَسُولُ اللَّهِ إِلَيْكُمْ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرَاةِ وَمُبَشِّرًا بِرَسُولٍ يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ فَلَمَّا جَاءَهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ قَالُوا هَذَا سِحْرٌ مُبِينٌ ٦ الصف ،بیا دوي ته عیسی علیه السلام راغی، هغهٔ ورته هم وايي :زهٔ د الله تعالی د طرفه منتخب بادشاه یم، د تورات د قانون مصدّق یم ، هغه به په خپل حال پاتې وي ،په هغې به فیصلې کیږي، او د یو بل اسماني حاکم او بادشاه زیرې درکوم، نوم ئ احمد دی، بیا دوي د نبي علیه السلام د دعوت نه هم انکار وکړو . وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُوَ يُدْعَى إِلَى الْإِسْلَامِ په،او د هغه نه بل څوک ظالم نشته څوک چې په الله تعالی باندې دروغ وايي چې الله تعالی د حکومت حق نه لري ،حالانکه هغه د الله تعالی حکمبرداری ته رابللی کیږي. یعني دې ظالمانو په الله تعالی دروغ وئیل چې د حکومت اختیار الله تعالی انسان ته ورکړی دی، د ټولو نبیانو ورته یو شان دعوت وو چې د الله تعالی قانون ته ئ رابلل،اسلام ته .

په الله تعالي باندې د دروغو جوړولو څه معنی ده ؟،دلته ئ ورله علت بیان کړی دی: يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ٨ هُوَ الَّذِي أَرْسَلَ رَسُولَهُ بِالْهُدَى وَدِينِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ وَلَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُونَ٩ ، او سورة توبه آیت ۳۱ کې د دغه افتراء بیان دی ؛ اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ ،دوي د الله تعالی د قانون په مقابل کې انساني قانون حاکم کړی دی، وروسته آیت کې د الله تعالی د قانون د نه منل علت بیان شوی دی : يُرِيدُونَ أَنْ يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ . نو د "اتخاذالارباب" او "افتراء علی الله "د دواړو علت یو دی نو معنی به ئ هم یو وي یعني د الله تعالی د قانون پ ځائ بل قانون حاکم کول.

د افتراء په مقابل کې اسلام ذکر دی، او د اسلام نه مراد عقوبات او د الله تعالی قوانین دي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَجِيء الْأَعْمَال فتجيء الصَّلَاة فتقول: يارب أَنَا الصَّلَاةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. فَتَجِيءُ الصَّدَقَة فَتَقول: يارب أَنَا الصَّدَقَةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ ثُمَّ يَجِيء الصّيام فَيَقُول: يارب أَنَا الصِّيَامُ. فَيَقُولُ: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ. ثُمَّ تَجِيءُ الْأَعْمَالُ عَلَى ذَلِكَ. يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. ثُمَّ يَجِيءُ الْإِسْلَامُ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَنْتَ السَّلَامُ وَأَنَا الْإِسْلَامُ. فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ بِكَ الْيَوْمَ آخُذُ وَبِكَ أُعْطِي. قَالَ اللهُ تَعَالَى فِي كِتَابِهِ: وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ،نبي علیه السلام فرمایي: د قیامت په ورځ به اعمال راځي صلوة،صیام ،صدقه او دې ټولو ته به الله تعالی وايي: انک علی خیر ،بیا به اسلام راشي ،الله تعالی به ورته فرمایي: انک علی خیر بک الیوم آخذ وبک أعطي. دې حدیث کې اسلام د عباداتو نه جدا ذکر کړی دی،معلومه شوه ددې نه مراد عقوبات او عقائد دي، نو چې ذکر د أهل کتابو وي او لفظ د اسلام او دین راشي نو مراد به عقوبات او قوانین وي. لهذا د آیت معنی به داوي: چاچې د اسلام د سزاګانو نه علاوه بله سزا خوښه کړله ،دا به قابل قبول نه وي.څه رنګه چې علامه شبیر احمد عثماني رحمه الله د دې آیت په تفسیر کې فرمایي: إِنَّ اللهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا بَعِيدًا ۱۱۶النساء ، *بیشک اللہ نہیں بخشتا اس کو جو اس کا شریک کرے کسی کو اور بخشتا ہے اس کے سوا جس کو چاہے۔ ف ۲۔یعنی شرک سے نیچے کے گناہ جس کو چاہے اللہ بخش دے گا مگر شرک کو ہر گز نہیں بخشے گا مشرک کیلئے عذاب ہی مقرر فرما چکا تو چوری کرنا اور تہمت جھوٹی لگانا اگر چہ کبیرہ گناہ تھے مگر یہ بھی احتمال تھا کہ اللہ تعالی اپنی رحمت سے اس چور کو بخش دیتا لیکن جب وہ چور رسول کے حکم سے بھاگا اور مشرکوں میں جاملا تو اب اسکی مغفرت کا احتمال بھی نہ رہا۔ فائدہ۔ اس سے یہ معلوم ہوا کہ شرک یہی نہیں کہ اللہ کے سوا کسی کی پرستش کرے بلکہ اللہ کے حکم کے مقابلے میں کسی کے حکم کو پسند کرنا یہ بھی شرک ہے۔*

ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُمْ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً الایه۷۴البقره ،د أهل کتابو دې چلن الله تعالی او دهغه رسول خفه کړلو ، او په دې سره ددوي زړونه سخت شول، مخکې د أهل کتابو واقعات د فساد یعني د الله تعالی د قانون نه خلاف کول بیان شول،هغې ته په "ذلک" سره اشاره وشوه ،او س "من بعد" سره ددې واقعاتو سبب بیانوي چې د الله تعالی قانون د نه حاکم کولو په سبب د دوي زړونه دګټي نه هم زیات سخت شول، چې بالکل لار پکې نه ووځي. په ګټه کې په درې طریقو لار ووځي، یو لار دغټو اوبو یعني نِهر لپاره، بله نرۍ لار دلږو اوبو یعني چینه وي، دریمه هغه ګټه وي چې پخپله پکې لار نه وځي خو ځائ پریږدي، نو دې بدبختو نه په خپله د الله تعالی قانون منلو او نه ئ بل ځوک ورته

پریخودل۔ ددې پاره په قرآن کې د "صد "لفظ ډیر استعمال شوی دی : یصدون عن سبیل الله ، د الله تعالی د لارې یعني د قانون نه په خپله هم منع دي او بل هم منع کوي ۔

دوي چي کله د الله تعالی د حکم نه مخ واړولو نو بیا ورته الله تعالی ددوي نه نور پیغمبران نه رالیږل ، صرف عیسی علیه السلام ورته راغلی دی، هغه هم ددې خبرې د ظاهرولو لپاره چې په دوي کې د الله تعالی د حاکمیت څه لار نه وه ځي، بیا ددوي نه الله تعالی نعمت د نبوت واخستو او بني اسماعیلو ته ئ ورکړو ۔ الله تعالی دا امت ددي نه خبرداره کړی دی چې دا هل کتابو په شان مه جوړیږئ ،د الله تعالی قانون د زړه نه ومنئ او په کومه خبره چي هغوي کافران شوي وو د هغې نه ځان وساتئ :

أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ وَلَا يَكُونُوا كَالَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ مِنْ قَبْلُ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْأَمَدُ فَقَسَتْ قُلُوبُهُمْ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ فَاسِقُونَ١٦ الحديد

د اسختي د زړونو کوم حد ته ورسیدله؟،ددې په وجه ئ د الله تعالی د قانون سره څه وکړل؟، او د قانون راوړونکو سره ئ څه وکړل؟۔

أثر د دغه قساو ت قلبي دا شو چې: يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَوَاضِعِهِ، په ډډه ئ کړل د تورات قوانین د خپل ځائ نه ،یعني د قضآء او محکمې نه ۔ وَنَسُوا حَظًّا مِمَّا ذُكِّرُوا بِهِ، د الله تعالی هغه قانون ئ هیر کړلو د کوم چې ورته الله تعالی امر کړې وو۔ د نسیان نه مراد د الله تعالی قانون نه عملي کول دي۔

محققین علماء وایي چې په تورات کې تحریف لفظي نه دی شوی، ځکه تورات د الله تعالی په خپل لاس لیکلې کتاب دی، په دیکې تحریف لفظي امکان نه لري ۔ دا پشان د لوح محفوظ دی ،نو د تحریف مطلب دا چې د قضاء او محکمې نه ئ لرې کړو ۔

وَلَقَدْ آتَيْنَا مُوسَى الْكِتَابَ وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهِ بِالرُّسُلِ وَآتَيْنَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنَاتِ وَأَيَّدْنَاهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ أَفَكُلَّمَا جَاءَكُمْ رَسُولٌ بِمَا لَا تَهْوَى أَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ فَفَرِيقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيقًا تَقْتُلُونَ٨٧ البقره، د موسی علیه السلام او د عیسی علیه السلام په مینځ کې ډیر پیغمبران راغلي دي چې دوي ته د الله تعالی قانون وړاندې کړي ، "بما "کې باء د تقابل لپاره ده ،یعني د رسولانو راوړی قانون ستاسو د جوړکړي قانون په مقابله کې دی ،نو تاسو د هغې نه یعني د هغې د حاکم کولو نه انکار وکړو ،ای جعلتم الکبریاء لانفسکم ،لویي او حکومت مو ځان له خوښ کړی دی،اوددې لپاره مو چې په چا وس بر شوی دی نو هغه مو قتل کړی دی،او که نه تکذیب

موکړی دی، او دالله تعالی دقانون په مقابله کې به مو وئیل: وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ بَل لَّعَنَهُمُ اللهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ۸۸البقره ،مونږ دوخت په ضرورت ښه واقف یو چې په دې وخت کې دکوم جرم لپاره کوم قانون پکار دی، مونږ عقل لرو، فکر لرو، درسونه موویلي دي.

"بل" دإضراب لپاره دی، الله تعالی فرمایي: علم او پوهه ئ نشته، بلکه الله تعالی د خپل رحمت یعني دخپل قانون نه لري کړي دي (فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ) دوي صرف دایمان دعوی کوي خو ایمان ئ نشته.

قسوة القلب اولعنت دأهل کتابو دکفر نتیجه ده، کفر ئ داوو چې نقض عهد ئ کړې وو، تحریف ئ کړې وو.

تفصیل ئ دادی چې أهل کتابو کې زنا عام شو، او دزاني محصن لپاره سزا رجم وو په تورات کې، او دغیرمحصن لپاره سل دُرې، زنا دومره عام شو چې غټان او عوام دیوبل نه مخکې وو، قانون درجم به په اشرافو باندې نه عملي کیدو او په عوامو به عملي کیدو، اګرچۀ داچلن دنورو احکامو اوعقوباتو سره هم وو، خو په دې باندې خلق راپاسیدل چې جرم اشراف او عوام دواړه کوي، او سزا ئ چاته ورکولې کیږي او چاته نه، داد تورات نه بغاوت دی، ځکه تورات خو په هر چا حاکم دی، داکوم قاضي یا حاکم ته حواله نه دی، دا یو دیني نفوذي تحریک راپورته شو.

په حکماؤ باندې زور راغی، یو طرف ته اشراف القوم نارینه او زنانه ښکاره په زنا کې اښته دي، دوي ته څه نه شي وئیلې، او بل طرف ته عوام راپاسیدلي دي، ددوي مخ نیوې هم نه شي کولي-نو پوهان، دانشوران، قاضیان، درباري ملیان اوملکان راجمع شول، چې ددې حل راوباسي، چې نه سیخ وسوزي او نه کباب، اشراف خو دزنا نه منع کولې نه شي، ځکه دا راجمع شوي په خپله اشراف دي، محصنین دي، ددوي لپاره خو رجم دی، نو وایي په دېکې یو ښه کار پکار دی چې په هغې سره ریاست اسرائیلیه او دمسلمانانو جمعیت باقي پاتې شي، نو وایي زنا داسې جرم دی چې شرعي حد لري، دا دې عملي شي، داسې بیانونه په میډیا باندې خوارۀ شول، دعلماء رباني او دنیک عوامو څه طمع پیدا شوه چې کار جوړیږي. د تورات حاکمیت رښتیا کیږي.

نو وایي ددې جرم د مخ نیوي لپاره به یو قانون جوړ کړو چې د اصول شرع خیال پکې او ساتلې شي، خروج عن کتاب الله رانشي، لهذا سل کوړې چې دزاني غیرمحصن لپاره دي، په دیکې به د زاني محصن لپاره لږه سختي وکړو، چې مخ به ورله تورولې شي، په خر به سورولې شي، په بازارکې به

ګرځولې شي ،چې بې عزتي ئ وشي، ځکه حقيقت کې خو جرم يو دی،زنا دی،ليکن دلته يو وصف زائد دی احصان،لهذا ددۀ په حد کې شدّت پکار دی.

بالاخر په جمع او په اتفاق سره قانون سازي وشوه، دې ته الله تعالی وايي: بَغۡيَۢا بَيۡنَهُمۡ ، يعني ټولو په اتفاق سره دا الله تعالی د قانون نه بغاوت وکړلو.

اوس دا قانون د رياست اسرائيليه د قانون په حيث د منلو لپاره په يهودو کې يو زمينه برابرول پکار وو ،نو ددې کار لپاره ئ د نامور مليانو انتخاب وکړو چې دوي به عوام قانع کوي په دې دلائلو سره: د پارلمان د مشرانو په اتفاق سره دا جوړشوی قانون څه ګناه يا جرم نه دی ،او نه دا د کتاب الله نه خروج او انکار نه دی، بالفرض که دا يو غلط کار شي نو زيات نه زيات يو ګناه دی خو کفر نه دی "پاکستان کا آئین گناہ گارہے کافر نہیں"، مليانو بيانونه شروع کړل ،چې دا د قانونِ رجم نه انکار نه دی، ګورئ دا الله تعالی د حق د منلو دوه درجې دي: يو فعل قلب دی چې ايمان ورته وئيلی شي ،دويم: عمل د ظاهر،چې دې ته اسلام وئيلې شي. که څوک د زاني محصن لپاره د رجم عقيده نه ساتي، دا کافر دی،ځکه د کتاب الله نه ئ انکار وکړو. او که څوک عقيده ساتي او عملي کوي ئ نه ،نو تاسو ښه پوهه خلق ئي چې مونځ،روژه، حج،زکوة دا دالله تعالی فرض احکامات دي،اوس په يو سړي باندې زکوة فرض دی خو د حبّ مال په وجه ئ نه ورکوي،حج په فرض دی خو د سستئ په وجه ئ نه کوي،دغه شان مونځ او روژه ،سره ددې نه چې عقيده ئ ساتي نو د يو چا په نزد هم دا سړې کافر نه دی،مسلمان دی خو سره د ګناه نه ، نو دغه شان دا الله تعالی په قانون فيصله کول په بادشاه ،حاکم ،قاضي،او په ټولو واکدارانو باندې فرض دي،نو که هغه ئ د فرضيت عقيده ساتي،خو صرف عملي کوي ئ نه نو هغه به څنګ کافر شي ؟ ،که تاسو په دې باندې د بادشاه سره بائيکاټ او بغاوت کوئ نو آيا د تارک الصلوة سره مو چرته بائيکاټ کړی دی؟، نو تاسو فيصله وکړئ چې زيد ،عمر،بکر په ترک د فرائضو او په ارتکاب د کبائرو سره نه کافر کيږي ،نو يو حاکم او بادشاه په دې څنګ کافر شو؟ حالانکه اسلام خو د ټولو لپاره يو شان دی، البته دې عمل ته به بد وايو ،په بد نظر به ورته ګورو ،دې خلقو ته به نصيحت کوو ،تبليغ به ورته کوو ،لکه چې تارک الصلوة ته ئ کوو.

په ټول مملکت خداداد يعني رياست يهوديه کې دا تقريرونه شروع شول، کله چې عوام قانع شول، نو حکم د رجم ئ د قضاء او د محکمې نه لرې کړو ،او د زنا مخ نيوې ئ په بله سزا سره کولو يعني سل کوړې ،مخ تورول،په خر سورول،په بازار کې ګرځول.

په دې وخت کې د ریاست یهودیه **۴۳** غټ ښارونه وو ،ددې حکمرانانو ،سرکاري ملیانو ،او قاضیانو په **خپل خپل** ځائ کې په دې باندې **عمل** شروع کړلو ،او هرسړې په دې خبردارشو چې دزاني محصن لپاره سزا جلدمأة ده سره دشدّت نه، او هر سړې په دې قانع شوچې په کتاب الله کې د رجم حکم بعینه قائم دائم دی،تلاوت به ئ کیږي،په مونځ کې به لوستلې کیږي،او زمونږ په ایمان دی ،منکر ترې کافر دی۔

زمینه هموار ه شوه ،په **۴۳** ښارونو کې دا الله تعالی دقانون رجم په بدل کې دپارلمان جوړشوې، اود یهودو د ملیانو اودقاضیانو مؤیّد قانون خور شو ،اوخلق ورته اماده کړې شول۔

الله پاک **۴۳** پیغمبران دتورات ددغه حکم لپاره مبعوث کړل،په دغه **۴۳** ښارونو کې ئ خلقو ته تبلیغ شروع کړلو :اِنّ الله ربي وربكم فاعبدوه هذاصراط مستقیم ،قسم دی زما اوستاسو حاکم یو الله دی ،دهغهٔ قانون ومنئ ،هم دغه روغه لاره ده چې الله تعالی او جنت ته تلې ده ۔

لیکن ددغه وخت أهل کتابو ددغه کفر نه د توبې کولو په ځائ هغه کارونه شروع کړل کوم چې ددوي نه مخکې مشرکینو کول،د پیغمبرانو دقتل منصوبې ئ شروع کړلې ،ښکاره قتلونه ئ شروع کړل، په **۴۳** ښارونو کې دا جنګ شروع شو ،یوطرف ته منظّم فوج دی دحکومت ،اوبل طرف ته پیغمبران او دهغوي صحابه،اوجنګ دا الله تعالی دقانون په عملي کولو باندې دی ، نو د سهار نه تر ماسپخین پورې ئ **۴۳** پیغمبران ئ شهیدان کړل،بیا د ماسپخین نه ترماښام پورې ئ ۱۷۰ غټ صحابه کرام شهیدان کړل،باقي ټول کمزورې خلق پاتي شول،تعداد ئ هم کم شو ، ځني قید شول،ځني د ریاست یهودیه نه وتختیدل،دوي ته بقایا أهل کتاب وئیلي شوي دي په حدیث مبارک کې : عَن عِيَاض بن حمَار الْمُجَاشِعِي رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ فِي خُطْبَتِهِ: "أَلَا إِنَّ رَبِّي أَمَرَنِي أَنْ أُعَلِّمَكُمْ مَا جَهِلْتُمْ مِمَّا عَلَّمَنِي يَوْمِي هَذَا: كُلُّ مَالٍ نَحَلْتُهُ عَبْدًا حلالٌ وإني خلقت عبَادي حنفَاء كلهم وَإِنَّهُ أَتَتْهُمُ الشَّيَاطِينُ فَاجْتَالَتْهُمْ عَنْ دِينِهِمْ وَحَرَّمَتْ عَلَيْهِمْ مَا أَحْلَلْتُ لَهُمْ وَأَمَرَتْهُمْ أَنْ يُشْرِكُوا بِي مَا لَمْ أُنْزِلْ بِهِ سُلْطَانًا وَإِنَّ اللهَ نَظَرَ إِلَى أَهْلِ الْأَرْضِ فَمَقَتَهُمْ عَرَبَهُمْ وَعَجَمَهُمْ إِلَّا بَقَايَا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَقَالَ: إِنَّمَا بَعَثْتُكَ لِأَبْتَلِيَكَ وَأَبْتَلِيَ بِكَ وَأَنْزَلْتُ عَلَيْكَ كِتَابًا لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ تَقْرَؤُهُ نَائِمًا وَيَقْظَانَ وَإِنَّ الله أَمرنِي أَن أحرقَ قُرَيْشًا فَقلت: يَا رَبِّ إِذًا يَثْلَغُوا رَأْسِي فَيَدَعُوهُ خُبْزَةً قَالَ: اسْتَخْرِجْهُمْ كَمَا أَخْرَجُوكَ وَاغْزُهُمْ نُغْزِكَ وَأَنْفِقْ فَسَنُنْفِقُ عَلَيْكَ وَابْعَثْ جَيْشًا نَبْعَثْ خَمْسَةً مِثْلَهُ وَقَاتِلْ بِمن أَطَاعك من عصاك". رَوَاهُ مُسلم ۔

ترجمه ۔دعیاض رضی الله عنه نه روایت دی ، نبي علیه السلام یو ورځ په خطبه کې وفرمائیل:ښه واورئ : زما رب ماته امر کړی دی ،چې وښایم تاسو ته هغه څه چې تاسو دهغې نه بې خبره پاتي شوي یئ، کوم

چې ما ته نن ورځ ښودلي دي، هر هغه مال چې ما يو بنده ته ورکړی دی دهغهٔ لپاره حلال دی، اوما خپل ټول بندګان په دين حنيف يعني دشرک نه پاک پيدا کړي دي خودوي ته دد شيطانان يعني دناحقې سرداران راشي اوددين فطرت يعني دالله تعالی دحق نه ئ واړوي ،اوزما حلال پرې حرام کړي ، اودې ته ئ اماده کړي چې زما سره شريک جوړکړي هغه څه چې ماورته دهغې اجازت نه دی ورکړی، او الله تعالی زمکې والا ته وکتل ،نوغصه شو په عربو او په عجمو باندې مګرغصه نه شو په څه باقي مانده خلق داهل کتابو ،اوالله تعالی فرمايي تهٔ ما ليګلې ئ چې ستا امتحان وکړم اوستا په ذريعه د نورو امتحان وکړم،او تا ته مې داسې کتاب درکړی دی چې اوبه(زور) ئ نه شي ختمولي،تهٔ به ئ لولی په اودو اوپه ويښه ،اوالله تعالی ماته امرکړی دی چې قريش وسوزوم، ما وئيل دوي به زما سر ميده کړي اوډوډئ به ترې جوړه کړي،الله تعالی وفرمائيل زهٔ به دوي وباسم لکه څنګ چې ئ تهٔ وباسلې وې د مکې نه،جنګ وکړه ددوي سره ،مونږستا مدد کوو ،اومال لګوه مونږ تاته مال درکوو ،او تهٔ لښکر وليګه دجنګ لپاره، مونږ به د هغې په پنځه چنده فوج درولیګو ،اوجنګ کوه دهغه چا په ملګرتيا کې چې تاخپل مشر بادشاه مني دهغه چاسره چې تاخپل مشر بادشاه نه مني۔

قرآن پاک ددوي دی عمل ته دالله تعالی دټول قانون نه انکارکول يعني کفربآيات الله وئيلي دي ،او هم په دغې خبره دوي ۴۳ انبياء او ۱۷۰ صحابه شهيدان کړل اوحکومت دوي ته پاتې شو: إِنَّ الَّذِينَ يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَيَقْتُلُونَ الَّذِينَ يَأْمُرُونَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ أَلِيمٍ ال عمران ۲۱، ديو قانونِ رجم نه انکار کول ،دالله تعالی دټولو قوانينو نه انکار دی ،ځکه ئ "آيات " جمع راوړو ، ورپسې آيت کې دغه خلقو ذکردی چې دی خلقو دالله تعالی دآيتونو نه په څه صورت انکار کړی دی: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يُدْعَوْنَ إِلَى كِتَابِ اللهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّى فَرِيقٌ مِنْهُمْ وَهُمْ مُعْرِضُونَ، آيا تهٔ نه ګوری هغه خلقو ته چې الله تعالی ورته قانون ورکړی وو دحکومت لپاره لړه زمانه، پيغمبرانو ورته دعوت ورکولو چې کتاب الله حاکم کړئ،خودوي ددې نه مخ اړولو ۔ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَاتٍ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِمْ مَا كَانُوا يَفْتَرُونَ . دا د "تولّی عن كتاب الله "وجه بيانوي ،چې دوي وئيل:مونږ په دې کافران شوي نه يو ، بلکه حداکثر ګناه موکړی دی چې يوڅو ورځې ئ عذاب دی ،داکفري عقيده دوي دځان نه جوړه کړې وه اويهود قوم ئ په قانع کړي وو ۔

أهل کتابو دالله قانون رجم بدل کړو ،اودابدلول دقانون په اعتبار دقضاء سره وو ، ددې کفرنه دمنع کولو لپاره ورته الله ۴۳ پيغمبران راوليګل، دغه ټول ئ په يوه ورځ شهيدان کړل او ورسره ئ کبار صحابه

کرامئ هم شهیدان کړل، ریاست الهیه په ریاست یهودیه بدل شو ،اویهود دکفر شعار وګرځیدل ، دقرآن په تصریحاتو سره دغه خلق ددې کفر باوجود اوس هم ځان دتورات منونکي مني ،او وایي داعمل کفر نه دی ،یوګناه دی،داسې ده لکه چې مونځ څوک پرېږدي ـ

دوي به خپله بقاء او دانبیاو اودصحابو نه میدان ګټل دخپل حقانیت اودالله تعالی درضآء دلیل ګرځولو: که مونږ په حقه نه وی نوالله تعالی به زمونږ ناصر او مددګار نه وو ، اوپه حدیث کې راځي چې ددې امت دداسې خلقو سره به هم دالله تعالی هم دغه شان نصرت اومدد وي : عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: إِنَّ هَذَا الْأَمْرَ بَدَأَ نُبُوَّةً وَرَحْمَةً ثُمَّ يَكُونُ خِلَافَةً وَرَحْمَةً ثُمَّ مُلْكًا عَضُوضًا ثُمَّ كَانَ جَبْرِيَّةً وَعُتُوًّا وَفَسَادًا فِي الْأَرْضِ يَسْتَحِلُّونَ الْحَرِيرَ وَالْفُرُوجَ وَالْخُمُورَ يُرْزَقُونَ عَلَى ذَلِكَ وَيُنْصَرُونَ حَتَّى يَلْقَوُا اللهَ۔ رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ ،نبي علیه السلام فرمائیلي دي یقینًا داسلام حکومت په ابتداء کې نبوت اورحمت دی ،بیا به خلافت اورحمت وي ،بیابه د زور باچائي اوحکومت وي بیا به نوي قانون سازي او داسماني قوانینو اوسزاګانو نه سرکشي اوپه غیرماانزل الله به فیصلې وي ، په ریښمو ،په ښځو اوپه شرابو به په دغې حکومتونو کې نیوک نه وي ، الله تعالی به ئ ددې باوجود پالي ، اوحکومتونه به ئ قائم وي تردې چې الله تعالی ته مخامخ شي ـ

دنعمان بن بشیر او دحذیفه رضی الله عنها په روایت کې دي چې په انساني قوانینو جوړحکومتونو نه روسته به هم یوخلافت په طرز دنبوت قائمیږي ـ

امکان لري چې داتاریخ دیوځل نه زیات تکرار شي : مـعَنِ النُّعْمَانِ بن بشير عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: تَكُونُ النُّبُوَّةُ فِيكُمْ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا عَاضًّا فَتَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ مُلْكًا جَبْرِيَّةً فَيَكُونُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَكُونَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالَى ثُمَّ تَكُونُ خِلَافَةً عَلَى مِنْهَاجِ نُبُوَّةٍ ثُمَّ سَكَتَ قَالَ حَبِيبٌ: فَلَمَّا قَامَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ كَتَبْتُ إِلَيْهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ أُذَكِّرُهُ إِيَّاهُ وَقُلْتُ: أَرْجُو أَنْ تَكُونَ أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ بَعْدَ الْمُلْكِ الْعَاضِّ وَالْجَبْرِيَّةِ فَسُرَّ بِهِ وَأَعْجَبَهُ يَعْنِي عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ. رَوَاهُ أَحمد وَالْبَيْهَقِيّ فِي دَلَائِل النُّبُوَّة ـ

## دیهودو دالله تعالی په حاکمیت دایمان دعوی او دالله تعالی دوي ته کافر وئیل

١ ـ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَقُولُ آمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ٨ البقره، په سورۀ بقره کې دمتخاصمينو ددرې واړو ډلو بيان دى ،اولنې پنځه آيتونو کې دمؤمنانو بيان وشو، بيادوه آيتونو کې دمشرکانو، بيا دأهل کتابو بيان دى چې دوي دالله تعالي په حاکميت دايمان دعوى کوي ،خو الله تعالى ئ ردکوي چې دوي هرگز دالله تعالى حق دحاکميت منونکي نه دي ـ

٢ ـ سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ أَكَّالُونَ لِلسُّحْتِ فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ وَإِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَضُرُّوكَ شَيْئًا وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ٤٢ وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ فِيهَا حُكْمُ اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ وَمَا أُولَئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ ٤٣ المائده ، اخته دي په دروغو اوريدلو ، د دروغو نه مراد دغه جوړکړى قانون رجم دى "الكذب الباطل"، اښته دي په حرام خوراک کېچې په دغه وضعي قانون باندې ديهودو حکومت قائم دى او پرې معاش او وظيفه اخلي ـ الله تعالى وايي : ستا خوښه ده که فيصله ورله کوې اوکه نه. ابن عباس رضى الله عنهما فرمايي: دا اختيار عملي شوې نه وو چې منسوخ شو، يعني نسخ قبل العمل وشوه په "وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ " سره ،او فيصله کول متعين شو ـ الله تعالى وايي دوي تا نه حاکم کوي ،خو دخپل جوړشوي قانون طمع درنه ساتي، کنه دوي سره تورات شته ،په هغې کې حکمِ رجم موجود دى،دوي ددغه حکم نه مخ اړوي. دوي دالله تعالى قانون نه مني ـ څنګ چې سوره بقره وئيلي دي: وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ ـ

٣ ـ وَيَقُولُونَ آمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالرَّسُولِ وَأَطَعْنَا ثُمَّ يَتَوَلَّى فَرِيقٌ مِنْهُمْ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ وَمَا أُولَئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ٤٧ وَإِذَا دُعُوا إِلَى اللّٰهِ وَرَسُولِهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ إِذَا فَرِيقٌ مِنْهُمْ مُعْرِضُونَ ٤٨ وَإِنْ يَكُنْ لَهُمُ الْحَقُّ يَأْتُوا إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ ٤٩ أَفِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ أَمِ ارْتَابُوا أَمْ يَخَافُونَ أَنْ يَحِيفَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَرَسُولُهُ بَلْ أُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ٥٠ النور ـ

په سورۀ بقره کې داهل کتابو ديهودو ذکردى ،اوپه سورۀ نور کې ددې امّت ديهودو بيان دى،الله تعالى فرمايي :دا دهغوي نه هم ډير چالاک دي، ځکه هغوي درسول او د "اطعنا " ذکرپه دعوى دايمان کې نه کوي، اودوي ئ کوي ـ ثُمَّ يَتَوَلَّى فَرِيقٌ مِنْهُمْ مِنْ بَعْدِ ذَلِكَ، دفريق نه حاکم مراد دى ،يعني دايمان او دطاعت دعوى کوي خو دوي بيا دالله په قانون فيصله نه کوي ـ وَإِنْ يَكُنْ لَهُمُ الْحَقُّ يَأْتُوا إِلَيْهِ مُذْعِنِينَ :
١ـ ـکه حق د حکومت ددوي شي يعني ددوي په وضعي قانون فيصله شي ،نودغه ته په منډه راروان وي ، ٢ـ ـکه ددوي پکې فائده وي بيا ئ مني ـ په آيت ٥٠ کې درې ځله دايمان نفي ده ددوي نه ـ

۴۔ وَإِذَا جَاءُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا وَقَدْ دَخَلُوا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا بِهِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا يَكْتُمُونَ٦١ المائده ۔

دنبي عليه السلام او دصحابه كرامو خوا ته چې راشي نو دالله تعالى دقانون دمنلو دعوى كوي چې مونږ هم اسماني قانون منو ، خو الله تعالى ددوي دايمان نفي كوي: وَقَدْ دَخَلُوا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا بِهِ، چې نه ئ مخكې دالله تعالى قانون منلى دى او نه ئ اوس مني ۔

سوره بقره او سوره ال عمران دوه غټ سورتونه داهل كتابو خصوصًا ديهود دواضحه كولو په باره كې نازل شوي دي ، ورپسې دقرآن بل غټ سورت سوره نساء ددوي مزيد وضاحت په داسې انداز سره كوي چې دى امت ته ښه ښكاره شي ،ځكه داډير خطرناك خلق دي ، الله تعالى دى امت ته په داخلق د سر په سترګو ښايي : يُرِيدُ اللَّهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ٢٦ وَاللَّهُ يُرِيدُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْكُمْ وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ أَنْ تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا ٢٧ يُرِيدُ اللَّهُ أَنْ يُخَفِّفَ عَنْكُمْ وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا ٢٨ النساء ۔ ۴۴، ۵۱، ۶۰، ۷۷ كې دأهل كتابو ذكر شوى دى په "ألم تر "سره ۔

"ألم" كې همزه د استفهام د نفي لپاره ده ، "لم "هم د نفي لپاره دى ، نفي چې په نفي داخل شي نو اثبات پيدا كوي په تاكيد سره ،چې په دي تاكيد سره هغه معلوم مسموع څيز په شان دمعلوم مبصّر وګرځي، ځكه چې په اوريدلي او ليدلي كې فرق وي ،په حديث شريف كې راځي : ليس الخبر كالمعائنة ، فارسى كې هم وايي: شنیدہ کے بود مانند دیدہ ۔

١ ۔ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِنَ الْكِتَابِ يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ وَيُرِيدُونَ أَنْ تَضِلُّوا السَّبِيلَ ٤٤ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ وَكَفَى بِاللَّهِ وَلِيًّا وَكَفَى بِاللَّهِ نَصِيرًا ٤٥ مِنَ الَّذِينَ هَادُوا يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَوَاضِعِهِ وَيَقُولُونَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَقْوَمَ وَلَكِنْ لَعَنَهُمُ اللَّهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ٤٦ النساء ، تئ نه ګورى هغه خلقو ته چې څه لږه زمانه ورته الله تعالى داسماني قانون حكومت وركړې وو ،دالله تعالى دقانون په ځائ ئ وضعي انساني قانون واخستلو ،اوغواړي چې تاسو هم دغه اسماني قانون پريږدئ او دهغې په ځائ پارلماني قانون خپل كړئ ،داستاسو دښمنان دي ،الله ته ستاسو دښمنان ښه معلوم دي۔ يهود په ډېره كوي دالله تعالى قوانين ددهغه ځائ نه چې دهغې لپاره وضع دي يعني دمحكمې اوقضاء نه ئ لرې كوي، "تحريف "د حرف نه دى معنى دالله تعالى د قانون حقيقي او وضعي حيثيت ختموي ۔ او وايي چې مونږ خو دالله تعالى قانون منلې دي،انكار مو

ترې نه دی کړی ـ "عصینا" عمل پرې نه کوو دا مونږ یو ګناه کوو ، ګناه ورته وایو- "وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ " واوره داسې چې ستا وانه وریدی شي ، یعني ستا دالله تعالی دحاکمیت دعوی کول ، نه کول دي ـ ځکه مونږد دې لپاره الله تعالی غوره کړي یو ، ډیره زمانه الله تعالی حکومت راکړی دی، نو چې مونږ دالله دحاکمیت عقیده او دعوی نه ده پریخودې نو تۀ څنګ په مدینه کې دالله تعالی دحکومت دعوی کوې؟ـ وَرَاعِنَا لَيًّا بِأَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّينِ ، نبي علیه السلام ته راعي وایي، که ددې معنی شپونکی یعني بزی سرونکی شي نو دا عیب نه شي کیدې ځکه داهل کتابو جلیل القدر پیغمبر موسی علیه السلام لس کاله دشعیب علیه السلام بیزې سرولي دي ، نو کوم کار چې ددوي نبي کړی دی دهغې بل چاته پیغور څنګ ورکوي- خو ددوي مطلب دادی چې تۀ دحکومت أهل نه ئ، یو کمزوری سړی ئ، لکه مشرکینو چې دوخت پیغمبر ته وئیل: تۀ یو عام عادي انسان ئ، حاکم نه شی کیدی ـ ورپسې جمله ددې مؤید ده :وطعنًا في الدين ، ددې کوږژبې خبرو مقصد ستا په راوړي قانون طعن کول دي- وَلَوْ أَنَّهُمْ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا، دیهودیانو "أطعنا" الله تعالی قبلوي ځکه داپه باب دحاکمیت کې اطاعت مراد دی، او ددې امّت دیهودیانو "أطعنا" نه قبلوي ځکه دوي دا دحاکمیت په باب کې نه وئیل، سورۀ نور کې به راشي- "وَاسْمَعْ" واوره- او "غیر مسمع" به نه وایئ ـ" وانظرنا "تۀ زمونږ مشر او ناظر ئ ، دابه درله غوره وه ـ وَلَكِنْ لَعَنَهُمُ اللهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ،لیکن الله تعالی دخپل قانون اورحمت نه لري کړي دي په وجه ددې د نه منلو نولهذا په دوي کې ایمان نشته ،صرف دعوی پاتې ده-

حاصل دا چې أهل کتابو دالله تعالی قانون دمحکمې او قضاء نه ختم کړلو ،خو دایمان دعوی نه پریښودې او ځان ته مؤمن عاصي وایي، او الله تعالی ددوي دغه دعوی رد کوي ،او دوي ته په تاکید سره کافران وایي-

فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ وَرِثُوا الْكِتَابَ يَأْخُذُونَ عَرَضَ هَذَا الْأَدْنَى وَيَقُولُونَ سَيُغْفَرُ لَنَا الایه ۱۲۹ الاعراف ، یهودو دالله تعالی دقانون په مقابله کې انساني قانون غوره کړلو ، او بیا وایي دامونږ ګناه کړی دی ،او داګناه قابل معافي دی- وَإِنْ يَأْتِهِمْ عَرَضٌ مِثْلُهُ يَأْخُذُوهُ، دا ئ اوس مستقل قانون وګرځولو ، هرځل به په دې فیصلي کوي- بل مطلب ئ دادی: د رجم قانون چې دوي بدل کړی دی ،دهغې اساس نظریۀ ضرورت دی ، که آئنده کې هم ضرورت مخې ته راغی نو بل او بیا بل قانون اسماني هم بدلوي-

حاصل دا چې یهود بني اسرائیل د الله تعالی د حاکمیت د منلو دعوی نه پریږدي، ځان ته مؤمن وایي، او کوم تحریف چې ئ کړی دی، دې ته عملي کوتاهي وایي ،قابل معافي ګناه ئ ګڼړي، قرآن د دوي د دې عقیدې تعبیر په "سمعنا وعصینا"، "لن تمسّنا النار الا ایاما معدودة"، او "سیغفرلنا "سره کړی دی۔

یهودو د الله تعالی یو قانون د محکمې نه لرې کړلو ،او د هغې په ځای ئ انساني قانون کیخودلو نو په دې عمل ورته الله تعالی څه وئیلي دي؟، بل طرف ته نبي علیه السلام فرمایي چې زما دا امّت به هم د یهودو په شان کیږي ،لهذا د یهودو متعلق چې الله تعالی څه وئیلي دي هغه به د دې امّت په باره کې هم وي۔

د هر مسلمان دا عقیده ده ،چې یهود اهل کتاب کافر دې، اسباب د کفر ئ ډیر زیات دي : تورات نه منل، عیسی علیه السلام نه منل ، نبي علیه السلام نه منل، انجیل نه منل ،قرآن نه منل، لیکن اساس د دوي د کفر هغه دی کوم چې قرآن پاک ذکر کړی دی، دوي ورته ایمان او ګناه یعني "سمعنا وعصینا" وایي، او الله تعالی فرمایي دوي اول په دې کافر شوي دي، دا ئ د کفر بنیاد دی۔

## الله تعالی د دوي د ایمان دعوی نه قبلوي

۱۔ قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ عَلَى شَيْءٍ حَتَّى تُقِيمُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِنْهُمْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ٦٧ المائده ،

۲۔ سَلْ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَمْ آتَيْنَاهُمْ مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ وَمَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُ فَإِنَّ اللهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ٢١١ البقره ،
تپوس وکړه د بني اسرائیلو نه څومره واضحه قوانین مونږ ورکړي وو دوي ته ،او چا چې بدل کړو د الله تعالی قانون روسته د راتلو نه، نو الله تعالی به ورته سخت عذاب ورکړي۔

مطلب دا دی چې اسماني قانون پریخودل او د هغې په ځای بل قانون عملي کول دا عملي کوتاهي نه ده چې مسلمان به پاتې شي، بلکه دا تبدیل د الله تعالی د قانون دی، دا سې نه ده لکه مونځ یا روژه پریخودل ، بلکه دا سې ده لکه د بیت الله په ځای په خپله خوښه بل طرف ته مونځ کول ،آیا دا به مسلمان پاتې شي؟ دا تبدیل د آیات الله دی،نو یهود یانو تبدیل د الله تعالی د قانون کړی دی، که د رشوت په وجه یو غل یا قاتل پ محکمه کې بري شي،نو دا ترک د حکمُ الله دی ،چې محض یو ګناه دی، خو که د الله تعالی د قانون په ځای په د غه مجرم "انساني قانون "جاري کړي ،نو دا تبدیل د حکمُ الله دی، کفر دی۔

## دحکمُ الله دتبدیلیاختیار پیغمبر ته هم دخپلې خوا نه نشته

١۔ قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ١٥ يونس ،ددې ايت نه دا هم معلومه شوه چې په تبديل سره سړې ابدي جهنمي کیږي۔

٢۔ وَمَنْ يَتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ١٠٨ البقره ، د الله تعالی دحکم نه تعبیرپه ایمان سره او دهغې بدلون ئ په کفر سره کړی دی چې خبره صفاشي چې دا تبديلي کونکې کافر دی۔

فَبَدَّلَ الَّذِينَ ظَلَمُوا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِي قِيلَ لَهُمْ فَأَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا رِجْزًا مِنَ السَّمَاءِ بِمَا كَانُوا يَفْسُقُونَ ٥٨ البقره دوي دا الله تعالی دښودلي شوي امر او قول نه صرف چپ نه شول ،بلکه دهغې په ځای ئ خپل قول اووې،داتبديل شو ، په دې ورته الله تعالی ظالمان او فاسقان وئيلي دي۔

٣۔ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ بَدَّلُوا نِعْمَتَ اللهِ كُفْرًا وَأَحَلُّوا قَوْمَهُمْ دَارَ الْبَوَارِ ٢٨ جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا وَبِئْسَ الْقَرَارُ ٢٩ وَجَعَلُوا لِلهِ أَنْدَادًا لِيُضِلُّوا عَنْ سَبِيلِهِ قُلْ تَمَتَّعُوا فَإِنَّ مَصِيرَكُمْ إِلَى النَّارِ ٣٠ ابراهیم ،دا الله تعالی قانون ئ بدل کړو په کفر سره، دوي دا الله تعالی سره مقابل جوړکړي دي ،چې دهغوي په قانون سره دا الله قانون بدلوي،داگمراهي اوضلالت دی۔

يهودو دې کار ته غلط نوم ورکړی دی، خلق ئ په دې دهوکه کړي دي،اصل حقیقت دا دی چې داعمل ددوي کفر دی،ځکه دا تبدیل د امرُالله دی۔

یوا اسماني سزا نه عملي کول په رشوت یا په ویره ، نودا کفر نه دی ،گناه دی،دا دایمان سره جمع کیدی شي۔ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا ٤٤ المائده ، دخلقو دویرې دا الله تعالی په قانون فیصله مهٔ پریږدئ، اوپه رشوت باندې هم دا الله تعالی حکم مه پریږدئ ۔ ددې نه خلاف کول گناه دی۔ لیکن د کتاب الله دفرض کړې سزا په ځائ دبلې سزا فیصله وکړي نو ددهٔ په باره کې دا الله تعالی واضح حکم دی: وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ،وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ، وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ، داسې سړې بیا کافر ،فاسق او ظالم دی ۔

لنډه داچې دیهودو دغه تاویل فاسد دی ، الله تعالی دغه فاسد تاویل رد کوي چې دا په شان د "ترک الصلوة" نه دی بلکه دا تبديل د "امر الله" دی ،او تبديل د قانونِ إلهي کفر دی۔

## آزادعدلیه

أهل کتابو دالله تعالی دقانون په ځائ باندې انساني وضعي قانون په محکمه کې نافذ کړلو ،او دې خپل عمل ته کفر نه وایي ،بلکه ګناه ورته وایي، الله تعالی فرمایي: دوي کافران ، فاسقان،ظالمان دي، مخلّد فی النار دي۔

ددې عقیده په بنیاددیهودو یوه اصطلاح دا هم وه "آزاد عدلیه"،یعني عدلیه،قضاء او محکمه به د وحي پابند نه وي،که فیصله په وحي کوي اوکه په انساني وضعي قانون ئ کوي ،دوي ته به آزادي وي،وحي دقضاء لپاره تړلې شرط نه دی، حالانکه الله تعالی قضاء تړلې ده په وحي پورې ،اوپه "ما انزل الله" پورې، په درې آیتونو د سورۀ مائده کې الله تعالي ددې حکم بیان کړی دی: وإِنَّا أَنْزَلْنَا التَّوْرَاةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ الَّذِينَ أَسْلَمُوا لِلَّذِينَ هَادُوا وَالرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاءَ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ ۴۴ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهِ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَهُ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ ۴۵ ،

وَلْيَحْكُمْ أَهْلُ الْإِنْجِيلِ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فِيهِ وَمَنْ لَمْ يَحْكُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللَّهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ ۴۷ المائده ، چې دحدودو معطّل کول کفر دی،دا دالله تعالی حق دی، دې ته عقوبات وایي،چاچې قضاء په عقوبات شرعیه سره ونکړله کافر دی، ظالم دی ،فاسق دی ۔

ابومنصورماتریدي رحمه الله فرمایي دا درې الفاظ په یو معنی دي۔ "کفر"۔

عدلیه به همیشه د وحي پابند وي، یهودیانو عدلیه آزاده کړله د وحي نه،نو الله تعالی ورته دعوت ورکوي چې داکار ستاسو دکفر دی، ددې نه راواوړئ: اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهًا وَاحِدًا لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۳۱ التوبه ، دوي خپل پوهان ،او اوښیاران حاکمان او قانون جوړونکي ګرځولي دي دالله تعالی په مقابله کې، څنګه چې د عدي بن حاتم رضي الله عنه په حدیث کې ددې آیت هم دغه مطلب په صریح الفاظو ذکر دی ۔ حالانکه دوي ته امر ددې شوي وو چې یو الله تعالی حاکم ومنئ، دحدیث عدي رضی الله عنه په رڼا کې دعبادت معني طاعت

دی ـ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ، دالله تعالی نه سیوا بل ثوک حاکم قانون جوړونکی ،هغه پاک دي ددوي د شرک نه ـ

قُلْ يَاأَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَلَّا نَعْبُدَ إِلَّا اللهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ ٦٤ ال عمران ، "وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللهِ" دا جمله د تیر شوي جملې تفسیر دی ـ اهل کتابو ته اصلا دعوت دالله تعالی د حاکمیت دی ،حاصل دآیت دادی: په کومه خبره چې مونږ او تاسو متفق یو هغې ته راشئ او هغه داده چې دالله تعالی نه علاوه بل ثوک حاکم او قانون ساز نشته ،دالله تعالی نه علاوه به بل چا ته حاکم نه وایو ـ

مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُؤْتِيَهُ اللهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِي مِنْ دُونِ اللهِ وَلَٰكِنْ كُونُوا رَبَّانِيِّينَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُونَ الْكِتَابَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُونَ ٧٩ ال عمران ، ددوي د غلطې دعوي رد کوي چې دوي وایي مونږ ته عیسی علیه السلام وئیلي چې ما خپل حاکم ومنئ ـ الله تعالی وایي: د پیغمبر دعوت خو دادی چې تاسو الله تعالی لره حاکم ومنئ ، ځنګه چې دالله په کتاب کې داسې دي او تاسو ئ نورو ته لولئ ـ

کله چې اهل کتاب په دې عمل سره کافران شول ،نو الله تعالی د مشرکانو سره یو شان کړل ،چې دادواړه یو شان کافر دي ،نو په دې وجه اهل کتابو او مشرکینو ته یو شان خطاب دی : شَهِدَ اللهُ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ وَالْمَلَائِكَةُ وَأُولُو الْعِلْمِ قَائِمًا بِالْقِسْطِ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ١٨ إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَامُ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ إِلَّا مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ وَمَنْ يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللهِ فَإِنَّ اللهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ ١٩ فَإِنْ حَاجُّوكَ فَقُلْ أَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ وَقُلْ لِلَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ وَالْأُمِّيِّينَ أَأَسْلَمْتُمْ فَإِنْ أَسْلَمُوا فَقَدِ اهْتَدَوْا وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلَاغُ وَاللهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ٢٠ ال عمران ، الله تعالی ،ملائک او اولوا العلم دا اعلان کوي چې الله تعالی یوا ځې حاکم دی دانصاف ـ د "الدین" معنی ده "الحکم القانون" ، لکه الله تعالی فرمایي: أفغیر دین الله یبغون ، أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ، آیا دوي دالله تعالی د قانون نه علاوه بل قانون غواړي ، نو "غیر دین الله " او "حکم الجاهلیة "یو شی دی ـ نو د "دین الله "معنی هم معلومه شوه "حکم الله " یعني دالله تعالی قانون ـ لکه چې په دې آیتونو کې ده : مَا كَانَ لِيَأْخُذَ أَخَاهُ فِي دِينِ الْمَلِكِ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ اللهُ الایه ٧٦ یوسف ، وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِينِ اللهِ الایه ٢ النور ، يَوْمَئِذٍ يُوَفِّيهِمُ اللهُ دِينَهُمُ الْحَقَّ وَيَعْلَمُونَ أَنَّ اللهَ هُوَ الْحَقُّ الْمُبِينُ ٢٥ النور ـ

إِنَّ الدِّينَ عِنْدَ اللهِ الْإِسْلَام - دحديث ابوهريره رضى الله عنه په تصريح سره اسلام ،د اركان خمسه نه علاوه يو بل ځيز دئ، يعني حكم اوقانون، او بل حديث كې چې بناء داسلام په پنځه ځيزونو سره بيان شوې ده، نومعلومه شوه اسلام ددوه خبرونه عبارت دى : عبادات اوعقوبات، نودآيت معنى شوه چې عقوبات إلهيه منل اسلام دى -

## دقرآن پاک دموضوع لپاره مختلف عنوانات

١ - اول عنوان هغه دى چې دټولې دنيا په مسلمانانو كې معروف اومشهور دى، اودهر چا په ژبه باندي دى: **لا أله الا الله** - قرآن پاک كې دا عنوان ځائ په ځائ ذكردى، احاديث مباركه كې هم په كثرت سره بطور عَلَم استعمال شوى دى. په كوم حديث كې چې داعنوان ذكر وي ،نودغه تفصيلي موضوع به ترې مراد وي، لكه حديث كې راځي: **من قال لاأله الاالله دخل الجنة**، نوددې مطلب هغه دى كوم چې قرآن په تفصيل سره بيان كړى دى، څنګ چې انبياء كرامو راوړى دى، كه چاصرف الفاظ د " لاإله الاالله " اووې او په دغه تفصيل ئ نه مني لكه أهل كتاب ،نودا داسې كافردى لكه دكلمي نه په انكار سره چې كافر كيږي، اودا دواړه ابدي جهنميان دي -

"لااله الاالله "كلمۀ توحيد ده ،دې ته ددين اسلام كلمه وايي،ددې دوه اجزاء دي ،يو جزئ "لااله الاالله" دى، اودويم ئ "محمدرسول الله " دى ، ددې امت لپاره،او د نورو امتونو لپاره دخپل نبي په نوم سره، معنى دا چې الله تعالى يواځې حاكم دى،اوپه دنيا كې ئ دحاكميت مظهر رسول دى -

قرآن پاک داعنوان په سورۀ صافات آيت **٣٥** ،سورۀ هود آيت **١٤**، دغه شان سورۀ محمد آيت **١٩** : فَإِلَّمْ يَسْتَجِيبُوا لَكُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا أُنْزِلَ بِعِلْمِ اللهِ وَأَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ فَهَلْ أَنْتُمْ مُسْلِمُونَ هود ،إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ يَسْتَكْبِرُونَ الصفت ،فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَاللهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ محمد، او په احاديث مباركه كې په كثرت سره داعنوان بيان شوى دى.

٢ - دويم عنوان : بَلَى مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لله وَهُوَ مُحْسِنٌ ١١٢ البقره ،وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لله وَهُوَ مُحْسِنٌ وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَاتَّخَذَ اللهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا ١٢٥ النساء، وَمَنْ يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى وَإِلَى اللهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ٢٢ لقمان ، دا دأهل كتابو ددعوى په جواب كې دى چې هغوي وايي مونږ جنتيان يو -

دا داسې عنوان دی لکه حدیث کې چې راځي: من قال لااله الاالله دخل الجنة۔ "من اسلم وجهه لله" نه مراد الله تعالی خپل حاکم منل دي۔ "وهومحسن" داجمله حالیه ده، یعني په داسې حال کې چې په عبادت کې شفیع او واسطه نه لټوي۔ د "احسان" دامعنې حدیث جبریل کې هم ذکر ده: قَالَ: فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِحْسَانِ. قَالَ: أَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ ، یعني چې دعابد اودمعبود په مینځ کې بل څوک واسطه نه وي،

وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لله وَهُوَ مُحْسِنٌ ،بیا وروستو وایي: وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا ، دامذکوره عقیده دابراهیم علیه السلام ملت دی ،وَاتَّخَذَ اللهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا ،نوڅوک چې دابراهیم علیه السلام تابع شو نوهغه دالله حبیب شو ،ځکه مقوله مشهوره ده:حبیب الحبیب حبیب ـ لهذا یهود دالله تعالی حبیب نه دي ځکه هغوي دابراهیم علیه السلام په ملت او په عقیده نه دي پاتې۔

وَمَنْ يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى، په حدیث کې صحابي د العروةالوثقی تفسیر په "لااله الاالله "سره کړی دی،نومعنی شوه: فقداستمسک بلااله الاالله۔

۳ ـ دریم عنوان: فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى الایه ۲۵۶ البقره ـ من یکفر بالطاغوت ای لااله ، ویؤمن بالله ای الاالله۔ چا چې دطاغوت او دناحق سرداردحاکمیت نه انکار وکړو او الله تعالی ئ خپل حاکم ومنلو نوهغهٔ "لااله الاالله "مضبوط اونیولو۔

۴۔ څلورم عنوان چې ټول انبیاء کرام علیهم السلام په هغې سره دعوت ورکوي: لَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ فَقَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ الایه ۵۹ الاعراف، ، وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ فَقَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۲۳المؤمنون ـ "اعبدواالله " دعبادت دالله تعالی حق ومنئ، "مالکم من اله غیره " حاکمیت حق دالله تعالی ومنئ ،بل څوک حاکم نشته،دنوح علیه السلام دعوت خپل قوم ته دالله تعالی دحاکمیت تشریعي دی ،لکه چې دقوم دجواب نه معلومیږي: فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ مَا هَذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُرِيدُ أَنْ يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَأَنْزَلَ مَلَائِكَةً مَا سَمِعْنَا بِهَذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ۲۴۔

لکه سورهٔ نحل آیت ۳۶ کې دي:وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ ، نو د "مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ " او د "وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوتَ " یومعنی شوه چې دالله حاکمیت ومنئ او دطاغوت حاکمیت مه منئ۔

وَإِلَى عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۱۶۵ الاعراف ـ

وَإِلَى ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَالِحًا قَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ قَدْ جَاءَتْكُمْ بَيِّنَةٌ مِنْ رَبِّكُمْ هَذِهِ نَاقَةُ اللهِ لَكُمْ آيَةً فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللهِ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۱۷۳ الاعراف ـ

ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قُرُونًا آخَرِينَ ۴۲ مَا تَسْبِقُ مِنْ أُمَّةٍ أَجَلَهَا وَمَا يَسْتَأْخِرُونَ ۴۳ ثُمَّ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَى كُلَّ مَا جَاءَ أُمَّةً رَسُولُهَا كَذَّبُوهُ فَأَتْبَعْنَا بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ فَبُعْدًا لِقَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ ۴۴ المؤمنون ، ددې ځائ نه دټولو پیغمبرانو دغه دعوت ذکر دی، وروسته د موسی علیه السلام تذکره ده ، څنګه چې په سورۀ اعراف کې دانبیاء کرامو دواقعاتو نه روستو د موسی علیه السلام اود فرعون واقعه ذکر ده ، ځکه دموسی علیه السلام دعوت فرعون ته ښه په وضاحت سره ذکر دی چې هغه دالله تعالی دربوبیت یعني دحاکمیت تشریعي دعوت دی، دا دمخکني دعوتونو لپاره تفسیر دی ، نوچې ثوک د مخکې پیغمبرانو ددعوت نه بل څه مطلب وانخلي ـ

**۵**ـ پنځم عنوان په سورۀ شعراء کې دی ي: فَاتَّقُوا اللهَ وَأَطِيعُونِ ، دنوح علیه السلام په دعوت کې هم دغه عنوان دی آیت ۱۰۸ ـ دحضرت هود ،دحضرت صالح اودحضرت شعیب علیهم السلام په دعوت کې هم دغه عنوان ذکر دی، د دې معنی ده: دالله تعالی نه اوویریږئ په حیثیت دحاکم یعني الله تعالی خپل حاکم ومنئ اوما دالله تعالی دطرفه دانسانانو لپاره مطاع ومنئ ـ

په قرآن پاک کې دقرآن پاک دموضوع لپاره داپنځه عنوانات ذکر شوي دي، په دې پنځه عنواناتو کې عنوان د "لااله الاالله "دعَلَم حیثیت لري، یعني ددې تفصیلي موضوع نوم "لااله الاالله" دی ـ

# مقصدنزول قرآن

په اصولودقرآن کې شپږم اصل دی: مقصدنزول قرآن ، یعني دټولې وحي جلي دنزول مقصد ـ یعني الله تعالی داخپل قانون دنیا ته ولې رالیګلی دی؟،ددې مقصد څه دی ؟ ـ او وحې خفي د وحې جلي تابع وي ـ

قرآن پاک دا مقصد په صراحت سره په دې الفاظو کې بیان کړی دی : كَانَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً فَبَعَثَ اللهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ بَغْيًا بَيْنَهُمْ فَهَدَى اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا لِمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ مِنَ الْحَقِّ بِإِذْنِهِ وَاللهُ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ ۲۱۳ البقره۔

په دې آیت کریمه کې پوره تاریخ انساني بیان کړی شوی دی۔

**د تاریخ انساني اولنی دور:** دآدم علیه السلام نه تر ادریس ،ود،سواع،یغوث،یعوق،نسر علیهم السلام پوري ټول خلق په یو دین باندې وو ،دغه پنځه کسان (ودّ،سواع،یغوث،یعوق،نسر) نبیان وو یا دنبیانو متبعین صالحین خلق وو ،دوي به دالله تعالی په قانون فیصلې کولې۔

**دویم دور:** بیا دشیطان په لمسه داسماني قانون په ځائ په جرګه او په انساني قانون باندې ئ فیصلې کول شروع شوې ،الله تعالی ددوي نه خفه شو او دغه صالحان کسان الله تعالی واخستل،کله چې دنیا د داسې خلقو نه خالي شوه،نو په زمکه باندې مختلف انساني حکومتونه قائم شول ، هرحکومت ځانګړې قانون ساز وو ، په دغه قانون به ئ حکومت چلوو ، څوک حقداره دی ،څوک مجرم دی ، کوم قول یافعل جرم دی ،دکوم جرم کومه سزا ده ،څومره ده ، دکوم کار کولو اجازت دی ،دکوم نه منع ده۔ ډیر وخت داسې وزنړیدو بیا الله تعالی فضل وکړو : فَبَعَثَ اللهُ النَّبِيِّينَ مُبَشِّرِينَ وَمُنْذِرِينَ، نو الله تعالی خپل پیغمبران راولیګل دوي ته۔ په سر کې ئ نوح علیه السلام دی، دوي به داخلق دالله تعالیقانون ته رابلل: وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا إِلَى قَوْمِهِ فَقَالَ يَاقَوْمِ اعْبُدُوا اللهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَهٍ غَيْرُهُ أَفَلَا تَتَّقُونَ ۲۳المؤمنون ، الله تعالی خپل حاکم ومنئ ،بل څوک حاکم نشته،زۀ دالله تعالی دطرفه ستاسو مشر یم، قوم جواب ورکوي: فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ قَوْمِهِ مَا هَذَا إِلَّا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُرِيدُ أَنْ يَتَفَضَّلَ عَلَيْكُمْ وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَأَنْزَلَ مَلَائِكَةً مَا سَمِعْنَا بِهَذَا فِي آبَائِنَا الْأَوَّلِينَ ۲۴، دا یو عام انسان دی ، ددۀ د دعوت نه مقصد دادی چې په تاسو حکومت وکړي،خو دحکومت کولو څه دلیل ورسره نشته ،مونږ دا خبره نه منو ،که الله تعالیپه انسانانو حکومت کول غوښتلې نو ملائک به ئ رالیګلې لپاره دحکومت ، ځکه حکومت په زور کیږي "شاه آن باشد که ازو حشمت می آید"، او دنوح علیه السلام سره خو نه زور شته او نه زر شته،چې دا دحکومت لازمي اسباب دي۔ ماسمعنا بهذا فی آباءنا الاولین ، دا ددلیل عقلي نه روسته په دلیل نقلي سره دنوح علیه السلام ددعوت رد

کوي ،چې مونږ دخپلو مشرانو نه داسې کومه خبره نه ده اوریدلې چې حکومت دالله تعالی حق دی۔ ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ ۴۲ مؤمنون ،دنوح علیه السلام دقوم نه روستو مونږ نور خلق پیدا کړل ، دهغوي لپاره مې دهغوي نه مشران وټاکل او زما حاکمیت ته ئ راوبلل،خودقومونو جواب هغه زوړ وو۔

وَأَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيمَا اخْتَلَفُوا فِيهِ ، دوي ته الله تعالی خپل پیغمبران رالیګل،اواو دنبیانوسره ئ خپل قانون ئ ورته نازل کړلو ، د " الکتاب " نه مراد دالله تعالی قانون دی ،ځکه دهر نبي سره معلوم کتاب نه دی نازل شوی۔ "لِيَحْكُمَ "کې لام لپاره دتعلیل دي ،یعني مقصد داسماني قانون د رالیګلو دا دی چې فیصله وکړي الله تعالی ،دا قانون او دا پیغمبر دخلقو په مینځ کې په هغه څه کې چې دوي په کې دیوبل سره ورانیږي۔

**دریم اوڅلورم دور :** وَمَا اخْتَلَفَ فِيهِ إِلَّا الَّذِينَ أُوتُوهُ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُمُ الْبَيِّنَاتُ، د آیت په دې حصه کې دوه مرحلې دانساني تاریخ مضمر دي : دریم دور چې اهل کتاب دالله تعالی حکم ته غاړه ایخدونکي شو او یوځل بیا دالله تعالی حکومت په زمکه باندې د یوسف علیه السلام په شکل کې اسماني قانون حاکم شو۔

څلورم دور دبني اسرائیلو دالؒه تعالی دقانون نه بیلیدل او د رجم په ځائ بل قانون سازول۔ " فمااختلف "کې څلورم دور ته اشاره ده ، او په "فیه" کې " ه " ضمیر دریم دور ته اشاره کوي۔

ددې اختلاف نه دبني اسرائیلو دالله تعالی دقانون رجم نه انکار کول مراد دي ،په دی معني چې دقضاءنه ئ لرې کړلو اودهغې په ځائ ئ انساني جوړشوي قانون راوړلو ،نوپه دې سره دانساني قانون رائج شو او دالله تعالیحکومت بیا ختم شو دزمکې نه ۔ بَغْيًا بَيْنَهُمْ ،یعني ټولویهودو دالله تعالی دقانون نه بغاوت وکړو۔

**پینځم دور**: فَهَدَى اللهُ الَّذِينَ آمَنُوا، بیا نبي علیه السلام راغی،د الله تعالی حکومت په زمکه باندې د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم او دصحابه کرامو په صورت کې قائم شو۔ نبي علیه السلام ددې آخري دور په باره کې فرمایلي دي ؛،،،،،،،،،،،،،،

په دې آیت کې د وحې دنازلیدو مقصد بیان شو : لیحکم بین الناس، چې دا قرآن به دانسانانو فیصلې کوي " لیحکم" کې لام تعلیلیه دی، یعني علت او مقصد دنزول قرآن او نزول وحي دا دی ـ

إِنَّا أَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ بِمَا أَرَاكَ اللَّهُ وَلَا تَكُنْ لِلْخَائِنِينَ خَصِيمًا ۱۰۵ النساء ، یقینًا مونږ تاته دفیصلې کتاب نازل کړی دی ددې لپاره چې ته فیصلې وکړې دخلقو ،په هغه قانون چې مونږ تاته ښودلې دی ،او ته مه کیږه طرفدار دخیانت کرو۔

ددې آیت نه معلومه شوه چې پیغمبر به حاکم او قاضي وي ،خو مقنن یعني قانون جوړونکې به نه وي، بلکه قانون به اسماني وي۔ الله تعالی خپل پیغمبر هم د اسماني قانون تابع او مکلف کړی دی چې ته به فیصلې په اسماني قانون کوی چې الله تعالی تاته نازل کړی او تعلیم کړی دی : لتحکم بین الناس بماأراک الله، پیغمبر مقنن نه شي کیدي،دې به په اسماني قانون دفیصلې کولو پابند وي ـنو چې پیغمبر تقنین نه شي کولې نو باقي انسانانو ته دقانون جوړولو اجازت او اختیار دکوم ځایه حاصل شو ؟ ـ

مقصد نزول قرآن ،چې الله تعالی دنیا ته وحي ولې رالیګلې ده؟ ،نو د سورهٔ بقره او د سورهٔ نساء دآیتونو نه معلومه شوه چې الله تعالی حاکم دی ،قانون ئې اسماني دی ، انسانان محکوم علیه دي، نو که څوک ځان حاکم او مقنن وګڼړي نو په دې سره قلب الموضوع راځي، ځکه انسان خلقتًا فطرةً محکوم علیه دی : وماخلقت الجن والانس الالیعبدون ،د سوره توبه آیت ۳۱ او د حدیث عدي رضي الله عنه مطابق معنې داده :نه دي پیدا کړي ما پیریان او انسانان مګر دخپل قانون دمنلو لپاره ـ

الله تعالی ټول مؤمنان د تقنین نه منع کړي دي او د اسماني قانون ئې پابند کړیدي ،او دا منع کول د "یایها الذین آمنوا " په خطاب سره دي ،معنی ئې داده : که تاسو واقعي مومنان یئ نو قانون سازي مه کوئ : يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُقَدِّمُوا بَيْنَ يَدَيِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۱ الحجرات ، اے ایمان والو آگے نہ بڑھو اللہ سے اور اسکے رسول سے اور ڈرتے رہو اللہ سے سنتا ہے جانتا ہے۔

شبیر احمد عثمانی رحمه الله لیکي: یعنی جس معاملے میں اللہ اور رسول کیطرف سے حکم ملنے کی توقع ہو اسکا فیصلہ پہلے ہی آگے بڑھ کر اپنی رائے سے نہ کر بیٹھو بلکہ حکم الہی کا انتظار کرو، جس وقت پیغمبر علیہ السلام کچھ ارشاد فرمائیں خاموشی سے کان لگا کر سن لو، انکے بولنے سے پہلے

خود بولنے کی جرات نہ کرو، جو حکم ادھر سے ملے اس پر بے چوں چرا اور بلا پس و پیش عامل بن جاو، اپنی اغراض وآراء کو انکے احکام پر مقدم نہ رکھو بلکہ اپنی خواہشات وجذبات کو احکام سماوی کے تابع بناو۔

نبي عليه السلام او صحابه كرامو هميشه د اسماني فيصلې يعني د وحی د راتلو انتظار کړی دی۔ واقعۀ افک مشهوره پیښه ده ،خو نبي عليه السلام یا صحابه کرامو دځان نه څه تقنين او فيصله نه ده کړی حالانکه ضرورت هم شدید وو ،بدګمانیانې هم زیاتیدلی ، نبي عليه السلام او دهغۀ عزت هم په سخت ابتلاء کې وو ، لیکن پارلمان یا قانون ساز اداره نه ده قائم شوې۔ نو اوس چې دین مکمل شوی دی او اتمام د قانون الهي شوی دی چې ورته "نعمت" وئیلي کیږي ، څنګه چاته روا کیږي چې تقنین وکړي یا قانون ساز اداره جوړه کړي۔

دغه شان سورۀ مجادله اولني آیتونه: قَدْ سَمِعَ اللهُ قَوْلَ الَّتِي تُجَادِلُكَ فِي زَوْجِهَا وَتَشْتَكِي إِلَى اللهِ وَاللهُ يَسْمَعُ تَحَاوُرَكُمَا إِنَّ اللهَ سَمِيعٌ بَصِيرٌ ١، خوله رضي الله عنها بيابيا راځي ، دخپل خاوند شکایت کوي،او د نبي عليه السلام نه فيصله غواړي چې زۀ دهغۀ ښځه پاتې شوې یم که نه ؟۔ نبي عليه السلام ورته جواب نه ورکوي بلکه د وحي انتظار کوي ، ځکه پیغمبر د الله تعالی د قانون تابع او پابند دی ۔

نو که چا د اسماني قانون باوجود یوه فیصله په خپل رأې او عقل یا د بلې لارې وکړله نو مقصد د خلقت انساني او مقصد د نزول وحي دواړه فوت شو ،او په کوم صفت چې انسان پیدا شوی دی چې دي به محکوم علیه وي،هغه صفت قطعي معکوس او مقلوب شو ،چې په دې سره قلب الموضوع راغله ،یعني انسان چې محکوم علیه وو هغه حاکم او مقنن وګرځیدو په دې سره ۔

إِنَّ اللهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ،دا د الله تعالی د علم کامل ذکر دی ،یعني یوازې الله تعالی ته پته ده چې د کومې فیصلې لپاره دا قانون او حکم پکار دی، دا د الله تعالی د حاکم کیدلو علت دی۔

سورۀ زمر کې هم د حاکم کیدلو دا علت ذکر دی : قُلِ اللَّهُمَّ فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ أَنْتَ تَحْكُمُ بَيْنَ عِبَادِكَ فِي مَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ٤٦، تۀ او وايه ای محمد صلي الله عليه وسلم چې الله تعالی حاکم دی ځکه چې الله تعالی علم کامل لري ،د انسان سره علم نشته ،فطري صفت ئې جهل دی: انه کان ظلومًا جهولًا ٧٢ الاحزاب ، او قانون سازي په علم سره کیږي ،لهذا انسان قانون ساز نه شي کیدې ،بلکه د

قانون إلهي پابند به وي، اولنۍ انسان آدم علیه السلام دی چې دنیا ته راتلو نو الله تعالی ورسره خبره صفا کړې ده: قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى طه ۱۲۳، زما د طرفه به هدایت او قانون درځي ، پابندي د اسماني هدایت ضروري ده۔

د انسان سره د فیصلې کولو علم نشته خو الله تعالی پکې د اسې استعداد ایخودي دی، چې په هغې سره په اسماني احکامو او قوانینو باندي ځان پوهه کولی او عملي کولی شي ، دا د انسان خاصه او امتیاز دی: وعلّم آدم الاسماء کلها، ملائکو ته الله تعالی دا شرافت نه دی ورکړی، اګرچه انسان ته د دې علم او قانون الهي راوړونکي ملائک دي ،خو هغوي ئ په مقصد نه پوهیږي: قالوا لاعلم لنا، ملائک د ځان نه د هغه علم نفي کوي، کوم علم چې الله تعالی آدم علیه السلام ته ورکړی وو ،او د انسان خصوصیت ئ وګرځولو۔

إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا ۷۲الاحزاب، مراد د امانت نه شریعت او تکلیفي امور یعني کفر، ایمان ،حلال او حرام ،او عقوبات او عبادات دي، دا انسان قبول کړي دي: وَعَنْهُ قَالَ: حَدَّثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَيْنِ رَأَيْتُ أَحَدَهُمَا وَأَنَا أَنْتَظِرُ الْآخَرَ: حَدَّثَنَا: إِنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ۔۔۔۔۔ الحدیث۔ متفق علیه ، نو الله تعالی په انسان کې د دغې امانت د فهم ،د أخذ او د عمل صلاحیت ایخودی دی، دې به قرآن زده کوي، احادیث مبارکه به زده کوي څنګه چې صحابه کرامو زده کړي وو۔ په هر انسان کې د دغې امانت د منلو او د عملي کولو صلاحیت او استعداد پروت دی ،ځکه دې ته فطرت وایي: کلّ مولود یولد علی الفطرة ، لهذا د انسانانو د فیصلې عم به د وحې نه زده کوي، ځکه ځان له علم ورسره نشته، او قانون سازي هم نه شي کولي، د الله تعالی قانون ته به سربښکته کوي۔

کله چې انسان مقنن وګنړلې شي نو بیا د الله تعالی قانون حاکم نه پاتې کیږي، او د انسان هغه د الله تعالی قانون ته تسلیم او رضا ختمیږي، د تهانوي رحمه الله یو مرید وایي:

*اگر دل میں حضور ہو سر تیرا خم ضرور ہو*      *جسکانہ کچھ ظہور ہو وہ عشق عشق ہی نہیں*

حاصل د شعر دا دی که په الله تعالی دا یمان دعوی کوی نو د الله تعالی قانون ته به سر تسلیموی، ځان به محکوم علیه ګڼي، مقننه اداره به نه جوړوي بلکه مطبقه اداره به جوړوي، دا مقصد د نزولِ قرآن دی ۔

آدمیت نام گوشت وپوست نیست　　　　آدمیت جزر ضاے دوست نیست

۳ ۔ يَادَاوُودُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيفَةً فِي الْأَرْضِ فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ ص۲۶، ای داود ! تهٔ مونږ خپل نائب جوړ کړی ئ په خپله خاوره کې ،تهٔ خلقو فیصلې د الله تعالی په قانون سره کوه ،د خپل ځان نه او د عقل په بنیاد باندې فیصله مهٔ کوه۔ دا خطاب داود علیه السلام ته دی ،او مراد ټول حاکمان دي۔ دغه شان په سورهٔ نساء آیت ۱۰۵ : لتحکم بین الناس، کې خطاب نبي علیه السلام ته دی ،او مراد ټول حاکمان دي۔

نو چې داود علیه السلام او نبي علیه السلام ته اجازت نشته چې د ځان نه عقوبات یعني مخصوص سزاګانې ورکړي او خپل یو قانون جوړ کړي نو باقي چاته د کومې اجازت راغې چې دوي به اسماني قوانین پرېږدي دهر کار لپاره به قانون سازي کوي ،او قانون ساز اداره به جوړوي ؟۔

د"اَلهَوی" معنی ده : رَأْيٌ وَرَاءهُ عَقلٌ، یعني د انساني عقل نه پیدا شوي رأی، نو معنی دا شوه :په انساني رأی باندې تګ مه کوه، داود علیه السلام خو د الله تعالی خلیفه ،دوخت بادشاه او حاکم دی نو مطلب ئ دا شو چې په انساني رأی باندې فیصلې مه کوه ۔

که چا د اسې وکړل یعني د اسماني قانون په ځائ ئ په انساني قانون فیصلې وکړې نو مآل به ئ څه وي؟،نو اولنی حکم ئ دا دی: فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ، د الله تعالی دلارې او د رحماني قانون نه به ئ دا عمل ګمراهه کړي۔

دویم حکم ئ دا دی : إِنَّ الَّذِينَ يَضِلُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا نَسُوا يَوْمَ الْحِسَابِ ص۲۶، یقینًا هغه خلق چې د الله تعالی د قانون نه بې لارې شوي دي دهغوي لپاره سخت عذاب دی په دې خاطر چې هغوي د حساب ورځ هیره کړې ده ۔

د دې آیت نه معلومه شوه چې د الله تعالی په قانون فیصله نه کول د آخرت دورځې نه انکار کول دې ،دا د الله تعالی د حاکمیت هغه څلور پایې دي چې دیو بل سره مربوط دي ،د یو نه مخ اړول د ټولو نه مخ اړول دي ، یعني دوه متضاد څیزونه (منل او نه منل) نه شي جمع کیدې ،لهذا کوم خلق چې د الله تعالی په

قانون فیصلې نه کوي او د قیامت د منلو دعوی کوي لکه یهود ، او ددې امت موجوده واکداران ،نو د قرآن کریم په تصریح سره دا دوه متضاد دعوې دي چې دروغ دي ۔

جمله اسمیه د تاکید لپاره ده او "انّ" د تاکید آخري درجه ده چې جواب قسم دی ، دا دومره مؤکد کول د کلام ددې وجې نه دي چې داکثرو خلقو دا خیال وي چې رحماني حکم پریخودل او په انساني رأي فیصله کول کفر نه دی ۔

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ذَٰلِكَ ظَنُّ الَّذِينَ كَفَرُوا فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِنَ النَّارِ ۲۷ص ، په دې آیت کې د ټول مخلوق د پیدائش مقصد الله تعالی بیانوي: مونږه زمکه او اسمان او ټول انس وجن بې مقصده نه دي پیدا کړي بلکه ددې لپار پیدا کړي دي چې دوي به "تحاکم الی الله" کوي څنګه چې په مخکې آیت کې ذکر شو ، ددې مقصد نه بغیر د کائنات د پیدا کولو عقیده د کافرو ده ،او هغه ابدي جهنمیان دي ۔

په سورۀ ص کې مقصد د نزول قرآن بیان شوی دی په تقابل سره ،چې فیصله کول په قرآن سره لازم دي ،که په قرآن سره فیصله او نه شي او په بل څه فیصله او شي نو انجام به ئ کفر او دهمیشه اوور وي ۔

۴ ۔ لَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنَاتِ وَأَنزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ ۲۵الحدید ، دې آیت کې الله تعالی د څلورو امورو مقصد ذکر کوي: مقصد نزول وحي،مقصد نزول بینات ،مقصد بعث رسل ،مقصد نزول میزان ـالله تعالی فرمایي ؛ یقینا مونږ رسولان لیږلي دي سره د معجزو ، او مونږ د هغوي سره قانون نازل کړی دی، او صحابه کرام ددې لپاره چې خلق د الله تعالی په قانون ودریږي او مونږ وسپنه نازل کړي ده په دې کې سخت جنګ دی او ډیرې فائدې ده د خلقو لپاره او چې ظاهر کړي الله تعالی هغه څوک چې الله او رسول حاکم نه مني په دنیا کې ،بیشک الله تعالی قوي او زورآور دی ۔

"لیعم الله" دا تعلیل د مخکې تعلیل تفسیر دی ۔

وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا نُوحًا وَإِبْرَاهِيمَ وَجَعَلْنَا فِي ذُرِّيَّتِهِمَا النُّبُوَّةَ وَالْكِتَابَ فَمِنْهُم مُّهْتَدٍ وَكَثِيرٌ مِّنْهُمْ فَاسِقُونَ ۲۶، دا تفصیل دی د دغې اجمال ، چې شروع مونږه د نوح علیه السلام نه کړې ده او څنګه چې مونږ دوي ته کتاب یعني قانون ورکړې وو د غه شان د دوي اولاد ته حکومت او قانون ورکړې وو ،نو چا و منلو او چا د الله تعالی د قانون نه تیښته وکړله ۔ لِيَقُومَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ ، چې خلق د الله تعالی په قانون ودریږي ، القسط ،العدل ،الحق وغیره

،دا د الله تعالی دقانون صفتي نو مونه دي ـ وَلِيَعْلَمَ اللهُ مَنْ يَنْصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ، خلق ه د وه ډلې کيږي ،يو هغه چې دالله تعالی حاکميت مني او بله هغه چې دالله تعالی حاکميت نه مني، الغيب ای فی الدنيا ،ځکه په آخرت کې خو به هرڅوک دالله تعالی حاکميت ومني ـ

وَأَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتَابَ وَالْمِيزَانَ، ددي قانون لپاره الله تعالی ميزان او معيار هم په خپله منتخب کړی دی، په دې خاطر چې خلق دالله تعالی دقانون سره لوبې ونکړي، دامعيار او ميزان صحابه کرام دي، نبي عليه السلام فرمايي: إنّ الله اختارني واختارلي اصحابي، يقينا الله تعالی زۀ هم منتخب کړې يم اوزمالپاره ئ صحابه هم منتخب کړي دي ـ قرآن کريم کې هم ددې تصريح ده چې صحابه کرام دايمان او دعمل لپاره معيار او ميزان دی: فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنْتُمْ بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوْا وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللهُ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ١٣٧ صِبْغَةَ اللهِ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللهِ صِبْغَةً وَنَحْنُ لَهُ عَابِدُونَ ١٣٨ البقره ،پس که چاستاسو په شان ايمان راوړو هغۀ هدايت وموندلو اوکه چاستاسو نه مخ واړولو نوهغه دهدايت او دايمان په ضدکې دی يعني کافر دی ،دا دالله تعالی رنګ دی لازم ئ اونيسئ ،او څوک به وي دالله تعالی نه ښه رنګ ورکونکی ،اومونږ ددغه الله حکم منونکي يو ـ نو چې صحابه په ايمان کې معيار شول نو په عمل کې هم معيار دي: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: يَكُونُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ يَأْتُونَكُمْ مِنَ الْأَحَادِيثِ بِمَا لَمْ تَسْمَعُوا أَنْتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ فَإِيَّاكُمْ وَإِيَّاهُمْ لَا يُضِلُّونَكُمْ وَلَا يَفْتِنُونَكُمْ». . رَوَاهُ مُسلم، نبي عليه السلام فرماي: په آخروخت کې به دهوکه باز ،دروغژن خلق راوځي ،تاسو ته به دداسي احاديثو درس او حواله درکوي چې هغه به تاسو اوستاسو پلارانو نه وي اوريدلي پس تاسو دهغوي نه ځان بچ وساتئ چې هغوي مو بې لارې نه کړي ، اوددين نه مو وانهړوي ـ په دې حديث کې په طور د اعجاز خطاب دآخرنی زمانې مسلمانانو ته دی ، نبي عليه السلام دخپل دې خطاب سره دآخرنی زمانې مسلمانان يددې خبري پابند کړي دي چې حديث صرف هغه دی کوم چې صحابه کرامو اوريدلی وي اوعملي کړی وي ـ "لم تسمعوا "بطورتاکيد دی ځکه چې صحابه کرامو يوحديث نه وي اوريدلې نو روستني مسلمانان به ئ دکوم ځائ نه واوري ـ داسې خلق به راشي چې داسې احاديث به درته کوي چې تاسو اوستاسو مشرانو يعني صحابه کرامو ـ

په دې ځان ښه پوهه کړئ چې الله تعالی ته اونبي عليه السلام ته رسيدونکې لاره صرف صحابه کرام دي ـ

## دین عبارت دی دصحابه کرامو نه

وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّى وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ وَسَاءَتْ مَصِيرًا ۱۱۵ النساء ، چاچې د رسول مخالفت وکړو سره دعلم نه ، د رسول مخالفت دادی چې دصحابه کرامو د لارې نه واوړي، داسې سړی مونږ سپارو دهغهٔ خوښې ته او بوځو ئ جهنم ته اوډیر بد ځائ دي۔ دداسې سړي نه الله نه راضي کیږي۔ والذین اتبعوهم بإحسان رضی الله عنهم ، دالله تعالی رضا دصحابه کرامو په اتباع کې ده۔

الله تعالی ځنګه چې صحابه کرام دایمان اودعمل لپاره معیار ګرځولي دي، هم دغه شان ئ د خپل قانون لپاره ئ هم معیار او میزان ګرځولي دي ، او دالله تعالی قانون قرآن او حدیث دي ، نو دقرآن او دحدیث لپاره معیار صحابه کرام دي۔

لهذا کوم قرآن او حدیث چې دصحابو نه نه وي تائید ،هغه کفر دی ،لکه د روافضو ځلوینبت سپارې قرآن او د سلفیانو غیرمقلدینو اتهٔ(۸) رکعته تراویح ۔

**۵** ۔ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا۶۰ النساء۔

یوسړې دادعوی کوي چې زهٔ دالله تعالی ټوله وحي منم خو ددې سره سره ددهٔ داخیال دی چې داسماني قانون نه علاوه بل قانون ته هم تحاکم کولې شي ، یعني دآزادعدلیې قائل دی ،په اختلاف حل کولو کې پابندي د وحې نشته ،تنګ نظري نه ده ښه ، وسعت پکار دی ۔ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ، دا داسماني وحې او درحماني قانون دمنلو لپاره سلبي شرط دادی چې دایمان سره متصل رغلی دی چې په ماانزل الله تعالی او په اسماني قانون دچا ایمان وي نو دطاغوت یعني دبل قانون او قضاءنه به داسې انکار کوي، چې هغې ته به کفر وایي۔

### ضلال بعید

وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ،چې عدلیه آزاده مني نودا شیطان په ضلال بعید کې اچولي دي ۔

"ضلال بعيد " دی ته وايي چې دعبادت په باب کې دماانزل الله پابندي کوي ،داعمالو ئ پابند وي،او دحاکميت عقيده ئ خرابه وي،يعني دجګړې او داختلاف په وخت کې د وحي يعني داسماني قانون پابندي نه کوي ،عدليه آزاده مني، قرآن دې ته ضلال بعيد وايي :١- الَّذِينَ يَسْتَحِبُّونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا عَلَى الْآخِرَةِ وَيَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا أُولَئِكَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ ٣ ابراهيم ، چې ددنيا حکومت او انساني قانون باقي ساتي دالله تعالى حکومت او قانون نه مني - ويبغونها عوجا ،او وايي چې اسماني قانون د حالاتو او د وخت سره مناسب نه دی - أُولَئِكَ فِي ضَلَالٍ بَعِيدٍ ، دغه خلق په ضلال بعيد کې دي -

٢- مَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا بِرَبِّهِمْ أَعْمَالُهُمْ كَرَمَادٍ اشْتَدَّتْ بِهِ الرِّيحُ فِي يَوْمٍ عَاصِفٍ لَا يَقْدِرُونَ مِمَّا كَسَبُوا عَلَى شَيْءٍ ذَلِكَ هُوَ الضَّلَالُ الْبَعِيدُ ١٨ ابراهيم ،ځوک چې دالله تعالى دحاکميت عقيده نه ساتي، او اعمال صالحه به کوي، دغه اعمال ئ برباد دي، دامجموعي حال ددۀ ضلال بعيد دی -

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا ٦١ النساء ،که دالله تعالى په قانون فيصلې ته ئ راغواړې نو بيا پابندي او التزام د ماانزل الله نه کوي،او ستانه ځان لرې ساتي - فَكَيْفَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ثُمَّ جَاءُوكَ يَحْلِفُونَ بِاللهِ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا إِحْسَانًا وَتَوْفِيقًا ٦٢، دداسې خلقو قتلول د عمررضی الله عنه سنت دي - وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ ، د وحې نه علاوه په بل قانون فيصله کول او په فيصله کولو کې دوحې پابندي نه کول د رسول د رستلو او دهغۀ درسالت مقصد ختموي - فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ٦٥، ايمان بالله او ايمان بماانزل الله دا دی چې قضاء او عدليه به پابنده وي د وحي او داسماني قانون -

٧ - الر كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ لِتُخْرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ بِإِذْنِ رَبِّهِمْ إِلَى صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ ١ ابراهيم ، داقانون دی چې نازل کړی دی مونږ تاته چې تۀ راوباسې خلق د تيرو دانساني قوانينو نه نور ته دانسانانو د رب په حکم سره ،د زورآور ستايلي شوي قانون ته -

سوره ابراهيم کې دتورات د نزول مقصد هم دغه بيان کړی دی : وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَى بِآيَاتِنَا أَنْ أَخْرِجْ قَوْمَكَ مِنَ الظُّلُمَاتِ إِلَى النُّورِ الايه ٥ ، د الظلمات نه فرعوني قوانين مراد دي، او د النور نه رحماني قانون مراد دی -

مقصد دنزول قرآن باندې مونږ يوڅو آيتونه د قرآن را واړول ،چې هغه بالکل صريح دي په دې خبره باندې چې مقصد دنزول قرآن "حكم بين الناس " دى، يعني الله تعالى حاكم دى ،حکم او قانون به دهغهٔ وي، پيغمبر دهغهٔ دطرفه دانسانانو لپاره مقرر شوې حاکم دى، که الله تعالى حاکم اونه منلى شي نو دا د الله تعالى نه انکار دى ،او که قرآن قطعي او لازمي قانون اونه منلى شي نو دا دقرآن نه انکار دى ،او دغه شان که پيغمبر حاکم ونه منلې شي نوداد رسالت نه انکار دى ،اگر که دعوى دايمان کوي، که د وحي حکومت ختم شي، اوعقوبات الهيه معطل شي ،اوعدليه آزاده ومنلې شي ،نو د وحي دنزول مقصد فوت شو، دبعثة الرسل مقصد فوت شو، دآيات بينات يعني دمعجزو دظاهرولو مقصد فوت شو۔

## ضلال قريب

ضلال قريب دې ته وايي چې په لنډه اوپه ښکاره د اسلام نه واوړي، لکه دالله ،يا درسول ،يا دقرآن نه انکار وکړي يا ورته کنځل وکړي۔شيطان داسې د هر چاسره نه کوي بلکه په اوږده لارئ کافر کوي،چې دهٔ ته پته ونه لگي ،او دې کافر شوې وي : أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا٦٠ وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ تَعَالَوْا إِلَى مَا أَنْزَلَ اللهُ وَإِلَى الرَّسُولِ رَأَيْتَ الْمُنَافِقِينَ يَصُدُّونَ عَنْكَ صُدُودًا٦١النساء، کوم خلق چې شيطان په ضلال بعيد کې اچولي دي کله چې هغوي ته اووئيلې شي : راشئ هغه حکم ته چې الله نازل کړى دى او د رسول حکم ته ،نو تهٔ به وينې دامنافقان چې نه به راځي تاته بالکل۔ تردى وخته پورې دوي دذبې په څادر کې دمؤمن په نامه پټ وو۔ کله چې په څه جنجال کې اخته شو او وخت دفيصلې راغى نو هغه څادر ترې لرې شو او ښکاره کافران شول۔ هم دغه دضلال بعيد تعريف دى چې په ژبه کلمهٔ اسلام وايي ،داسماني کتابونو دمنلو کلکه دعوى کوي ،په عبادت کلکه ولاړدي ،دحرامو او دکبيره گناهونو نه ځان په بشپړه توگه ساتي ،داعمال صالحه پابندي کوي ،خو دجنجال په وخت کې د وحې يا داسماني قانون دپابندۍ عقيده نه لري۔ په حالاتو ئ نظر وي که په قرآني فيصله کې ئ فائده وي نو هغي ته منډې وهي ،او وايي اسلام زنده باد، او که پکې خپل تاوان ويني نو دآزاد عدليې خبرې کوي۔ منافق دحکم الله اود رسول دحکم او قضاء نه ډډه کوي۔دمونځ،روژه ،حج ،زکوة ،نوافلو نه ډډه نه کوي ،يعني معبود الله تعالى مني خو حاکم الله تعالى نه مني ۔ أُولَئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَهُمْ فِي أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا٦٣ وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ الايه ٦٤،الله تعالى ددوي د زړهٔ اراده ښکاره کول غواړي ،نو داسې وخت او حالات په راولي چې په هغي کې هرچاته معلوم شي چې دوي

دتحاکم الی الله پابندي کوي او که د آزاد عدلیه او قضاء وائل دي ـ لهذا تهٔ ددوي عذرونه مه اوره او د "تحاکم الی الله "امر ورته کوه ،اودوي ته ددوي دفائدې لپاره صفا خبره کوه ،چې نه دی لیګلی مونږ يو پیغمبر مګر ددې لپاره چې هغهٔ ته فیصله وړاندې کړي شي دالله تعالی په امر۔ هم دغه مراد دی دقول بلیغ نه چې : وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ ، پیغمبر به حاکم مني ،که نه مني نو دا درسالت نه انکار دی۔

## داسماني قانون رتبه دالله تعالی په نزد

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ۶۵النساء ، ،په دی آیت کې ادات دقسم دوه ي ،یو "لا " چې په فعل قسم داخلیږي اوزائد وي لکه "لااقسم بیوم القیامه "۔ دویم "واو قسمیه "،نودوه ځله الله تعالی قسم کړی دی (داسې تاکید په پوره قرآن کې په یوه خبره کې هم نشته ) زما دې قسم وي بیا مې دې قسم وي ستا په رب اوپه بادشاه ! چې داامت چرته هم مؤمن نه شي کیدی ترڅو چې ددوي په محکمه کې تهٔ نه ئ ۔ یعني الله تعالی داسې فرمایي: زمادې قسم وي زمادې قسم وي !دمحمد نه بغیر محکمه ،قضاء ،فیصله کفر دی۔ داقسمه تاکید اوتشدید ددې لپاره چې الله تعالی ته علم وو چې داامت به محمد دمحکمې اودقضاء نه لري کوي اوپه ما باندې به دځان بخلو لپاره ایمان ایمان ،اسلام اسلام وایي ،جمات ته به ځي قرآن به ښکلوي ،مونځ به کوي ،خو بی دمحمد دقضاء نه ماته څوک یادچا ایمان نه دی منظور۔ لهذا که هر قسم عبادات کوي، سهار ماښام په ژبه باندې ایمان مفصل او ایمان مجمل لولي ،خوسره ددې نه عدلیه آزاده مني ،د وحي پابندي نه مني، الله تعالی دداسې خلقو په باره کې وایي : دا باقي اعمال ورته هیڅ فائده نه ورکوي، ځکه دامؤمن نه دی، حَتَّى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ، ترڅو چې دوي محمد حاکم کړې نه وي، ترڅو چې خپله فیصله ،قضاء ،عدلیه ،محکمه دمحمد عربي پابند نه کړي ۔

## حاکم جوړیدل دهر پیغمبر صفت دی

أُولَئِكَ الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ فَإِنْ يَكْفُرْ بِهَا هَؤُلَاءِ فَقَدْ وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَيْسُوا بِهَا بِكَافِرِينَ ۸۹الانعام ، الله تعالی فرمایي پیغمبران زمانائبان دي ،دوي ته ما خپل حکومت او قانون ورکړی دی ،که د مکې خلقو دمحمد ددې حق نه انکار وکړو چې محمد حاکم نه دی ،نودا کافران دي، نو ایمان دادی چې محمد حاکم ومنلې شي، محمد دعدالت قانون شي، کوم عدالت کې چې محمد قانون نه وي، محمد

پکې حاکم نه وي ،نو ددغه عدالت واکداران او دغه عدالت ته راتلونکي خلق به ځان ته مؤمنان وايي خو الله تعالی فرمايي: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ ـ

كلّ يدّعي وصلا بليلى وليلى لاتقرّ لهم بذاک

ددوي لپاره دومره وئيلې شو چي "عاملة ناصبة " يعني هندو سترې الله ناراضه ـ

شاعر مشرق اقبال وايي: کی محمد سے وفا تونے تو ہم تیرے ہیں۔

يعني الله تعالی فرمايي که محمد چا مطاع او حاکم ومنلو نو زهٔ ئې هم ومنلم ،او کوم زړهٔ کې چې محمد مطاع او حاکم نه وي نو دغه زړهٔ کې الله هم نشته ،په حقيقت کې د اقبال دا مصرعه د دې آيت ترجمه ده : من يطع الرسول فقد اطاع الله ـ

وقال الرسول يارب ، چي څوک محمد مطاع نه مني نو دداسې خلقو په باره کې به نبي عليه السلام شکايت کوي په باب د رسالت کې به شکايت کوي الله تعالی ته په ورځ قيامت: اے زما بادشاه ! انّ قومی اتخذوا هذاالقرآن مهجورًا ، زما دې قوم دا قرآن پريخودی وو ـ شيخ الهند رحمه الله فرمايي: دوي دا قرآن جهک جهک گنړلی وو- شيخ الاسلام شبيعاحمد عثماني رحمه الله فرمايي: داي دا قرآن بک بک او بکواس گنړلی وو ـ يعني څوک چي په قران فيصله نه کوي او دمنلو دعوي ئ کوي دوي قرآن بکواس ،جهک جهک او بک بک يعني د ليونو برړاری گنړي-

مهجور هغه څيز وي چې صرف د وينا دحد پورې باقي او پاتې وي يعني په اشعارو او په قصيدو کې ذکر کيږي ،خو عملي استفاده ترې نه کيږي ،لکه په دې وخت کې چې د قرآن حال دی چې په ذبه او په الفاظو کې وجود لري ليکن په ځکم کې هيڅ حيثيت نه لري ـ

وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِنْ دِيَارِكُمْ مَا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِنْهُمْ وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَهُمْ وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا٦٦ النساء ، الله تعالی فرمايي :زهٔ علی الاطلاق حاکم يم ،چې څه حکم درباندې منل وغواړم منلې شم ،لهذا اوس ما په تاسو باندې دا فرض کړي دي چې محمد به مطاع او حاکم منئ، په دې درنه راضي کيږم، په بل څه نه ، که دا چا ومنلو ، نو دا ورله بهتر دی ،په دې کې أجر عظيم دی،دا صراط

مستقیم دی، دا ملګرتیا دمحمد او دصحابه کرامو ده ،دا الله تعالی منل دي، دا دالله تعالی فضل دی ، دا جنّت دی۔

# دقرآن کریم مرتبه

اوس مونږ مرتبه یا درجه د وحي بیانوو ،یعني دالله تعالی د قانون حیثیت یا "مکانة الوحی عندالله"۔

ددې عنوان مطلب دادی چې دالله تعالی دقانون نه څوک په څومره درجه کې مخ اړولې شي؟، دالله تعالی دقانون نه علاوه بل قانون ته څومره اجازت ورکړې کیږي ؟،اوکه یو سړې دالله تعالی په قانون فیصلې ونکړي نو څه تاوان به ئ اوشي ؟ ۔

ثُمَّ اجْتَبَاهُ رَبُّهُ فَتَابَ عَلَيْهِ وَهَدَى طه ۱۲۲، دا اولنی وحي ده ،کله چې الله تعالی آدم علیه السلام ته خپل قانون او دستور حواله کړلو ،او دجنت نه ئ دنیا ته راولیګلو نو دخپل قانون مقام ،مرتبه او حیثیت ئ ورته اوښودلو : قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى ۱۲۳ وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى ۱۲۴، ستاسو په اولاد کې به عداوت وي۔ یو عداوت دإبلیس او دآدم علیه السلام په مینځ کې وو ، دا دآدم علیه السلام دپیدائش سره شرع شوې وو ، دا په جنت او په اسمان کې هم وو ،ددې ذکر هم په دې سورت کې دی: وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَائِكَةِ اسْجُدُوا لِآدَمَ فَسَجَدُوا إِلَّا إِبْلِيسَ أَبَى ۱۱۶ فَقُلْنَا يَا آدَمُ إِنَّ هَذَا عَدُوٌّ لَكَ وَلِزَوْجِكَ فَلَا يُخْرِجَنَّكُمَا مِنَ الْجَنَّةِ فَتَشْقَى ۱۱۷ ۔ بل عداوت د اولاد آدم په مینځ کې دی، دا په څلور قسمه دی :

۱ ۔ عداوت دیني ۔دا عداوت دآدم علیه السلام په وخت کې صرف دشیطان سره وو ،ځکه ټول اولاد آدم د آدم علیه السلام په دین باندې وو ۔

۲ ۔ عداوت عرضي ۔هر انسان عزت لري ،په خپل عزت خفه کیږي، ځان بےعزتئ ته نه ورکوي۔

۳ ۔ عداوت نفسي ۔هر انسان نفس لري ،دا نفس نقصان او مجروح کیدو ته نه ورکوي۔

۴ ۔ عداوت مالي ۔هر انسان څه نه څه مال لري ،په نقصان ئ خفه کیږي۔

اولني قسم عداوت يعني عداوت ديني په پیغمبرانو کې علی الوجه الاتم موجود وي، او په باقي انسانانو کې درجه په درجه، دنیاچې ختمیږي نودا عدوت به مخکې ختم شي، حتی چې ټولو خلقو کې به ایمان پاتې نه شي ،داسلام حاکمیت به ړومبی ختم شي ،ځوک به په دې نه خفه کیږي ،عبادات به ځه نه ځه ژوندي وي خودابه هم آخر ختم شي، دالله تعالی په زمکه به دالله تعالی دحق تپوس کونکی هیڅ ځوک هم نه وي ،ددې عداوت ديني په ختمیدو سره به الله تعالی ددنیادختمولو فیصله وکړي : عَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى لَا يُقَالَ فِي الْأَرْضِ: اللهُ اللهُ". وَفِي رِوَايَةٍ: "لَا تَقُومُ السَّاعَةُ عَلَى أَحَدٍ يَقُولُ: اللهُ الله". رَوَاهُ مُسلم۔ د انس رضی الله عنه نه روایت دی نبي علیه السلام فرمایلي: دي قیامت به نه راځي ترڅو چې په زمکه باندې الله الله وئیلی کیږي۔ په بل روایت کې دي : قیامت به نه راځي په هغه چا چې وایي الله الله ۔ دابن مسعود رضی الله عنه په روایت کې داسې خلقو ته شرارالخلق وئیلي شوي دي : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا تَقُومُ السَّاعَةُ إِلَّا عَلَى شِرَارِ الْخَلْقِ. رَوَاهُ مُسلم ۔

عداوت عرضي یعني دعزت او دناموس عداوت به هم ددین ددائرې نه ووځي ،ځوک به دخپل دین په وجه دناموس تپوس نه شي کولې ،ځکه ریاست په دهٔ غالب دی ،یعني دهٔ د ریاست مشري منلې ده ددین په مقابله کې ،نوچې عداوت ديني ئ ختم کړلو چې زهٔ ستا سره ستا په مشرئ کې وسیدو ته اماده یم ،حالانکه الله تعالی دکافرو په مشری کې دوسیدو نه منع کړې ده (ولن یجعل الله للکافرین علی المؤمنین سبیلا ) ځوک کافر په مسلمان باندې مشر کیدي نه شي، دغه شان حدیث کې هم راځي: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَرِيَّةً إِلَى خَثْعَمَ فَاعْتَصَمَ نَاسٌ مِنْهُمْ بِالسُّجُودِ فَأَسْرَعَ فِيهِمُ الْقَتْلَ فَبَلَغَ ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُمْ بِنِصْفِ الْعَقْلِ وَقَالَ: أَنَا بَرِيءٌ مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ مُقِيمٍ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ .قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ لِمَ؟ قَالَ: لَا تَتَرَاءَى نَارَاهُمَا . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ ۔ یعني مسلمان به په دارالحرب کې نه مقیم کیږي، ځکه د دارالحرب مشر کافر دی،دهٔ دهغهٔ مشري قبول کړله ،نو دهغهٔ سره ئ عداوت ديني ختم شو ، او چې عداوت ديني ختم شونو عداوت عرضي بیا نه پاتې کیږي،ځکه نبي علیه السلام فرمایي:

الایمان والحیاء قرناء فاذا ذهب احدهما ذهب الاخر ،ایمان او حیا دیو بل ملګري دي نو کله چې یو لاړشي نو بل هم ورسره تلی وي۔

دغه شان مالي عداوت او بدني عداوت به هم ختم شي، په حرام او ناروا طريقي سره به د يوبل مالونه خوري، او يوبل به پرې وژني -

دا څلورقسمه عداوت حديث شريف کې هم ذکر دی : وَعَن سعيدِ بنِ زيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: مَنْ قُتِلَ دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ -

وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَرَأَيْتَ إِنْسس جَاءَ رَجُلٌ يُرِيدُ أَخْذَ مَالِي؟ قَالَ: فَلَا تُعْطِهِ مَالَكَ، قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَاتَلَنِي؟ قَالَ: قَاتِلْهُ ، قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلَنِي؟ قَالَ: فَأَنْتَ شَهِيدٌ . قَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلْتُهُ؟ قَالَ: هُوَ فِي النَّارِ . رَوَاهُ مُسلم - يو سړي د نبي عليه السلام نه تپوس وکړو ، که يو سړې راشي زما مال اخلي؟ نبي عليه السلام وايي: مهٔ ورکوه مال ورته، هغه وايي: که دا سړې زما سره جنګ کوي ؟ نبي عليه السلام ورته وايي: تهٔ ورسه هم جنګ کوه، هغه وايي: که ما اوژني ؟ ،نبي عليه السلام وايي: تهٔ شهيد ئې، هغه وايي: که ما هغه مړ کړلو ؟ نبي عليه السلام وايي: هغه جهنمي دی -

نو که دا څلور قسمه عداوت وو نو دين اسلام به ژوندې وي، او که دا نه وو په څومره درجه کې نو په هومره درجه کې به اسلام هم نه وي،

په دي څلور عداوتونو سره مزيّن اولاد آدم دنيا ته راغلل - فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى، الله تعالیٰفرمايي يقينا زما د طرفه به تاسو ته قانون راځي ،دا قانون به د دي عداوتونو په بنياد وي،جان،عزت او مال به د هرچا محفوظ او محترم وي ، قانون او حکومت به د اسلام وي -

قَالَ اهْبِطَا مِنْهَا جَمِيعًا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُمْ مِنِّي هُدًى فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يَضِلُّ وَلَا يَشْقَى ١٢٣ وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا وَنَحْشُرُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَعْمَى ١٢٤ قَالَ رَبِّ لِمَ حَشَرْتَنِي أَعْمَى وَقَدْ كُنْتُ بَصِيرًا ١٢٥ قَالَ كَذَلِكَ أَتَتْكَ آيَاتُنَا فَنَسِيتَهَا وَكَذَلِكَ الْيَوْمَ تُنْسَى ١٢٦ وَكَذَلِكَ نَجْزِي مَنْ أَسْرَفَ وَلَمْ يُؤْمِنْ بِآيَاتِ رَبِّهِ وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَشَدُّ وَأَبْقَى ١٢٧ طه .وفرمائيل الله تعالی :ښکته شئ تاسو دجنت نه دواړه ،ستاسو يو به دبل دښمن وي، لهذا يقينًا به تاسو ته راځي زما لخوانه قانون ،پس چاچې خپله فيصله وکړه زما په قانون باندې نو هغه کافر نه دی په دنيا کې او بدبخت يعني دوزخي نه دی په آخرت کې ، او چاچې مخ واړو زما دقانون نه نو دهغهٔ لپاره بس دغهٔ ددنيا داتنګ ژوند دی ،او راپورته کوو به ئې مونږ دقيامت په ورځ ړوند ، ، دی به وايي: ای

زما حاکمه !ولې دې راپورته کړم زهٔ ړوند ، که نه زهٔ خو ووم په سترګو کتونکی، وايي به ورته حاکم: هم دغه شان راغلي وو تاته زما قانون ،نو تاهیر کړلو او دغه شان نن تهٔ هم هير کړلی شوې ، اوهم دغه شان بدله ورکوو مونږ هغه چاته چې بې ځايه مشري کوي او نه مني دخپل بادشاه قانون ،او راتلونکی عذاب ډير سخت دی او پاتې کيدونکی دی۔

داد قانونِ الهي مرتبه اوحيثيت دی ،چې چا ومنلو نوپه دنياکې به کافر نه وي او په آخرت کې به ابدي دوزخي نه وي ،اوکه چا اونه منلو نوپه دنياکې کافر دی او په آخرت کې ابدي دوزخي دی -

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ الَّذِي آتَيْنَاهُ آيَاتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَأَتْبَعَهُ الشَّيْطَانُ فَكَانَ مِنَ الْغَاوِينَ الاعراف ۱۷۵، مکې والو ته دهغه سړي قصه بيان کړه چاته چې الله تعالی اسماني يعني دخپل قانون علم ورکړې وو ، دالله تعالی په قانون او آئين پوهه وو۔

فَانْسَلَخَ مِنْهَا، "سلخ "وئيلې شي دڅاروي نه څرمن وباسلو ته ،نويعني داسړې دالله تعالی دقانون نه اووتلو ،نو شيطان ورپسې شو ،لار ورته جوړه شوه نو داسړې کافر شو -

وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَاهُ بِهَا ، دنيا کې رفع او وضع په کتاب الله باندې وي، نبي عليه السلام فرمايي : انّ الله يرفع بهذا الکتاب اقوامًا ويضع به آخرين ، څوک چې دالله تعالی قانون ومني ،الله تعالی ئ لوړ کړي ،اوڅوک چې ئ نه مني الله تعالی ئ راغورځوي - وَلَكِنَّهُ أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ ای : الی اهل الارض ، ليکن دې سړي أهل الارض يعني حکومتي خلقو ته ميلان وکړو - وَاتَّبَعَ هَوَاهُ، اود وحې په خلاف روان شو اومحض دعقل خبرې ئ شروع کړې په مختلف مثالونو ،او مزخرف او مزين خبروباندې خلق مطمئن کوي - فَمَثَلُهُ كَمَثَلِ الْكَلْبِ ، دامثال دهغه چابيانوي چې دالله تعالی په قانون پوهه وي خو داسې مطلب ئ بيانوي او داسې تاويل پکې کوي چې دالله تعالی حاکميت ورسره ختميږي او دمخلوق قانون ته پکې لاره جوړيږي۔ إِنْ تَحْمِلْ عَلَيْهِ يَلْهَثْ أَوْ تَتْرُكْهُ يَلْهَثْ ذَلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا فَاقْصُصِ الْقَصَصَ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ ، دا صفت دسپي دی ،خصوصًا په اووړي کې ئ ژبه راوباسلې وي او په تيزئ سره ساه اخلي او هپ هپ کوي۔

دا مثال دعام بني اسرائيلو دخلقو دی ،بعض مفسرينو د يوخاص سړي نوم اخستی دی: بلعم بن باعور، خو دا آيتونه او په دې کې بيان شوی حال په دهٔ پوري خاص نه دی ،البته دهٔ داسې کار کړی دې نو دی هم ددې مصداق دی، خود آيتونو دعموم نه معلوميږي چې دا دبني اسرائيلو هغه خلق دي ،چاچې

دتورات نه مخ اړولې وو : ذٰلِكَ مَثَلُ الْقَوْمِ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا، دا مثال دهغه خلقو دی چې زمونږ دقانون تکذیب کوي۔

قرآن دعام خلقو مثال دعام ځناورو سره ورکړی دی (کالانعام ) ، او دأهل کتابو مثال ئ دخاص ځناور سره ورکړی دی ،لکه دلته سپي او په سورۀ جمعه کې د خر مثال ذکر دی، ځکه کله چې عمدة القوم ،احبار او رهبان دالله تعالی دکتاب سره داسې وکړي چې حاکمي حیثیت ئ ختم شي او لهو ولعب ترې جوړ شي۔ اِتَّخَذُوادِينَهم لَهوًاولَعِبًا )دالله تعالی دین ئ دخپلې مرضئ وګرځولو ، نودغسې پوهه خلقو ته الله تعالی په خپل کتاب کې ددغه جرم په وجه بدنسبت کوي ،ځکه ددوي جرم غټ دی، الله تعالی پخپله هم فرمايي : سَاءَ مَثَلًا الْقَوْمُ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِآيَاتِنَاوَأَنْفُسَهُمْ كَانُوا يَظْلِمُونَ ١٧٧،دا ډیر بد صفت او مثال دی دداسې خلقو ۔

وَعَن ابْن عَبَّاس قَالَ: من تعلم كتاب الله ثمّ اتّبع مَا فِيهِ هَدَاهُ اللهُ مِنَ الضَّلَالَةِ فِي الدُّنْيَا وَوَقَاهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سُوءَ الْحِسَابِ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: مَنِ اقْتَدَى بِكِتَابِ اللهِ لَا يَضِلُّ فِي الدُّنْيَا وَلَا يَشْقَى فِي الْآخِرَةِ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلَا يضل وَلَا يشقى۔ ابن عباس رضی الله عنهما فرمايي :چاچې دالله تعالی کتاب زده کړلو اوبيا ددې دقوانینو تابعداري وکړله نو الله تعالی به په دنیاکې ورته هدایت ورکړي، اوپه قیامت کې به ئ د بد حساب نه وساتي ،اوپه بل روایت کې داسې دي: چاچې دالله تعالیدکتاب اقتدا وکړله نودنیاکې به ګمراه نه وي اوآخرت کې به بدبخت نه وي ،بیا ئ دا آیت ولوستلو: ترجمه : ثوک چې روان شو زما په هدایت پسې،نه به ګمراه وي اونه به بدبخت وي۔

وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمَنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ٣٦الزخرف ، ثوک چې دالله تعالی دقانون نه نظر واړوي، مونږ ورسره شیطان ملګری کوو ۔ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ السَّبِيلِ، او دغه شیطانان ئ دالله تعالیدقانون نه منع کوي۔ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُمْ مُهْتَدُونَ،او ددوي داخیال وي چې دوي په هدایت دي ۔ حَتَّى إِذَا جَاءَنَا قَالَ يَالَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ ٣٨ . په دنیاکې خو په دې دهوکه وخت تیر کړي ،کله چې ورته مرګ راشي ،نو ددغه کفر مآل اونتیجه به ورته ښکاره شي،لکه سورۀ ق آیت١٢ دغه وضاحت کوي: وَلَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ وَنَعْلَمُ مَا تُوَسْوِسُ بِهِ نَفْسُهُ وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيدِ، شیطان انسان ته وسوسه اچوي چې تهٔ خو دالله تعالی په قانون مضبوط ولاړ ئ، د یو قانون نه مخ اړول څه دومرهٔ نقصان خو نه دی،داڅه خبره ده که دڅه حالاتو په وجه یوفیصله په انساني قانون وکړې شي،الله تعالی

څه دومره تنګ نظري خو نه دی چې په معمولي خبره به د سړي ایمان ختموي ـ الله تعالی فرمایي مونږ انسان ته ډیر نزدې یو ،ددهٔ د زړهٔ په حال پوهه یو إِذْ يَتَلَقَّى الْمُتَلَقِّيَانِ، کاتب الخیر او کاتب الشر مراد دي ـ وَجَاءَتْ سَكْرَةُ الْمَوْتِ بِالْحَقِّ ، مرګ به ورته راشي، الله تعالی به ورته وایي: ذَلِكَ مَا كُنْتَ مِنْهُ تَحِيدُ ـ لَقَدْ كُنْتَ فِي غَفْلَةٍ مِنْ هَذَا، تهٔ دالله تعالی دحاکمیت نه انکار کونکې وې،دا تاکفر نه ګڼړلو، او تاڅان ته ناکامه او کافر نه وئیل ـ فَكَشَفْنَا عَنْكَ غِطَاءَكَ فَبَصَرُكَ الْيَوْمَ حَدِيدٌ ، شیطان خوتا ته وئیل چې په دې نه کافر کیږې،خونن ستانظر ډیر تیز دی،وګوره کنه چې دکتاب الله نه یو نظر اړول او ټول نظر اړول یوشان کفر دی ـ حَتَّى إِذَا جَاءَنَا قَالَ يَالَيْتَ بَيْنِي وَبَيْنَكَ بُعْدَ الْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ الْقَرِينُ، کله چې ضال او مضلّ دواړه الله تعالی ته مخامخ شي، نو دې به بیا ددغه شیطان نه ډیر لرې والې غواړي خووخت به تیر وي ـ الله تعالی به ورته فرمایي: وَلَنْ يَنْفَعَكُمُ الْيَوْمَ إِذْ ظَلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ، ستاسو جرم یو وو ،نن په عذاب کې هم یوڅای یئ ،خو داملګرتیا په عذاب کې تاسو ته هیڅ فائده نه درکوي،

أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ أَمْ عَلَى قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا ۲۴ إِنَّ الَّذِينَ ارْتَدُّوا عَلَى أَدْبَارِهِمْ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْهُدَى الشَّيْطَانُ سَوَّلَ لَهُمْ وَأَمْلَى لَهُمْ ۲۵ ذَلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لِلَّذِينَ كَرِهُوا مَا نَزَّلَ اللَّهُ سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِسْرَارَهُمْ ۲۶ فَكَيْفَ إِذَا تَوَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ يَضْرِبُونَ وُجُوهَهُمْ وَأَدْبَارَهُمْ ۲۷ ذَلِكَ بِأَنَّهُمُ اتَّبَعُوا مَا أَسْخَطَ اللَّهَ وَكَرِهُوا رِضْوَانَهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَالَهُمْ ۲۸ أَمْ حَسِبَ الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ مَرَضٌ أَنْ لَنْ يُخْرِجَ اللَّهُ أَضْغَانَهُمْ ۲۹ وَلَوْ نَشَاءُ لَأَرَيْنَاكَهُمْ فَلَعَرَفْتَهُمْ بِسِيمَاهُمْ وَلَتَعْرِفَنَّهُمْ فِي لَحْنِ الْقَوْلِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ أَعْمَالَكُمْ ۳۰ محمد ، آیادوي دالله تعالی دقانون په حیثیت او په مرتبه نه دي خبر،بلکه په زړونو ئ قلفونه دي ـ یقینًا کومو خلقو چې دالله تعالی قانون ته شاکړله روسته ددې نه چې دالله تعالی قانون ورته واضحه شویعني دحاکم کیدلو نه ئ ترې مخ واړو ، اودقرآن قانو ن ئ لغو او معطل کړو ،شیطان هغوي ته انساني قانون ښائسته کړو ،اوآسان ئ ورته ښکاره کړو ، او غټ لوظونه ئ ورسره وکړل ـ سورهٔ ق دی ته وسوسه وایي، زخرف ورته شیطان ورپسې کول وایي ، سوره محمد په د ارتداد حکم ولګولو ،دهغې وجه بیانوي ،چې دوي دکافرو ملګرتیا کوي ،او ورته وایي: سَنُطِيعُكُمْ فِي بَعْضِ الْأَمْرِ، "ذلک "سره اشاره ده ارتداد ته ،او "بأنهم "نه د ارتداد سبب ذکر کوي مطلب دآیت دادی: داخلق مرتد شول ځکه چې دوي وئیل هغه خلقو ته چې کوم چې دالله تعالی دقانون نه بیزاره وو اوهغه ئ نه خوښولو ،مونږ به ستاسو اطاعت وکړو یعني ستاسو پشان کیږو ،ستاسو پیخې کوو په بعض قانون کې ، او الله تعالی ته معلومه ده ددوي داپټه مشوره او منصوبه ـ نو څنګه حال به وي څه وخت چې ملائک

ددوي نه ساه وباسي وهي به ئ په مخ او په شا۔ دا ځکه چي دوي تګ وکړو په هغه لاره چي الله تعالى ئ خفه کړو ، يعني ديهودو پشان شول ، څنګه چې حديث شريف کې دي: "لتتبعن سنن من قبلکم" ، اوناخوښ ئ کړ دالله تعالى قانون ، نو هغۀ ضائع کړل ددوي اعمال ۔ بلکه يقين کړی وو هغه خلقو چې په زړه کې ئ مرض وو دالله تعالى دقانون دلغو کولو چې الله تعالى به ددوي دغه کينه ،چې دالله تعالى دقانون سره ئ وه، باهر ته نه راوباسي ،نه به ئ ښکاره کوي۔

دالله دقانون درجه او حيثيت بيانيدو ، چي که چا ددې وحي پابندي وکړله نودنيا او آخرت کې کامياب دی،اوکه چا ددي نه اعراض وکړلو که د يو قانون نه وي او که دټولو نه ،نو ددۀ دنيا او آخرت تباه دي ،سورۀ طه،زخرف،او اعراف داخبره اوحکم بيان کړل۔

دغه شان سورۀ مائده آيت ۴۹ ،دخيبر په يهودو کې ښځې اوسړي زنا کړې وه ،دواړه محصن وو ، د مدينې يهود بني قريظه ته ئ داقضيه راوليګله ،دغه وخت دسورۀ نور هغه آيتونه چې د زاني محصن په باره کې وو دهغې تلاوت منسوخ شوې وو ،حکم ئ باقي وو ،دوي دافکر کړې وو چې نبي عليه السلام به په اولني آيتونو فيصله وکړي اوپه دېکې د محصن او غيرمحصن څه قيد نشته، نوپه دې سره به زمونږ دپلارنيکه د تقنين تائيد وشي يعني دزاني محصن لپاره سل کوړې ،خپلوکشرانو يا قوميانو ته ئ اووئيل که دا سزا ئ ورکوله نو قبول ئ کړئ ، اوکه بله سزا ئ ورکوله نوځان ترې وساتئ۔

ديهوديانو غرض خو دا وو چې زمونږ دپلارنيکه قانون دنبي عليه السلام په لاس تائيد شي ،خو الله تعالى داغوښتله چې خپل قانون دنبي عليه السلام په لاس په دغه يهوديانو نافذ کړي : ومکروا ومکرالله والله خيرالماکرين ۔والله غالب على امره ولکن اکثرالناس لايعلمون۔

نبي عليه السلام ددوي نه دستخطونه واخستل چې مونږ دمحمد په قضاء اومحکمه راضي يو۔ الله تعالى دا آيتونه راوليګل : سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ سَمَّاعُونَ لِقَوْمٍ آخَرِينَ لَمْ يَأْتُوكَ، دوي د انساني وضعي قانون منونکي دي، دا دخپلو مشرانو يا دقوميانو په ځائ راغلي دي۔ فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ، الله تعالى نبي عليه السلام ته اختيار ورکړلو دفيصلې کولو ، که تۀ ددوي فيصله کوې او که نه، خو که فيصله کوي نو د وحې پابندي به کوي۔ وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ فِيهَا حُكْمُ اللهِ ، دوي تا نه حاکم

کوي بلکه دوي د خپل آبائي قانون تائيد حاصلول غواړي، که دوي په اسماني قانون فيصله کولې نو په تورات کې هم اسماني قانون شته۔

نبي عليه السلام ددوي د يو عالم ابن صوريه نه تپوس وکړلو ، او سخت قسم ئې ورکړو چې ته ئ او وايه په تورات کې دزاني محصن څه حکم دى ؟، دغه عالم وايي :که دا سې سخت قسم دې نه وې راکړي نو ما به ديهودو لپاره دروغ وئيلي وو ـ صفا خبره داده چې په تورات کې ددې زنا سزا رجم دى ـ نبي عليه السلام هغوي ته وايي ددهٔ دا خبره صحيح ده؟،هغوي وايي : دى مخکې روغ وو خو اوس ليونى شوى دى، په تورات کې دا حکم نشته ـ نبي عليه السلام وايي : تورات راوړئ، چې راوړلو ئ نو دتورات يو عالم ته وايي دا تلاوت کړه، هغه چې تلاوت کولو نو د رجم په آيت ئ لاس ايخودې وو۔ عبد الله بن سلام رضى الله عنه وايي: دا لاس اوچت کړه، چې اوچت ئ کړلو نو د رجم آيت په شان د ستوري ځليدو ، نبي عليه السلام دغه قانون رجم په دغه يهوديانو زانيانو باندې نافذ کړلو ،دواړه ئ رجم کړل،او وى فرمائيل: يا الله نن زهٔ هغه اولنى انسان يم چې ستا حکم مې دمړ کيدو نه روسته بيا ژوندى کړو۔

وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الْكِتَابَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتَابِ وَمُهَيْمِنًا عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ عَمَّا جَاءَكَ مِنَ الْحَقِّ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَكِنْ لِيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ إِلَى اللهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ۴۸ المائده ، په قرآن کريم کې هم دغه قانون رجم وو ،ټوله اسماني وحې يو شان شوه ـ دنبي عليه السلام فيصله کول ،دا دتورات او انجيل قانون نافذول دي، آيت **۴۹** کې هم وايي: وَأَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَا أَنْزَلَ اللهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَاءَهُمْ ، په فيصله کې دا سماني قانون پابندي کوه، په انساني وضعي قانون فيصله مه کوه ـ وَاحْذَرْهُمْ أَنْ يَفْتِنُوكَ عَنْ بَعْضِ مَا أَنْزَلَ اللهُ إِلَيْكَ ، ځان ساته ددوي نه هسې نه چې دالله تعالى په قوانينو کې دې د يو قانون نه واړوي۔ أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ، دا خلق دانسان وضع کړي قانون نافذول غواړي ،چې په هغې کې د وحي پابندي نه وه ،چابه ټولې فيصلې په وضعي قوانينو کولې لکه مشرکين، اوچا به ځني فيصلې په وضعي قوانينو کولې لکه أهل کتاب ،دا ټول جاهليت وو ـ

الله پاک په قرآن کريم کې دخپل قانون شان او مرتبه په دوه جهتونو سره بيان کړې ده،ځکه منکر ددې دوه قسمه خلق دي:۱ـ **مشرکين** ـ چې سراسر دالله تعالى دقانون نه منکر دي،ددوي باره کې الله تعالى

فرمايي: وَمَنْ أَعْرَضَ عَنْ ذِكْرِي فَإِنَّ لَهُ مَعِيشَةً ضَنْكًا۔ دغه شان : وَمَا تَأْتِيهِمْ مِنْ آيَةٍ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ۔

**۲۔أهل كتاب** ۔ چې د الله تعالى دځني قانون نه ئ په دومره درجه کې مخ اړولې وو ، چې د محکمې او قضاء نه ئ لرې کړې وو ، د دوي باره کې الله تعالى فرمايي: وَمَنْ يَعْشُ عَنْ ذِكْرِ الرَّحْمَنِ نُقَيِّضْ لَهُ شَيْطَانًا فَهُوَ لَهُ قَرِينٌ ، که چا د "ذکرالرحمن" نه معمولي په ادنى درجه کې هم نظر واړولو ،نو شيطان به ددۀ ملګرې شي،او ګمراه به ئ کړي، نو الله تعالى فرمايي: که چا زما دټول قانون نه مخ واړولو ، لکه مشرکين ،او که د ځني قانون نه ئ مخ واړولو ،لکه أهل کتاب ،نو دا دواړه کافران دي ،جهنميان دي،هيڅ فرق پکې نشته۔

نبي عليه السلام فرمايي: زما د امّت کافر کيدل به د أهل کتابو په شان وي ،چې دوحي دمنلو دعوى به کوي ،تلاوت به ئ کوي ،خو دا وحي به حاکم کوي نه: عن أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَتُنْقَضَنَّ عُرَى الْإِسْلَامِ عُرْوَةً عُرْوَةً، فَكُلَّمَا انْتَقَضَتْ عُرْوَةٌ تَشَبَّثَ النَّاسُ بِالَّتِي تَلِيهَا، فَأَوَّلُهُنَّ نَقْضًا الْحُكْمُ، وَآخِرُهُنَّ الصَّلَاةُ۔ السنة لابي بكر بن الخلال ، باب مناكحة المرجئة ج۴ ص۱۲۷۔ ورواه: الإمام أحمد في "مسنده"، وابنه عبد الله في كتاب "السنة"۔ اول چې د اسلام کړۍ ماتيږي هغه به د حاکميت کړۍ وي۔

سيأتي على الناس زمان لايبقى من الاسلام الا إسمه ولايبقى من القرآن الا رسمه ،يعني نوم د حده پورې به خلق مسلمانان وي او د قرآن د الفاظو به هم خدمت کوي لکه تلاوت ،طباعت ،خو قانون به پکې د اسلام او د قرآن نه وي۔

حالانکه : إنّ الدين عندالله الاسلام ، يعني د الله تعالى په نزد دينِ اسلام هغه مقبول دي چې حاکم کړی شي۔ او ددې حاکميت په باره کې به مستقل تپوس کيږي: عن أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تَجِيءُ الْأَعْمَال فتجيء الصَّلَاة فتقول: يارب أَنَا الصَّلَاةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. فَتَجِيءُ الصَّدَقَة فَتَقول: يارب أَنَا الصَّدَقَةُ. فَيَقُولُ: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ ثُمَّ يَجِيء الصّيام فَيَقُول: يارب أَنَا الصِّيَامُ. فَيَقُولُ: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ. ثُمَّ تَجِيءُ الْأَعْمَالُ عَلَى ذَلِكَ. يَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ. ثُمَّ يَجِيءُ الْإِسْلَامُ فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَنْتَ السَّلَامُ وَأَنَا الْإِسْلَامُ. فَيَقُولُ اللهُ تَعَالَى: إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ بِكَ الْيَوْمَ آخُذُ وَبِكَ أُعْطِي. قَالَ اللهُ تَعَالَى فِي كِتَابِهِ: وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۔رواه احمد۔ په دی حديث کې اسلام يو جانب او نور اعمال بل جانب ته دي او نيول او پريخودل

په اسلام دي ـ دغه شان په قبر کې به هم دحاکميت باره کې تپوس کيږي : مَن رَبُّکَ؟، حاکم دې څوک وو ؟،د رب معنی په دې ځائ کې پالونکی یا خالق ،مالک کول هيڅ کله نه صحيح کيږي ،کنه بيادا تپوس دانسان سره خاص کول هيڅ معنی نه لري ،بلکه پکارده چې انسان په ځائ دا تپوس دکلي د ځناورو نه وشي ،ځکه دا خبره هر دعقل خاوند ته ښه معلومه او ښکاره ده چې دا الله تعالی صفت تکويني يعني رب بمعنی خالق او تبليغ الشيئ الی کماله شيئًا فشئيًا دانسان په ځائ په ځناور کې په اتم طريقې سره دي چې بې دا سبابو او دچا دهمکارئ نه سپی اتۀ ګُکري راوړي ،نه ورته ترور ،نيا يامور ناسته وي ،نه په يو روغتون يازيګنتون کې دعمليا تو دلارې نه بچي زيګوي ،او انسان ته دا او تردې نورهم ډيرڅه مهيّا وي ـ دمولوي صاحب دم ،ساختونه ،دبزرګانو دعاګانې ،د ميرۀ غم خوري ، دکور دخلقو فکر ،صحت عامه کې که طبي وسائل پوره نه وي نو خاص شفاخانه ،ښۀ ډاکټر ،دعمليا تو تيارې نيول ،دوخت نه مخکې خيال ساتل او څه څه پکار راوستلی کيږي ـ نو آيا دلته تکويني وصف ډير واضح دی او که په تير شوي مخلوق کې ؟ ـ لهذا په قبر کې تپوس دخالق ،مالک نه دی ، دحاکم ،دبادشاه او دقانون دی ـ

مادينک ؟، په کوم قانون دي ژوند تير کړې وو ؟ ـ ماتقول فی حقّ هذا الرجل ؟ ، دا سړې تۀ په کومه معنې پيژنې ؟، محمدبن عبدالله او که محمدرسول الله ؟ ـ محمدبن عبدالله خو ابولهب هم منلو ،چې کله پيدا شو نو په خوشحالۍ کې ئ وينزه آزاده کړې وه ، خو کله چې محمدرسول الله شو ،او دا دعوت ئ شروع کړلو: أمرت لاعدل بينکم ، ماته امردی چې په مکه باندې حکومت او دمکې دخلقو فيصلې وکړم ـ نوبيا ئ په ګټو ويشتلو ،د مکې ټولو سردارانو ،واکدارانو ورسره په دې دښمني شروع کړله، اووئيل ئ: دمکې نه ووځه ،ددې نه مخکې محمد صادق او أمين وو ،اوددې خبرې نه روستو ساحر او مجنون شو ـ

پس مرتبه د وحي دا ده چې محمداو دهغۀ راوړی قانون به دخپل ملک ،ښار او وطن حاکم مني، چاچې ونه منلو نو کافر دي ،دوطن او د ښار قانون به دې محمد وي ،په محکمه او قضاء کې به فيصله دمحمد وي خصوصًا حدود ـ که داسې نه وي يعني چېډ يو ښار ،يا دوطن په محکمه او فيصله کې محمد نه وو هغه ښار ،وطن محکمه او دهغې منونکي دې ځان د محمد نه ګڼړي ، بې دقانون او قضاء محمد چرته نبوي وجود نه لري ـ

وَإِذَا تُتْلَى عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَذَا أَوْ بَدِّلْهُ قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَى إِلَيَّ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ ١٥ یونس ،مشرکینو دنبي علیه السلام نه مطالبه وکړله چې یا دا قانون مکمل بدل کړه، دې ته تغییر و ایي ،او یا په دیکې دتبدیلۍ د اختیار قائل شه چې آخري اختیار دې انسان ته حاصل وي، چې په وخت دضرورت پکې تبدیلۍ او یا بل قانون ته رجوع کیدې شي ، دیته تبدیل و ایي۔

دغه وخت په دنیاکې دوه نظامونه قائم وو ،ددنیا په مخ په څه حصه کې دمشرکینو حکومتونه قائم وو ، لکه یمن،مکه، طائف،یثرب، احقاف ، مدین،ایران ،دوي دالله تعالی دحاکمیت او دقانون نه مکمل منکر وو ، انساني قانون حاکم وو ، او ځني ځایونو کې دأهل کتابو حکومتونه قائم وو ،ددوي په ملکونو او هیوادونو کې قانون اسلامي وو ،ځکه دوي دالله تعالی دحاکمیت او داسماني قانون قائل ووخو په دې عقیدې سره چې خو انسان ته پکې آخري اختیار حاصل وو دحالاتو په وجه،چې ورته آزاد عدلیه وئیلې کیږي۔ مشرکینو نبي علیه السلام ته وئیل: تۀ په دې دوه نظامونو کې ځان له یو خوښ کړه ،مونږ تا په هغې خپل حاکم کوو ، نبي علیه السلام ورته په جواب کې وایي: ماته ددې اختیار نشته ، داسې نه شم کولې ،حکومت او قانون دالله تعالی حق دی ،اوزۀ دهغې تابع یم ؛ إن أتّبع الا مایوحی إلیّ ۔ که په یولاس کې راته لمر او په بل کې راته سپوږمۍ کیږدئ نوبیاهم دالله تعالی قانون وحي نه پریږدم۔ ددې جواب نه روسته دمکې خلقو په نبي علیه السلام دژوند دائره راتنګه کړله،او مکه پریخودلو ته ئ مجبوره کړلو۔ ، دمدینې خلقو دنبي علیه السلام ملګرتیا وکړله ،بیعت ئ ورسره وکړلو ، خپل حاکم ئ کړلو ،اودهغۀ راوړی اسمانني اورحماني قانون ،سپیسلي قرآني قانون ته ئ غاړه کیخودله۔

نبي علیه السلام چې مدینې ته هجرت کړی وو ، دا دعبادت لپاره نه وو تلې ،ځکهکه عبادت معنی یوائې دالله تعالی نه غوښتل شي او دغیرالله نه غوښتل بد اوګنړلی شي نو په دی عقیدې هم په دغه خلقو کې څه خلق تیر شوي دي چې ددوي ذبیحه به ئ هم نه خوړله اوبیابه هم ددوي میلمانه کیدل وخت ئ ورسره تیرولو ۔ او که دعبادت معنی خاص افعال شي نو په هغې هر سړی خودمختار وو ، چا په بل پسې نیت نه تړلو۔ بلکه دحکومت لپاره مدینې ته لاړلو ،اوپه مدینه کې ئ دالله تعالی حکومت اوعقوبات قائم کړل ، او د هغې لپاره ئ اطرافو ته سرایا اوجیوش لیګل، څوک ئ مکې ته د عمرې لپاره نه دی لیګلې۔

نو مرتبه د وحي دا شوه: که په يو رياست کې د الله تعالی د قوانينو نه يو قانون هم د محکمې او د قضاء نه معطل شو نو دا بيا د الله تعالی رياست نه دی ،دا د کفر ښار دی

## مراتب د تفسير

ابن کثير رحمه الله ليکي: فان قال قائل فما احسن التفسير ؟ فالجواب: ١- أنّ اصحّ الطرق فى ذلک ان يفسّر القرآن بالقرآن ، ٢- فان اعياک ذلک فعليک بالسنة فانها شارحة للقرآن و موضّحة له ، ٣- وحينئذ اذا لم نجد التفسير فى القرآن ولا فى السنة رجعنا فى ذلک الى اقوال الصحابة فانهم ادرى بذلک لما شاهدوا من القرائن والاحوال اللتى اختصّوا بها )------وبعد--------- فصل - ٤- اذا لم نجد التفسير فى القرآن ولا فى السنة ولا وجدته من الصحابة فقد رجع کثير من الائمة فى ذلک الى اقوال التابعين کمجاهد بن جبر ---------------وبعد------ فاما تفسير القرآن بمجرد الرأى فحرام -----وبعد ------ ٥ - فاما من تکلم بما يعلم من ذلک لغة وشرعا فلا حرج عليه ولهذا عن هؤلاء وعن غيرهم اقوال فى التفسير ولا منافات لانهم تکلموا بما علموا وسکتوا عما جهلوا وهذا هو الواجب على کل احد ----------- لقوله تعالى :لَتُبَيِّنُنَّه لِلنّاسِ وَلَا تَکْتُمُونَه الايه -

اولنې او أحسن تفسير هغه تفسير القرآن بالقرآن دی، دويم نمبر تفسير القرآن بالسنّة ، دريم نمبر تفسير القرآن باقوال الصحابة ، څلورم نمبر تفسير القرآن باقوال التابعين ، پنځم نمبر تفسير القرآن بالرأى الموافق لاصول أهل السنّة والجماعة - بعض بى علمه د تفسير په باره کې څه خبرې کوي ،کله ئ د لغت تابع کوي ،او کله ئ د نقل او د سند - دا دواړه خبرې د ناپوهۍ خبرې دي - حقيقت دا دی کوم چې د علماو نه منقول دی:

١- قال ابن نجيم العلوم ثلاثة: علم نضج وما احترق ،وهو عم النحو وعلم الاصول -وعلم لانضج ولا احترق ،وهو علم البيان والتفسير -و علم نضج واحترق، وهو علم الحديث والفقه- مقدمه شامي ص٢٧،٢٨

٢- امام قرطبي رحمه الله ليکي :وقال بعض العلماء إن التفسير موقوف على السماع لقوله تعالى: فإن تنازعتم فى شيئ فردوه إلى الله الايه ، وهذا فاسد لان النهى عن تفسير القرآن لايخلو اما ان يکون المراد به الاقتصار على المسموع وترک الاستنباط او المراد به أمر آخر وباطل ان يکون المراد به ان لايتکلم احد فى القرآن الا بما سمعه)